

... تاج کمپنی لمیٹڈ کے ملتے جلتے
... سے قرآن مجید اور اسلامی کتب تیار کر رہے ہیں
... ان جعل سازوں سے خبردار رہیں
... نام درج ذیل ہیں

... تاج کمپنی، تاج محل کمپنی، تاج قرآن مجید کمپنی، تاج دین کمپنی، فرید بک ڈپو دہلی

# استدعا

قرآن مجید کے پرنٹر و پبلشر ہونے کے ناطے تاج کمپنی لمیٹڈ™ کی ہر ممکن کوشش ہوتی ہے۔
کہ قرآن کریم کے کسی نسخے میں معمولی سی بھی غلطی رہنے نہ پائے دورانِ چھپائی اگر کوئی زبر، زیر یا پیش
وغیرہ ہٹ جائے تو اُسے دانستہ غلطی سے تعبیر نہیں کیا جا سکتا۔ کیونکہ ہر لمحہ احتیاط برتنے کے بعد بھی بعض
اوقات ایسا ہو جاتا ہے یا جلد ساز کی غفلت سے صفحات آگے پیچھے لگ جاتے ہیں۔
اگر آپ کو کوئی ایسی غلطی نظر آ جائے تو فوری ہمیں مطلع فرمائیں تا کہ مزید نسخوں
میں تصحیح کی جا سکے اور اپنا نسخہ بھی تبدیل کروالیں آپ بھائیوں، بہنوں کا تعاون ہی تاج کمپنی لمیٹڈ™
کی کامیابی کا راز ہے امید ہے حسب سابق تعاون فرمائیں گے شکریہ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هُوَ اللّٰهُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الَّذِيْ لَا إِلٰهَ جَلَّ جَلَالُهٗ | إِلَّا هُوَ جَلَّ جَلَالُهٗ | الرَّحْمٰنُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الرَّحِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمَلِكُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْقُدُّوْسُ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| السَّلَامُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُؤْمِنُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُهَيْمِنُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْعَزِيْزُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْجَبَّارُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُتَكَبِّرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْخَالِقُ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| الْبَارِئُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُصَوِّرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْغَفَّارُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْقَهَّارُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْوَهَّابُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الرَّزَّاقُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْفَتَّاحُ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| الْعَلِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْقَابِضُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْبَاسِطُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْخَافِضُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الرَّافِعُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُعِزُّ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُذِلُّ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| السَّمِيْعُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْبَصِيْرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْحَكَمُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْعَدْلُ جَلَّ جَلَالُهٗ | اللَّطِيْفُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْخَبِيْرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْحَلِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| الْعَظِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْغَفُوْرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الشَّكُوْرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْعَلِيُّ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْكَبِيْرُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْحَفِيْظُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُقِيْتُ جَلَّ جَلَالُهٗ |
| الْحَسِيْبُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْجَلِيْلُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْكَرِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الرَّقِيْبُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْمُجِيْبُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْوَاسِعُ جَلَّ جَلَالُهٗ | الْحَكِيْمُ جَلَّ جَلَالُهٗ |

# تعلیم القرآن

ارشادِ نبوی ﷺ ہے کہ تم میں سے بہترین شخص وہ ہے جو خود قرآن سیکھے اور دوسروں کو سکھائے"

آسان لفظی وبامحاورہ ترجمہ قرآن

ڈاکٹر محمد دین

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اُولٰٓئِكَ | عَلٰى هُدًى | مِّنْ رَّبِّهِمْ | وَاُولٰٓئِكَ | هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ | | اِنَّ |
| یہی لوگ | ہدایت پر ہیں | اپنے رب کی طرف سے | اور یہی ہیں | کامیابی پانے والے | | بے شک |

یہی لوگ اپنے رب کی طرف سے سیدھی راہ پر ہیں اور یہی فلاح پانے والے ہیں۔ بے شک

اردو، پشتو، فارسی اور انگریزی میں دستیاب ہے

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الودود جلّ جلالہ | المجید جلّ جلالہ | الباعث جلّ جلالہ | الشہید جلّ جلالہ | الحق جلّ جلالہ | الوکیل جلّ جلالہ | القوی جلّ جلالہ |
| المتین جلّ جلالہ | الولی جلّ جلالہ | الحمید جلّ جلالہ | المحصی جلّ جلالہ | المبدئ جلّ جلالہ | المعید جلّ جلالہ | المحیی جلّ جلالہ |
| الممیت جلّ جلالہ | الحی جلّ جلالہ | القیوم جلّ جلالہ | الواجد جلّ جلالہ | الماجد جلّ جلالہ | الواحد جلّ جلالہ | الاحد جلّ جلالہ |
| الصمد جلّ جلالہ | القادر جلّ جلالہ | المقتدر جلّ جلالہ | المقدم جلّ جلالہ | المؤخر جلّ جلالہ | الاول جلّ جلالہ | الآخر جلّ جلالہ |
| الظاہر جلّ جلالہ | الباطن جلّ جلالہ | الوالی جلّ جلالہ | المتعال جلّ جلالہ | البر جلّ جلالہ | التواب جلّ جلالہ | المنتقم جلّ جلالہ |
| العفو جلّ جلالہ | الرؤوف جلّ جلالہ | مالک الملک جلّ جلالہ | ذوالجلال والاکرام جلّ جلالہ | المقسط جلّ جلالہ | الجامع جلّ جلالہ | الغنی جلّ جلالہ |
| المغنی جلّ جلالہ | المانع جلّ جلالہ | الضار جلّ جلالہ | النافع جلّ جلالہ | النور جلّ جلالہ | الہادی جلّ جلالہ | البدیع جلّ جلالہ |
| | | | الباقی جلّ جلالہ | الوارث جلّ جلالہ | الرشید جلّ جلالہ | الصبور جلّ جلالہ |




**پښتو**

**آسانه ټکی په ټکی او رَوانه ترجمه**


## ډاکټر محمد دین پی ایچ ڈی

مولف :التفسير النبوی (عربی)

پی ایچ ڈی اسلامیات۔الشهادة العالمية وفاق المدارس

سابق استاد شعبہ اسلامیات جامعہ پشاور






**تاج کمپنی لمیٹڈ**

لاہور
کراچی
پشاور
راولپنڈی
شارجہ

طبع شدہ تاج کمپنی لمیٹڈ کراچی

## سبق ۵

**الحمدلله رب العالمين والصلوٰة والسلام علىٰ سيد المرسلين محمد وعلىٰ آله وصحبه اجمعين وبعد:**

### نزول قرآن:

۱. قرآن مجيد د الله تعالىٰ له طرفه نازل کړے شوے آخري او مکمل [illegible] دے. ارشاد باري تعالىٰ دے:

"دا (قرآن) هغه کتاب دے چې په کښې د شک او شبهې [illegible] نيشته او دا (دَ الله نه) د يرېدونکو د پاره د هدايت ذريعه ده" (سورة [illegible])

۲. د نزول قرآن مقصد د کفر او جهالت تيرې ختمول او د [illegible] دی ارشاد باري تعالىٰ دے: "اے نبيَّ! دا کتاب قرآن مونږ ځکه په تا نازل [illegible] خلق د الله په حکم د تيرو نه بهر رڼا ته راوباسې" (سوره ابراهيم آيت: [illegible])

۳. قرآن مجيد پوهې سره د لوستلو او د غور و فکر [illegible] او هدايت حاصلولو د پاره نازل شوے دے. ارشاد رباني دے: "اے [illegible] برکت والا کتاب دے چې تا بانديې (ځکه) نازل کړے شوے دے چې خلق دهٔ [illegible] وکړي. او د عقل خاوندان ترې نصيحت واخلي" (سوره [illegible])

۴. قرآن مجيد د اللّٰه تعالىٰ آخري کتاب دے. مخلوق دده هسې [illegible] هدايت پيغام تر جوړولو عاجز دے. ارشاد رباني دے: "(اے خلقو!) که چرې تاسوته د دهٔ (قرآن) په رښتيا والي څهٔ شک وي کوم چې مونږ پهٔ خپل بنده نازل کړے دے نو تاسو هم ددهٔ هسې جوړ کړے سورت راوړی که تاسو پهٔ خپله دعوىٰ کښې رښتوني ئي". (سوره بقره آيت ۲۳)

۵. د هدايت دا پيغام به تر قيامته دَ انسانانو د رهنمائي د پاره محفوظ او موجود وي. ددهٔ دَ دنيا نه ختمول ناممکن دي. ارشاد رباني دے: "بې شکه مونږ دا ذکر (قرآن مجيد) نازل کړے دے او هم مونږ ددهٔ محافظ يو". (سوره الحجر آيت: ۹)

### د اصلاح او ترقي د ټولونه غټ منشور:

د پورته ذکر کړے شوو مقصدونو حاصلولو او انسانانو له د ګمراهۍ او جهالت د تيرونه بهر رڼا ته د راويستو د پاره قرآن مجيد د انسانيت د پاره ايکي يو "نصاب تعليم" او محمد رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه و آله وسلم "د معلم انسانيت" په حيث ددهٔ د تعليم و تدريس په کار مامور کړے شو. او دا تعليمي پروګرام بندګانو بانديې د اللّٰه تعالىٰ ډېر لوئ "احسان" وګرځولے شو. ارشاد باري تعالىٰ دے:

"يقيناً اللّٰه تعالىٰ مؤمنانو بانديې ډېر لوئې احسان وکړو کله ئې چې دوي کښې هم د دوی نه يو

عظيم الشان رسول ولېږلو. څوک چې دوي ته د الله تعالي آيتونه آوروي. دوي (په اخلاقي تربيت کړلو) پاک صفا کوي او دوي ته کتاب (قرآن) او د حکمت تعليم ورکوي. سره ددې چې ددې نه [illegible]ندې دا خلق غټه ګمراهي کښې پراته وو". (سوره آل عمران: ۱۶۴)

ځکه [illegible] نبي کريم صلي الله عليه و آله وسلم دا کتاب په پوره محنت او کوشش انسانانوته و[illegible] د هغې په نتيجه کښې د انسانيت ډېرې غوره نمونې وجود کښې راغلې.

## د تعليم قرآن مرکزونه:

حضورً [illegible] او بيا د هغويَ په ممبر ناستو روستنو هستوَ د هر کور او هر جمات نه د قرآن مدرسه جو[illegible] کړه. حضورً اوفرمائيل چې:

" کو[illegible] ځـائ دالـلـه بنـدګان د قرآن زده کولو د پاره يوځائ شي هلته د الله رحمت راوريږي [illegible] حلقوته سکون (آرام) ملاوېږي او فرشتې داسې مجلسونه په خپلو وزرونو پټوي"

(روايت مسل[illegible] ابو داؤد)

کو[illegible]لقو چې د حضورً پيغام ومنلو هغويَ مبارک د هغوي کورونو او جماتونو کښې د قرآن د [illegible] حلقې جوړې کړې او چې کوم خلق به دې حلقو کښې د تعليم په ترلاسه کولو د دين د ښودنې [illegible] جوړيدل هغوئً مبارک به هغوي د نورو خلقو د تعليم د پاره استول. دا حلقې او مجلسونه د قرآن د رڼا خورولو يوه غټه ذريعه وګرزيدله.

هغوَئ مبارک ټولو مسلمانانوته حکم وکړو چې چا سره دَ دين څومره علم وي هغه دې د هغې نورو ته د رسولو بندوبست وکړي. او چې کومو خلقو سره علم نيشته دے هغوي دې د علم خاوندانو تـه په ورتلو علم حاصل کړي دغه شان هغوَئ مبارک دا هدايت وکړو چې هره کوڅه محله کښې دې داسې انتظام وکړے شي چې ګاونډيان يو تر بله د زده کړې او ښودنې کار جاري وساتي کومو خلقو به چې دې لړ کښې ناراسته کوله هغوَئ مبارک به د هغوئ نه سختي سره پښتنه کوله.

## د استوګنې انتظام:

هـغـوَئ مبارک د مسجد نبوي نه د دين د تعليم مرکز جوړ کړو او د لرو پرتو علاقونه زده کړې له د راتلونکو د پاره ئې مسجد نبوي کښې په صفه نوم ئې چبوترې د استوګنې انتظام وکړو. چې هغوئ تسلي سره علم حاصل کړے شي.

## د زنانه ؤ تعليم:

د زنـانـه ؤ د زده کـړې د پـاره بـه هـغوَئ مبارک هفته کښې په يو خاص ورځ يا اهمو موقعو بـانـدې د تبـليـغ خصوصي تابيا کوله. هغوَي مبارک نارينه ددې پابند وګرځول "چې هغوي د قرآن مـجيـد او ديـن څـومره علم حاصل کړي کورونو کښې دې خپلو زنانه ؤ ته اوښايئي' او زنانه ؤ ته ئې هدايت وکړو چې خپلو کورونو کښې د نارينه ؤ نه دَ دين علم زده کوئي"(سوره احزاب ۳۳/۳۴)

## قرآن مجيد او عربي ژبه:

په تېرو زمانو کښې د هر قوم د هدايت ... پېغمبرانو د خپلو قومونو ژبه کښې د الله
پيغام رسولے وو. ولې د آخري نبي حضرت محمد صلي الله عليه و آله وسلم پيغام د قيامت تر
ورځ پورې د هر قوم، هرې ژبې او هرې زمانې خلقو ... دے. ځکه نو قرآن مجيد د ژبو د فرق
او د بدلون نه د بچ ساتلو او ددې د متن (اصل ټکي) ... حفاظت د پاره د نزول قرآني ژبې
"عربی" ته بنيادي حيثيت ورکړے شو. او نورو ... ژبې ددې ملاتړ وکړخولې شوې. ارشاد
باري تعالیٰ دے:

"دا کتاب مونږ نازل کړے دے يعني قرآن چې عربي ژبه کښې دے ددې د پاره چې ته زده کړے شي"
(سوره يوسف۲)

په دې وجه نبي کريم صلي اللّٰه عليه و آله وسلم ... مسلمه ته د عربی ژبې زده کولو
ترغيب ورکړو او بيا په د رنګ کښې ايمان راوړونکو ډېرو قامونو خپلې زړې ژبې هېرولو سره
عربي ژبه اختيار کړه. بلخوا ګڼو قومونو د ښودنې او زده کړې وسيلې په ګرځولو دا خپلو ژبو
کښې جذب کړه. چې د هغې نتيجه کښې د قرآني او عربي علومو د ترجمې او ترجمانی کار په
دومره درز کښې شروع شو چې عربي ژبه نورو قامونو ته پردی پاتې نه شوه. په غير عرب قومونو
کښې د عربی ژبې او ديني علومو ستر علما او مصنفين پيدا شو او د عربی ژبې الفاظ، محاورې،
اصطلاحات او رسم الخط د ډيرو ژبونه بېلېدونکې حصې جوړې شوې. دا ټول د قرآن مجيد د
معجزانه قوت، په دهٔ د پوهيدو د ضرورت او د مؤمنانو ده سره د محبت نتيجه وه.

حضورؐ د الٰهي پيغام غېر عرب قومونوته د رسولو دويم انتظام دا وکړلو چې خپلو صحابه ؤ
ته ئې د نورو ژبو د زده کړې حکم ورکړو. او هم د صحابه ؤ په دور کښې د قرآن مجيد د بعضو
حصو نورو ژبو کښې د ترجمې کار شروع شو کوم چې تر ننه جاري دے.

## د قرآن پوهنې اهميت:

د الٰهي کلام په سوب د قرآن مجيد د عربی الفاظو تلاوت ډېر لوئي عبادت او د ثواب کار
دے بيا هم د نزول
قرآن مقصد په دې د پوهېدو، په کښې د غور او فکر کولو او دَ دې نه رهنمائي تر لاسه کول دي
په دې وجه په مطلب د پوهېدونه بغير صرف تلاوت کول کافي نه دي. ارشاد باري تعالیٰ دے:

"اے نبيؐ دا (قرآن) برکت والا کتاب دے چې پهٔ تا نازل کړے شو چې خلق په کښې غور
او فکر وکړي او عقل والا ترې نصيحت واخلي". (سوره ص آيت: ۲۹)

په دي د امت علمائے کرامو هر دور کښې امت د قرآن پوهنې" د ضرورت نه خبر کړي دي.

حضرت عبداللّٰه بن عباس رضي اللّٰه عنه فرمائي: "چې کوم سړې قرآن لولي او د هغې په
معنٰي او مطلب نه پوهيږي د هغه مثال د هغه بانډيچي دے څوک چې لولي صحيح ولې پوهيږي نه

"چې هغه څۀ لولي".

مشهور تابعي امام حسن بصريؒ فرمائي: د قرآن پوهه دا نه ده چې ددۀ ټکي خو دې حفظ کړے شي ولي ددۀ هدايت دې پريښودے شي (د دې نتيجه دا راوُځي چې) يو سړے وايئي چې ما پوره قرآن لوستلے دے ولي د هغه اخلاقو او اعمالو کښې د هغه څۀ اثر په نظر نۀ راځي". (تفسير ابن کثير)

حضرت سعيد بن جبير فرمائي چې کوم سړي قرآن ولوستلو او معاني ئي زده نه کړې د هغه مثال د ړوند يا ان پړهن بانډيچي دے".

حضرت اياس بن معاويه فرمائي: چا چې قرآن ولوستلو او دده تفسير ئي زده نه کړو د هغه مثال د هغه خلقو په شان دے چا ته چې د شپې په وخت د خپل حاکم فرمان راشي او هغوئ سره ډيوه (رڼا) نه وي او هغوي د سرکاري حکم په راتلو اويربږي چې پته نه لګي چې دې فرمان کښې به څه ليکلي وي.

د قرآن پوهېدو ددي ضرورت له مخه د امت علمائےکرامو هر دور کښې د عربي د تعليم عام کولو او د دُنيا مختلفو ژبو کښې د قرآن مجيد د ترجمو او تفسيرونو ليکلو چهاپ کولو فرض تر سره کړے دے او دا سلسله تر اوسه جاري ده.

## براعظمګي کښې د ترجمې او تفسير قرآن تحريک:

براعظمګي کښې په اُردو او نورو علاقائي ژبو کښې د قرآن د ترجمو د موجوده تحريک بنياد حضرت شاه ولي اللّٰه (سنه ۱۷۶۳ء کښې وفات شوے) ايښودلے دے. د هغوئ د دور نه آګاهو دا فرضي خبره عامه کړيشوې وه چې قرآن مجيد د عالي شانه مضامينو او فصاحت او بلاغت اعلٰي ترين معيار نمونه ده ځکه عام خلق ددۀ د لوستلو قابل نه دي. دا يوازے د عربي د ماهرانو کار دے دا غلط فهمي حضرت شاه ولي اللّٰه صاحب په ډير قوت رد کړه او وې وئيل چې صحابهؓ کرام ان پړهن وو او محمدؐ هغوي د قرآن مجيد د زده کړې نه آګاهو د عربي ژبې د فصاحت او بلاغت په زده کړه مجبور کړي نه وو بلکي د قرآن مجيد نيغ په نيغه تعليم سره هغوئ د علم اعلٰي درجوته ورسيدل. لکه چې ارشاد باري تعالٰي دے

"بې شکه مونږ دا قرآن د نصيحت حاصلولو د پاره آسان کړے دے". (سورۀ القمر. آيت: ۱۷)

حضرت شاه ولي اللّٰه د هغه وخت رواجي ژبې فارسي کښې د قرآن مجيد آسانه ترجمه وليکله او د خپلو شاګردانو او متعلقه ملګرو په وساطت ئي ټول براعظمګي کښې د قرآن عظيم الشان د درس او تدريس مرکزونه پرانستل.

د مسلمانانو ټولو تپوته د قرآن پاک د ترجمې ښودلو په ضرورت د زور اچولو په لړ کښې هغوئ اوفرمائيل:

۱. موجوده زمانه او په دي هيواد کښې د مسلمانانو د خير ښيګړي د پاره ضروري ده چې

قـرآن پـاک پـه روانـه آسانه ژبه کښې [illegible] کړيشي په دې چې عام و خاص او وړوکے
لوئي ټول ترې فائده پورته کړي.

۲. د کـاريـګرو، مزدورانو او سپاهيانو [illegible] چاته عام طور د عربي د لوړو علمونو حاصلولو موقع پـه لاس نـه ورځي هغوئ ته د [illegible] خو داسې رسالو نه پس د کومو په وجه چې هغوئ ليک پـه روانـه لـوستلے شي [illegible] په شروع د "قرآن دا ترجمه" وښودلے شي. په دې چې اولنے څيز کوم چې ددهٔ زړ[illegible] کښې کښيني هغه دالـلّـه تعالیٰ د کتاب معنې د [illegible] خـلـق هم چاته چې د عمر د يو حصې تېرېدونه پس د تـوبـې تـوفيـق وشـي او د باقاعده علم حاصلولو موقعه په لاس نه ورځي هغوئ له پکار دي چې د قرآن دا ترجمه په ښهٔ ډول ياده کړي.

۳. تـعليم کښې بوخت ماشومانونه علاوه هغه خلق څوک چې زياتره وخت دَ معاش سرګرمو کښې اخته وي هغوئ له پکار دي چې (يو وخت مقرر کړي) د حلقې په شکل کښې ناسته کـوي او هـغوي کښې دې يو کس دَ يو يا دوؤ سورتونو يا رکوع په رو رو ترجمه آوروي. دغـه شـان به د دوئ صحابهؓ کرامو سره مشابهت (يوشان والے) پيدا شي. چې هغويؓ به په داسې قسـم حلقو کښې ناسته کوله او يو قاري به ورکښې لوستل کول. فرق به صرف دا وي چې صـحـابـهؓ کـرامـو تـه عربي ژبه خپله معلومه وه او دا خلق به د ترجمې په ذريعه د قرآن مجيد په معنو پوهه شي.

۴. د قـرآن مـجيد د ترجمې ضرورت په ګوته کولو لړ کښې هغويؒ او فرمائيل "که په انصاف خبـره وکـړيشـي نـو د قرآن حکيم د نازليدو اولين مقصد هم د ده د وعظونو نه نصيحت او دده د هـدايـاتـونـه رڼا اخستل دي نه دا چې د قرآن د لفظونو ولاړول سره ددې چې لفظونه ولاړول او تلاوت هم غنيمت دے. ولې هغه سړي ته به د اسلام د څومره حقيقت پته ولګي چـاتـه چې د قرآن د مطلب او معنو پته ونهٔ او لګي هغه ته به د قرآن پاک تلاوت کښې څه خـونـد مـزه مـلاؤ شـي څـوک چـې هـلـو د کلام الٰهي په مطلب نه پوهيږي". (مقدمه فتح الرحمٰن ترجمه قرآن فارسي از شاه ولي اللّٰه)

د قـرآن پـاک مـعـنې خلقوته د رسولو دې تحريک د پاره حضرت شاه ولي اللّٰه او د هغه متـعـلقه ملاتړ ملګرو شپه او ورځ کار وکړو. هغوي خپله د قرآن مجيد فارسی کښې او د هغوي دوؤ فـرزندانو اُردو کښـې تـرجـمې کـولـو سـره د عـامـو مسـلـمانانو د پاره د قرآن پوهنې لارې پـرانستلے او ددې تـحـريـک نتيـجه کښې اُردو او نورو ګڼو ژبو کښې د قرآن مجيد بې شمېره ترجمې او تفسيرونه وجود کښې راغلل.

**قرآن مجيد يو درسي نصاب:**

دیـنـي نظام تعلیم په رائج کولو د قرآني تعلیماتو ګنجائش ختمولے شي د امت مسلمه د نشاة ثانیه د پاره د کار کوونکو خلقو، جماعتونو او ادارو د پاره ضروري ده چې هغوئ په خپلو تعلیمي او تربیتي پروګرامونو کښې د قرآن پاك تعلیم ته مرکزي مقام ورکړي او خپل ټول مال، بدني او ذهني قوتونو پـه جـمـع کولو دې هغه ټولې وسیلې پکار راولي کومو سره به چې د امت هره تپه د قرآن تـعلیم سره وتړلے شي او هر جمات، کور، حجره، دفتر، کلاس روم د قرآني تعلیماتو مرکز وګرځي ځکه چې د امت اتحاد، سباؤن او ترقي د قرآن مجید په نشر و اشاعت اړه لري. د نبي کریم صلي الله علیه و آله وسلم ارشاد پاک دے "چې دې کتاب (قرآن) سره به الله پاک ډیر قامونه د ترقی په بام اوخېژوي او دغه دې نه په غفلت کولو) ډیر قامونوبه د ذلت ګړنګ ته ورلړه کړي".

## تعلیم القرآن: (لفظي او روانه ترجمه)

د قـرآن مجید د تر نظر لاندي دا لفظي او روانه ترجمه (تعلیم القرآن) د غټو غټو عالمانو د تـرجـمـو او تـفسیـرونو نه اخیستے شوې او چونړ کړې شوې ده. لفظي ترجمه کښې په سختی سره د لـفظ د مـقـال ساتلو په ځائ د جملې تړون ته هم پاملرنه شوې ده چې د ښودلو په وخت څه خنړ محسوس نـه شـي. بـلـخـوا روانـه ترجمه کښې د وضاحت او رواني په غرض د غټو غټو عـالـمـانـو پـه څیـرد قـوسونو (بریکټونو) په ذریعه بېخي لنډو ټکو کښې تفسیري معلومات هم د تـرجـمـې حـصـه جـوړ کړیشوي دي. د ژبې او بیان په آسانتیا او د تیرو شوو نیکانو د منلي شوي تـفسیـرونـو نـه زړه پـوري استـفـاده شـوې ده کومو کښې چې د عربی د تفاسیرونه تفسیر طبري، تفسیر ماوردي، تفسیر قرطبي، تفسیر ابن کثیر، تفسیر قاسمي، تفسیر کشاف القرآن، ترجمه فتح الـرحمٰن (فارسي)، اُردو کښې په خصوصي توګه د ترجمه موضح القرآن او علاوه ددې نه ترجمه شاه رفیع الـدیـن، تفسیر عثماني، تفسیر بیان القرآن، تفهیم القرآن، کنز الایمان او تفسیر معارف القرآن تر ټولو دذکر وړ دي.

د خـوږ وطن تقریباً د ټـولـو مـکـاتـب فکر عالمانو صاحبانو خپـلـو لیکونو کښې د "تعلیم القرآن" مننه کړېده او د حکومت پاکستان د مذهبي امور و وزارت سکولونو کښې د قرآن مجید و ترجمې د تعلیم د پاره ددې سفارش کړے دے. عالمانو او د قرآن مجید شائقینو ته خواست دے چې "تعلیم القرآن" مدرسو او د قرآن مجید حلقو کښې جاري کړي او ددې ترجمې په نورې ښه کولو کښې مونږ سره ملاتړ وکړي. ستاسو د دعاګانو طلبګار:

ډاکټر محمد دین: پي ایچ ډي اسلامیات فاضل درس نظامي استاد (پخوانے) پیښور پوهنتون. پیښور. پاکستان
جنوري ۲۰۰۲ء

نوټ: د قـرآن مـجـیـد د ترجمې تحریک خورولو د پاره "تعلیم القرآن سوسائټي آف پاکستان" جوړه کړې شوې ده. چې د هغې په اهتمام د "خط و کتابت او مشق" په ذریعه د قرآن د ترجمې، عربی ژبې او حدیث او فقهي تعلیم د عام کولو پروګرام په لویه پیمانه جاري دے.

د نورو معلوماتو او کوټلي تړون د پاره:

تعلیم القرآن سوسائټي قصه خواني پیښور پاکستان. فون:091-214454
E-mail: taleemulquraan@hotmail.com

## حافظ قاری عطاء اللہ

سلسلہ نمبر 013

نمبر ________

★ ایف۔اے اسلامیات (عربی) وفاق المدارس ★ تجوید روایت حفص ★ قراءات سبعہ ★ قراءات ثلاثہ ★ تفسیر قرآن ★ حفظ قرآن کریم
رجسٹرڈ پروف ریڈر (پنجاب قرآن بورڈ محکمہ اوقاف حکومت پنجاب)

**تصدیق پروف ریڈر**

میں نے تاج کمپنی ... قرآن مجید برائے حوالجات

[illegible]

کی پروف ریڈنگ کی۔

جو اغلاط پائی گئیں وہ درست کروالیں اب ان نسخوں میں میرے علم کے مطابق کوئی غلطی موجود نہیں۔

میں پورے وثوق کے ساتھ ان نسخوں کے صحت مند اور غلطیوں سے پاک ہونے کی تصدیق کرتا ہوں۔

**العارض** مہر




دستخط

قاری عطاء اللہ

---

## قاری اشرف خوشابی

سلسلہ نمبر 049

○ ایم۔اے (عربی) ○ ایم۔اے (اسلامیات) ○ درس نظامی ○ تجوید قراءت ○ رجسٹرڈ پروف ریڈر (پنجاب قرآن بورڈ محکمہ اوقاف پنجاب)

نمبر ________

**تصدیق پروف ریڈر**

میں نے تاج کمپنی کے ۱۰ سطری قرآن مجید برائے حوالجات

**161, 61 وغیرہ**

کے متن کی حرف بحرف بغور پروف ریڈنگ کی۔ جو اغلاط پائی گئیں وہ درست کروالیں اب اس نسخے میں میرے علم کے مطابق کوئی غلطی موجود نہیں۔ انشاءاللہ تعالیٰ

میں پورے وثوق کے ساتھ اس نسخے کے صحت مند اور غلطیوں سے پاک ہونے کی تصدیق کرتا ہوں۔

**العارض** مہر




دستخط

محمد اشرف خوشابی

آسان او ترجمه

# القرآن الكريم

# تعلیم القرآن

تکی په تکی
او روانه ترجمه


مولف:۔ ڈاکٹر محمد دین



تاج کتب خانه
قصه خوانی پشاور
091-2214454
091-2218720

آسان ترجمہ

# القرآن الکریم

# تعلیم القرآن

تکی پہ تکی
او روانہ ترجمہ


مولف:۔ ڈاکٹر محمد دین



## تاج کُتب خانہ

قصہ خوانی پشاور
091-2214454
091-2218720

# سُورَةُ الْفَاتِحَةِ

سُورَةُ الْفَاتِحَةِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَهِيَ سَبْعُ اٰيَاتٍ

سورة فاتحه مکی دے | (شروع) دَ الله په نوم سره (چه) لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے | او په دے کښے اووه آیتونه دی

شروع کوم دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ الرَّحْمٰنِ

ټول تعریفونه | الله لره دی | (کوم چه) پالونکے (دے) | دَ مخلوقاتو۔ | ډیر مهربان

ټول تعریفونه الله دَ پاره دی چه دَ ټولو مخلوقاتو پالونکے دے ډیر مهربان

الرَّحِيْمِ ۝ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝ اِيَّاكَ

ډیر بخښونکے | مالک (دے) | دَ ورځے | دَ قیامت | هم ستا

نهایت رحم کوونکے دے چه دَ جزا دَ ورځے مالک دے۔ (اے الله!) مونږ هم

نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۝ اِهْدِنَا

مونږ عبادت کوو | او هم تا نه | مونږ مدد غواړو | وُښایه مونږ ته

ستا عبادت کوو او مونږ هم تا نه مدد غواړو۔ مونږ ته

الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ

لاره | نیغه | لار | (دَ هغو) خلقو

نیغه لاره وُښایه دَ هغو خلقو لاره

اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ

(چه) تا انعام کړے دے | په هغوی | نه (دَ هغو چه) | غضب شوے دے

په کومو چه تا انعام کړے دے، نهٔ دَ هغو خلقو (لاره) په کومو چه

عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۝

په هغوی | او نهٔ | (لاره دَ) ګمراهانو |

غضب شوے دے او نهٔ دَ هغو کوم چه ګمراه شول۔

# سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ

سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَتَانِ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | وَسِتٌّ وَّثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعُوْنَ رُكُوْعًا

سورة بقرة مدني دے او په دے کښے | (شروع) دَ الله په نوم سره (چه) لوئے مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے. | ۲۸۶ آیتونه او ۴۰ رکوع گانے دي

شروع کوم دَ الله په نوم سره چه لوئے مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے۔

الٓمّٓ (١) ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيْهِ ۛ

الٓمّٓ | دا (هغه) | کتاب (دے) | (چه) شک نشته | په دے کښے

الف، لام، میم دا (قران) هغه کتاب دے چه په دے کښے (هیڅ) شک نشته

هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ (٢) الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

هدایت دے | پرهیزگارانو دَ پاره۔ | هغه خلق | چه ایمان لری

پرهیزگارانو دَ پاره هدایت دے څوک چه په غیب باندِ ایمان

بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا

په غیب باندِ | او اُودروی | مونځ | او دَ هغے نه

لری او مونځونه کوی او څهٔ چه مونږ

رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ (٣) وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

چه مونږ ورکړی دی هغوئی ته | خرڅ کوی | او هغه خلق چه | ایمان راوړی

هغوئی ته ورکړی دی له هغے نه خرڅ کوی او کوم کتاب چه (اے محمدؐ!) په تا باندِ

بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ

په هغے چه نازل کړے شو | په تا باندِ | او په هغے چه | نازل کړے شول

نازل کړے شوے دے او کوم کتابونه چه تا نه وړاندِ (پیغمبرانو باندِ) نازل کړے شول

مِنْ قَبْلِكَ ۚ وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ (٤)

له تا نه وړاندِ | او په آخرت باندِ | هغوئی یقین لری۔

په هغو ټولو باندِ ایمان راوړی او په آخرت باندِ یقین ساتی ۔

أُولَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ⑤ إِنَّ
دغه خلق | په هدایت باندې دي | دَ خپل رب د طرف نه | او دغه خلق | کامیابي موندونکي دي ۔ | بیشکه
دَغه خلق دَ خپل پروردګار دَ طرف نه په سمه لار (روان) دي او هم دوی دَ عذاب (او دَ ملامتیا) نه خلاص دي. بیشکه

الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ
کوم خلق چه | کافران شول | برابره ده | په دوئ | که ویرې ته دوی | یا | نه | ویروې ته دوی
هغه خلق کوم چه انکار وکړو دَ هغوی په حق کښې برابره ده که ته هغوی (عذاب نه) ویروې یا نه دې ویروې

لَا يُؤْمِنُونَ ⑥ خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ ۖ
ایمان نه راوړي دوی | مهر ووهلو | الله | په زړونو دَ دوی | او په غوږونو دَ دوی
هغوی هیڅ کله منونکي نه دي ۔ الله تعالیٰ دَ هغوی په زړونو او غوږونو باندې مهر لګولې دې ۔

وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ⑦ وَمِنَ النَّاسِ
او په سترګو دَ دوی | پرده ده | او دوی دَ پاره | عذاب (دې) | لوئې ۔ | او ځنې خلق
او دَ هغوی په سترګو پرده غوړېدلې ده او دَ هغوی دَ پاره ډیر لوئې عذاب مقرر دې ۔ او په خلقو کښې

مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ⑧
هغه دي | چه وائي | مونږ ایمان راوړې دې په الله | او په ورځ | دَ آخرت | او نه دي هغوی | ایمان راوړونکي
ځنې داسې هم دي چه وائي چه مونږ په الله تعالیٰ او دَ آخرت په ورځ ایمان لرو ، مګر هغوی مؤمنان نه دي ۔

يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ
هغوی دوکه ورکوي | الله (ته) | او هغه خلقو ته | چه ایمان ئې راوړې دې | او نه ورکوي دوکه | مګر | ځانونو خپلو ته
هغوی (په خپل خیال کښې) الله تعالیٰ او مؤمنانو ته دوکه ورکوي حال دا دې چه (په حقیقت کښې) هم خپلو ځانونو ته دوکه ورکوي

وَمَا يَشْعُرُونَ ⑨ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا ۖ
خو هغوی نه پوهیږي | دَ هغوی په زړونو کښې | بیماري (ده) | پس زیاته کړه هغوئ له | الله | بیماري
او په دې هم نه پوهیږي ۔ دَ هغوی په زړونو کښې (دَ نفاق) مرض دې پس الله دَ داسې خلقو مرض نور هم زیات کړو

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ ⑩ وَإِذَا قِيلَ
او دَ هغوی دَ پاره | عذاب (دې) | درد ورکوونکې | په وجه دَ هغې چه دروغ به ئې وئیل | او هر کله چه | وویلې شي
او هغوی دَ پاره دردناکه سزا په دې جرم کښې مقرره ده چه همیشه به ئې دروغ وئیل ۔ او کله چه هغوی ته وویلې شي

لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ ⑪
هغوی ته | (چه) فساد مه خورَوئ | په زمکه کښې | نو وائي | چه مونږ خو | اصلاح کوونکي یو
چه دَ زمکې په مخ فساد مه کوئ نو وائي چه مونږ خو صرف اصلاح کوونکي یو

أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِن لَّا يَشْعُرُونَ ⑫ وَإِذَا قِيلَ
خبردار | بیشکه هم هغه خلق | فساد کوونکي دي | لیکن | هغوی نه پوهیږي | او هر کله چه وویلې شي
خبردار! هم دغه خلق فساد کوونکي دي لیکن دوی نه پوهیږي ۔ او هر کله چه هغوی ته

ع ١ ۔ وقف لازم

لَهُمْ اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ

هغوی ته (چه) | ایمان راوړئ | څنګه چه | ایمان راوړی دی نورو خلقو | (نو) وائی | آیا مونږ (هم) ایمان راوړو

وویلے شی چه (ربښتونو) مؤمنانو په شان تاسو هم ایمان راوړئ نو وائی چه آیا مونږ (هم هغه شان) ایمان راوړو څنګه

كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ؕ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ وَلٰكِنْ

لکه څنګه چه | ایمان راوړی دی | بے عقلو | خبردار | بیشکه هم دوئ دی | کم عقل | لیکن

چه (دے) بے وقوفانو ایمان راوړے دے یاد ساتئ چه هم هغوی په خپله بے وقوفان دی ، لیکن

لَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٣﴾ وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚۖ

هغوی نهٔ پوهیږی | او هر کله چه ملاقات کوی | هغو خلقو سره | کوم چه ایمان راوړے دے | نو وائی | ایمان راوړے دے مونږه

هغوی پوهیږی نه۔ او هر کله چه دا خلق مؤمنانو سره ملاویږی نو وائی چه مونږ هم ایمان راوړے دے۔

وَاِذَا خَلَوْا اِلٰى شَيٰطِيْنِهِمْ ۙ قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ

او هر کله چه ځان له شی | دَ خپلو شیطانانو سره | (نو) وائی | چه مونږ (خو) | تاسو سره یُو

او هر کله چه دَ خپلو شیطانانو سره ځان له شی ، نو وائی چه مونږ تاسو سره یُو

اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿١٤﴾ اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ

بیشکه مونږ خو | ټوقے کوونکی یُو | الله | ټوقے کوی | دَ هغوی سره | او مهلت ورکوی هغوئ ته

مونږ خو په مسلمانانو پورے ملنډے کوؤ الله تعالیٰ هغوی ته دَ دے ملنډو سزا ورکوی او مهلت ورکوی

فِىْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١٥﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ

په ګمراهئ دَ هغوی کښے | سرګردانه شوی۔ | هم دا هغه خلق دی | کوم چه | واخستله | ګمراهی

چه په خپله سرتیزئ کښے سرو هلی بر دهلی کرځی۔ دا هغه خلق دی کوم چه دَ هدایت په بدله کښے

بِالْهُدٰى ۪ فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿١٦﴾ مَثَلُهُمْ

دَ هدایت په بدله کښے | پس ګټه ونهٔ کړه | دَ هغوی تجارت | او نهٔ شول هغوی لاره موندونکی۔ | مثال دَ هغوی

ګمراهی واخستله نو نهٔ خوځے په دے تجارت کښے ګټه وکړه او نه ئے (دَ حق) لاره بیا موندله۔ دَ دے خلقو

كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ

دَ هغه چا په شان دے | کوم چه | بل کړو | اور | پس هر کله چه روښانه کړو (اور) | چار چاپیره دَ هغه

مثال دَ هغه چا په شان دے چه اور ئے (په تیاره کښے) بل کړو نو هر کله چه ګیر چاپیره ئے رڼړا شوه نو الله تعالیٰ

ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿١٧﴾ صُمٌّۢ

نو واخستله | الله | دَ هغوی رڼړا | او پریښودل هغوی | په تیارو کښے | (چه) هیڅ نهٔ وینی | کاڼهٔ دی

دَ هغوی (دَ سترګو) رڼړا لرے کړه او په تورو تیارو کښے ئے پریښودل چه هیڅ نهٔ وینی۔ (هغوی) کاڼهٔ دی

بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿١٨﴾ ۙ اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيْهِ

ګونګیان دی | ړانده دی | پس هغوی | واپس نهٔ راګرځی | یا په شان دَ ډیر باران | دَ آسمان دے | چه وی په هغے کښے

ګونګیان دی ړانده دی نو (دَ خپلے ګمراهئ نه) بیرته نهٔ راګرځی۔ یا دَ دوی مثال دَ هغه چا دے چه په شیبو شیبو باران

ظُلُمٰتٌ وَّرَعۡدٌ وَّبَرۡقٌ ۚ يَجۡعَلُوۡنَ اَصَابِعَهُمۡ فِىۡۤ اٰذَانِهِمۡ
تیارے | او گړزار | او برېښنا | نو دوی نښاسي | گوتې خپلې | په غوږونو خپلو کښې
پرے ورېږي چه په کښې تیارے وي او گړزار او برېښنا وي نو دا خلق د تندر د گړزار د لاسه خپلې گوتې په غوږونو

مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الۡمَوۡتِ ؕ وَاللّٰهُ مُحِيۡطٌۢ بِالۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۱۹﴾
د تندر د گړزار د لاسه | د مرگ د وېرے نه | او الله | راگیر کړی دی | کافران.
کښې نښاسي د مرگ له وېرے نه او (یاد ساتئ چه) الله تعالیٰ کافران (د هر طرف نه) راگیر کړی دی.

يَكَادُ الۡبَرۡقُ يَخۡطَفُ اَبۡصَارَهُمۡ ؕ كُلَّمَاۤ اَضَآءَ لَهُمۡ
نزدے دہ (چه) | برېښنا | وُتښتوی | د دوی بینائی | هر کله چه | رڼا وُشی | په دوی باندِ
نزدے دہ چه آسمانی برېښنا د هغوی بینائی وُتښتوی هر کله چه رڼا شی په دوی نو دوئ

مَّشَوۡا فِيۡهِ ۙ وَاِذَاۤ اَظۡلَمَ عَلَيۡهِمۡ قَامُوۡا ؕ وَلَوۡ شَآءَ
(نو) روان شی | په هغې کښې | او هر کله چه | تیارهٔ شی | په دوی باندِ | نو ؤدرېږی | او کهٔ چرے | غوښتلے
په کښې روان شی. او هر کله چه په دوی باندِ تیارهٔ خوره شی نو ؤدرېږی او کهٔ چرے الله تعالیٰ

اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمۡعِهِمۡ وَاَبۡصَارِهِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ
الله | نو خامخا بهٔ بوتلل | غوږونه د دوی | او سترگے د دوی | بیشکه | الله | په هر څیز باند
غوښتلے نو د دوی د آورېدلو او کتلو قوت بهٔ ختم کړے وو، بیشکه الله تعالیٰ په هرهٔ خبرهٔ باندِ

قَدِيۡرٌ ﴿۲۰﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اعۡبُدُوۡا رَبَّكُمُ الَّذِىۡ خَلَقَكُمۡ وَالَّذِيۡنَ
قادر دے | اے خلقو! | عبادت کوئ | د خپل رب | هغه چا چه | پیدا کړئ تاسو | او هغه خلق
قدرت لری اے خلقو! د خپل ربّ عبادت کوئ کوم چه تاسو او هغه ټول چه تاسو نه وړاندِ تېر

مِنۡ قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُوۡنَ ﴿۲۱﴾ الَّذِىۡ جَعَلَ لَكُمُ الۡاَرۡضَ فِرَاشًا
چه له تاسو نه وړاندِ ؤو | دِ دے د پاره چه تاسو | تقویٰ اختیار کړئ | چا چه | جوړه کړه | تاسو د پاره | زمکه | فرش (غوړیدلے)
شوی دی، پیدا کړی دی چه تاسو پرهیزگار جوړ شئ. هغه رب کوم چه ستاسو په خاطر زمکه فرش او آسمان

وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً ۖ وَّاَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخۡرَجَ بِهٖ
او آسمان | چت | او راښکته ئے کړے | د آسمان نه | اوبهٔ | بیائے را ؤویستلو | د هغې په ذریعه
چت غوندِ جوړ کړو او د آسمان له اړخه ئے باران ؤوروولو، د کوم په ذریعه چه ئے ستاسو

مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزۡقًا لَّكُمۡ ۚ فَلَا تَجۡعَلُوۡا لِلّٰهِ اَنۡدَادًا
د میوو نه | رزق | تاسو د پاره | پس مهٔ جوړوئ | الله د پاره | شریک
د خوراک د پاره رنگ په رنگ میوے پیدا کړے نو اوس سره د پوهے خدائے پاک له

وَّاَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۲﴾ وَاِنۡ كُنۡتُمۡ فِىۡ رَيۡبٍ مِّمَّا
او تاسو | پوهېږئ | او کهٔ چرے | یئ تاسو | په شک کښې | له هغه څه نه
شریکان مهٔ جوړوئ. او کهٔ چرے تاسو ته په دے (کتاب) کښې کوم چه مونږ په خپل

نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ ۪ وَادْعُوْا

چه نازل کړو مونږ | په خپل بنده باندې | نو راوړئ | .یو سورت | دَ دې په شان | او راوغواړئ

بنده (محمد ﷺ) باندې نازل کړې دې څۀ شک وی نو تاسو هم دا سې یو سورت جوړ (کړې) راوړئ او دَ الله تعالیٰ

شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٢٣﴾ فَاِنْ

خپل مدد ګاران | سوا | دَ الله نه | که چرې | یئ تاسو | رښتونی | خو کۀ

نه سوا خپل ټول مدد ګاران هم راوغواړئ. کۀ چرې تاسو د په خپله دعوی کښې) رښتونی یئ. بیا کۀ چرې تاسو

لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِیْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ

تاسو ونۀ کړې شئ | او هیڅ کله به ئې ونۀ کړې شئ | نو ووېرېږئ | دَ اور نه | هغه | چه خشاک ئې | خلق

(دا) ونۀ کړې شئ او هیڅ کله به ئې ونۀ کړې شئ نو دَ هغه اور نه ووېرېږئ چه خشاک به ئې (نافرمانه) انسانان

وَالْحِجَارَةُ ۖۚ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٤﴾ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او کانړی دی | تیار کړې شوې دې | دَ کافرانو دَ پاره | او زېرې ورکړه | هغو (خلقو) ته | چه ایمان ئې راوړې دې

کانړی وی، (دا اور) کافرانو دَ پاره تیار کړې شوې دې. او (اے نبی ﷺ!) هغه خلقو ته کوم چه ایمان راوړې او

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ

او کار ونه ئې کړی دی | ښه | چه بیشکه دَ هغوی دَ پاره | باغونه دی | بهیږی | دَ هغې لاندې | نهرونه

نیک عمل ئې کړی، زیرے ورکړه چه هغوی دَ پاره به داسې باغونه وی چه دَ هغې لاندې به نهرونه بهیږی.

كُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوْا هٰذَا الَّذِیْ

کله چه هم | ورکړې شی هغوی ته | دَ هغې نه | څۀ میوه | دَ خوراک دَ پاره | نو دوی به وائی | چه دا خو | هم هغه ده

هر کله چه به هغوی ته (دَ دې باغونو نه) څۀ میوه خوراک دَ پاره ورکولې شی. نو وائی به دا خو مونږ ته وړاندې

رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ وَاُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا ؕ وَلَهُمْ

چه راکړې شوې وه مونږ ته | له دې نه وړاندې | او ور به کړې شی هغوی ته | (میوه) په شان دَ یو بل | او دَ هغوی دَ پاره

هم راکړې شوې ده. او هغوی ته به (دَ دُنیا دَ میوو سره) متشابه (میوې) ورکولې شی، او په دې (باغونو)

فِيْهَآ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۙۗ وَّهُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٥﴾ اِنَّ اللّٰهَ

په دې (جنتونو) کښې | بیبیانې (به وی) | پاکې | او هغوی به په دې (باغونو) کښې | همیشه (وی) | بیشکه الله

کښې به دَ هغوی دَ پاره پاکې ښځې وی، او هغوی به په دې باغونو کښې همیشه وی، بیشکه الله دَ دې خبرې

لَا يَسْتَحْیٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا ؕ فَاَمَّا الَّذِيْنَ

نۀ شرمیږی | چه بیان کړی | څۀ مثال | دَ ماشی | یا دَ دې نه زیات (معولی) | پس کوم خلقو چه

نه نۀ شرمیږی چه هغه دَ ماشی یا دَ دې نه هم دَ زیات (معولی) څیز مثال (دَ بندګانو دَ پوهولو دَ پاره) بیان کړی، پس کوم خلقو چه

اٰمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

ایمان راوړې دې | هغوی خو پوهیږی | چه دا مثال حق دے | دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه | او کوم خلق چه

ایمان راوړې دې هغوی پوهیږی چه دا (مثال) دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه برحق دے، لیکن هغه خلق کوم چه

وقف لازم

بِهِ كَثِيرًا يُضِلُّ مَثَلًا بِهٰذَا اللّٰهُ أَرَادَ مَاذَآ فَيَقُولُونَ كَفَرُوا

کافران دی | هغوی وائی | څهٔ اراده ده | دَالله | دَدے مثال نه | ګمراه کوی | په دے سره | ډیر

انکار وُکړو وائی چه دَالله دَدے (مثال دَ بیانولو) نه څهٔ مقصد دے؟ الله ډیر خلق (دَ دے مثالونو په ذریعه) ګمراه

وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ ﴿٢٦﴾

او هدایت کوی | په دے سره | ډیرو ته | او نهٔ | بے لارے کوی په دے سره | مګر فاسقان

کوی او ډیرو ته دَ دے په ذریعه هدایت کوی۔ او په دے سره هغه صرف نافرمانه خلق ګمراه کوی۔

الَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ اللّٰهِ مِن بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ

کوم چه | ماتوی | وعده دَ خدائے | دَ هغے دَ پخولو نه پس | او پریکوی

هغه خلق چه دَ خدائے پاک سره په بنهٔ شان سره پخه کړے وعده بیا بیا ماتوی او هغه تعلقات ختموی

مَا أَمَرَ اللّٰهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ۚ أُولٰئِكَ هُمُ

هغه (تعلق) چه حکم ورکړو الله | چه پیوند کړے شی | او فساد خوروی | په زمکه کښے | هم هغه خلق دی

دَ کوم دَ جوړولو چه خدائے پاک حکم کړے دے، او په زمکه کښے فسادونه جوړوی هم دغه خلق

الْخَاسِرُونَ ﴿٢٧﴾ كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا

زیان کاران | څنګه | انکار کوئ تاسو | دَ الله | او (حال دا دے چه) تاسو وئ | مړهٔ (غیر موجود)

زیان کاران دی، تاسو دَ خدائے (دَ وجود) نه څهٔ رنګ انکار کولے شئ حال دا دے چه تاسو موجود نهٔ وئ

فَأَحْيَاكُمْ ۖ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٨﴾

پس هغهٔ ژوندی کړئ تاسو | بیا به هم هغه تاسو مړهٔ کړی | بیا به ژوندی کړی تاسو | بیا به دَ هغهٔ طرفته | تاسو ګرځولے شئ۔

هغه تاسو پیدا کړئ، بیا به تاسو له مرګ راولی، بیا به مو (په آخرت کښے) ژوندی کړی، بیا به دَ هغهٔ طرفته راګرځولے شئ۔

هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوَىٰ

هم هغه دے کوم چه | پیدا کړل تاسو دَ پاره | څهٔ چه په زمکه کښے دی | ټول | بیائے اراده وُکړه

الله هغه ذات دے کوم چه تاسو دَ پاره دَ زمکے ټول څیزونه پیدا کړل۔ بیا آسمان طرف ته

إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ

آسمان طرفته | پس سم ئے کړل هغه | اُووهٔ | آسمانونه | او هغه | په هر څیز بانِدِ

متوجه شو او اووهٔ آسمانونه ئے پیدا کړل۔ او هغه په هر څیز بانِدِ

عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ

بنهٔ پوهه دے۔ | او هر کله چه وُوئیل | ستا ربّ | فرښتو ته | چه زهٔ جوړوونکے یم | په زمکه کښے

پوهیږی۔ او (اے نبی! یاد کړه) کله چه ستا ربّ فرښتو ته وُوئیل چه زهٔ په زمکه بانِدِ یو نائب جوړول

خَلِيفَةً ۖ قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ

(یو) جانشین | وُوئیل هغوی | آیا جوړوے ته | په دے کښے | داسے څوک | چه فساد به کوی | په دے کښے | او توئیوی به

غواړم۔ فرښتو عرض وُکړو (چه اے الله!) آیا داسے مخلوق پیدا کوے چه فسادونه به کوی او (دَ یو بل) وینے



ع ۳ ۹ ۳

الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ۖ قَالَ
وینه | او مونږ | پاکی بیانوؤ | ستا دَ حمد سره | او بزرګی بیانوؤ | ستا | وُفرمائیل (الله)
به تویوی حال دا دے چه مونږ (هر وخت) ستا حمد او ثناء کښے مشغول یُو ۔ الله ورته په جواب کښے
إِنِّيٓ أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٠﴾ وَعَلَّمَ ءَادَمَ الْأَسْمَآءَ
بیشکه زهٔ | پوهیږم | په هغه څهٔ چه نهٔ پوهیږئ تاسو | او وُښودل (الله) | آدمؑ ته | نومونه
وُوئیل چه زهٔ په هغه کارونو ښهٔ پوهیږم چه تاسو پرے نهٔ پوهیږئ ۔ او الله تعالیٰ آدمؑ ته ټول نومونه
كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلَٰٓئِكَةِ فَقَالَ أَنۢبِـُٔونِي بِأَسْمَآءِ
دَټولو (څیزونو) | بیائے | وړاندِ کړل هغه څیزونه | فرښتو ته ۔ | او وُئے فرمائیل | وُښایئ ماته | نومونه
وُښودل بیائے هغه څیزونه فرښتو ته وړاندِ کړل ۔ او وُئے وئیل چه ماته دَ دے نومونه وُښایئ
هَٰٓؤُلَآءِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٣١﴾ قَالُوا۟ سُبْحَٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ
دَ دے (څیزونو) | کهٔ چرے یئ تاسو | رښتونی ۔ | هغوی وُوئیل | تهٔ پاک یئے | مونږ ته (هیڅ) علم نشته
کهٔ چرے تاسو په خپله دعوٰی کښے رښتونی یئ (په دے باندِ فرښتو) وُوئیل اے الله! تهٔ پاک یئے ۔ مونږ خو دومره
إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَآ ۖ إِنَّكَ أَنتَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ﴿٣٢﴾ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ
مګر | کوم چه | تا مونږ ته ښودلے دے | بیشکه هم تهٔ یئے | دانا | دَ حکمت خاوند | وُ فرمائیل | اے آدمؑ!
پوهیږو څومره چه تا مونږ ته علم راکړے دے بیشکه چه تهٔ په هر څهٔ باندِ پوهه او دَ حکمتونو مالک یئے ۔ (الله) وُفرمائیل اے آدمؑ!
أَنۢبِئْهُم بِأَسْمَآئِهِمْ ۖ فَلَمَّآ أَنۢبَأَهُم بِأَسْمَآئِهِمْ قَالَ أَلَمْ أَقُل
وُښایه دوی ته | نومونه دَ دے | پس هر کله چه | هغهٔ وُښودل هغوی ته | دَ هغے نومونه | نو وُئے فرمائیل | آیا ما نهٔ وُو وئیلی
تهٔ دوی ته دَ دے نومونه وُښایه، پس هر کله چه آدمؑ فرښتو ته دَ هغے نومونه وُښودل نو ارشاد وُشو چه آیا ما تاسو ته
لَّكُمْ إِنِّيٓ أَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَأَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ
تاسو ته | چه هم زهٔ پوهیږم | په پټو خبرو | دَ آسمانونو | او دزمکے | او زهٔ پوهیږم په هغے چه تاسو ئے ښکاره کړی
نهٔ وُو وئیلی چه زهٔ دَ آسمانونو او دَ زمکے په پټو رازونو باندِ ډیر ښهٔ پوهیږم او ستاسو په ښکاره خبرو او په
وَمَا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٣٣﴾ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا۟ لِءَادَمَ
او په هغه څهٔ | چه تاسو ئے | پټوئ | او هر کله چه وُوئیل مونږه | فرښتو ته | سجده وُکړئ | آدمؑ ته
پټو خیالاتو باندِ هم ښه پوهه یم ۔ او (یاد کړه) کله چه مونږ فرښتو ته حکم وُکړو چه آدمؑ ته سجده وُکړئ
فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰ وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ
پس سجده وُکړه دوی | سِوا | دَ ابلیس نه | هغهٔ انکار وُکړو | او تکبّر ئے وُکړو | او شو
نو بغیر دَ ابلیس نه نورُو ټولو سجده وُکړه هغهٔ انکار وُکړو او لوئی ئے وُکړه او دَ کافرانو په ټولی
مِنَ الْكَٰفِرِينَ ﴿٣٤﴾ وَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ
دَ کافرانو نه ۔ | او مونږ وُوئیل | اے آدمؑ! | وُسیږه ته | او بی بی ستا | په جنت کښے
کښے شمیر شو ۔ او مونږ حکم وُکړو چه اے آدمؑ! تهٔ او ستا بی بی په جنت کښے وُسیږئ ۔

وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا ص وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ

او خورئ | دَ هغې نه | فراخه | كوم ځائے نه چه غواړئ | او مهٔ نزدے كيږئ | دِے اُونې ته ۔
او دَ كوم ځائے نه مو چه خوښه وی بښهٔ خوړئ او (ياد ساتئ) دغې (خاص) اُونې ته نزدے مهٔ ورځئ

فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿۳۵﴾ فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا

پس شئ به تاسو | دَ ظالمانو نه | پس دوكه وركړه هغوی ته | شيطان | دَ هغې نه | پس راوے ويستل دواړه
بيا شيطان دواړه وُخوځول او دَ هغه ځائے نه ئے وُويستل
ګنی په ځان به زياتے وُكړئ ۔

مِمَّا كَانَا فِيهِ ص وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ

دَ هغه (جنت) نه چه هغه دواړه وو | په هغې كښے | او مونږ وُوئيل | تاسو ټول لاندې كوزشئ | تاسو نه ځنے | دَ ځنو
كوم ځائے چه هغه دواړه وُو | او مونږ حكم وركړو چه (ښكته زمكے ته) كوزشئ تاسو به دَ يو بل دُښمنان

عَدُوٌّ ج وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِينٍ ﴿۳۶﴾

دښمنان (به وی) او تاسو دَ پاره | په زمكه كښے | دَ استوګنے ځائے (دے) | او فائده | ترڅهٔ موده پورے ۔
او تاسو دَ پاره په زمكه باندې ترېو وخته پورے استوګنه او ګذاره مقرر كړے شوے ده ۔
يئي

فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ط اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ

بيا زده كړے | آدم ؑ | دَ خپل رب نه | څو كلمے | پس توجه وفرمائيله په هغهٔ الله | بيشكه | هم هغهٔ ؑ لوئے توبه قبلونكے
بيا آدم عليه السلام دَ خپل رب نه (دَ معافئ) يو څو كلمے زده كړے نو الله دَ دهٔ توبه قبوله كړل بيشكه الله تعالىٰ معاف كوونكے

الرَّحِيمُ ﴿۳۷﴾ قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا ج فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ

مهربان | وُفرمائيل مونږ | ښكته لاړ شئ | دَ دے ځائے نه | ټول | پس كهٔ چرے | راشي تاسو ته
مهربان دے ۔ مونږ ورته ووئيل چه دَ دِے ځائے نه ټول په يو ځائے كوزشئ بيا چه تاسو ته زما دَ اړخ ته

مِّنِّىْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَاىَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ

زما دَ طرف نه | څهٔ هدايت | پس چا چه پيروی وُكړه | زما دَ هدايت | نو نهٔ به څهٔ ويره وی | په هغوی
هدايت درشي نو چا چه زما د (كتاب) هدايت پيروی وُكړه هغوی له نهٔ هيڅ قسم له ويره شته او نهٔ

وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

او نهٔ به هغوی غمژن وی ۔ | او كومو خلقو چه | انكار وُكړو | او دروغ ئے وُګڼړل | زمونږ آيتونه | هم هغهٔ دَ
به پرے خفګان راځي ۔ او چا چه انكار وُكړو او زما آيتونه ئے دروغ وُګڼړل هغوی

اَصْحٰبُ النَّارِ ج هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴿۳۹﴾ ع يٰبَنِىٓ اِسْرَآءِيلَ اذْكُرُوا

دوزخيان | هغوی به | په هغې كښے | هميشه وی | اے بنی اسرائيلو ! | ياد كړئ
دوزخيان دی او په دوزخ كښے به تل ترتله پراتهٔ وی اے دَ يعقوب ؑ اولاده ! زما هغه

نِعْمَتِىَ الَّتِىٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَوْفُوا بِعَهْدِىٓ اُوفِ

زما نعمتونه | كوم چه | ما كړی دی | په تاسو | او پوره كړئ | وعدهٔ زما | چه پوره كړم
احسانات را ياد كړئ كوم چه ما په تاسو كړی دی او ما (سره كړے) وعده پوره كړئ چه زهٔ هم تاسو

بِعَهْدِكُمْ ۚ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴿٤٠﴾ وَآمِنُوا بِمَا أَنْزَلْتُ

ستاسو عهد | او هم له ما نه | ويريږئ | او ايمان راوړئ | هغه (كتاب) باندې | چه ما نازل كړو

شوے وعده پوره كړم او صرف هم زما نه ويريږئ او په هغه كتاب باندې ايمان راوړئ كوم چه ما ستاسو د

مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوا أَوَّلَ كَافِرٍ بِهِ ۖ

چه تصديق كوى | د هغه څه چه | تاسو سره دى | او مه جوړيږئ (تاسو) | وړومبنى انكاريان د دے

كتابونو په تصديق كښے نازل كړے دے ، او د ټولو نه وړاندې هم تاسو د دے منكر مه جوړيږئ

وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ ﴿٤١﴾ وَلَا تَلْبِسُوا

او مه اخلئ | زما په آيتونو | قيمت لږ | او هم له ما نه | ويريږئ | او مه ګډوئ

او زما د آيتونو په بدل كښے لږه (دنياوى) معاوضه مه اخلئ او صرف له ما نه ويريږئ . او رښتيا

الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤٢﴾ وَأَقِيمُوا

حق | د دروغو سره | او (مه) پټوئ | رښتونى خبره | او تاسو ښه پوهيږئ | او د دروئ

په دروغو كښے مه ګډوئ ، او رښتيا مه پټوئ په دے حال كښے چه تاسو په حقيقت باندې پوهيږئ او مونځ

الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴿٤٣﴾ أَتَأْمُرُونَ

مونځ | او وركوئ | زكوٰة | او ركوع كوئ | د ركوع كوونكو سره . | آيا حكم كوئ تاسو

كوئ او زكوٰة ادا كوئ او د عاجزى كوونكو سره (په شريكه الله ته) عاجزى كوئ آيا تاسو نورو خلقو ته خو

النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ وَأَنْتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ ۚ

خلقو (ته) | د نيكئ | او هيروئ تاسو | ځانونه خپل | او تاسو | تلاوت كوئ | د كتاب

د نيكئ حكم وركوئ او خپل ځانونه درنه هيردى حال دا دے چه تاسو د الله كتاب لولئ .

أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٤٤﴾ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ

نو آيا تاسو عقل نه لرئ ؟ | او مدد غواړئ | په صبر | او مونځ (سره) | او يقيناً هغه | خامخا درونده ده

آيا تاسو نه پوهيږئ ؟ پكار دى چه په صبر كولو او مونځ اداكولو سره د الله نه مدد غواړئ ، بيشكه چه مونځ ګران

إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ ﴿٤٥﴾ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُمْ مُلَاقُو رَبِّهِمْ

مګر | په عاجزى كوونكو (نه) | كوم چه يقين لرى | چه هغوى | ملاقات كوونكى دى | خپل رب سره

كار دے ، مګر هغه چا ته (آسان دے) چه د الله نه ويريږى ، چه د ا ګنړى چه هغوى د خپل رب سره ملاويدونكى دى .

ع ٥ ٥ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ﴿٤٦﴾ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ

او چه هغوى | د هغه طرف ته | وركرځيدونكى دى | اے بنى اسرائيلو ! | ياد كړئ | زما نعمت

او دوى به د هغه طرف ته وركرځى . اے د يعقوب اولاده ! زما هغه احسانات ياد كړئ

الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّي فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٤٧﴾

هغه چه | ما كړے وو | په تاسو | او دا چه ما | فضيلت دركړے وو تاسو ته | په ټولو عالمونو .

كوم چه ما په تاسو كړى دى او دا چه ما تاسو ته په ټول اهل جهان باندې فضيلت دركړے وو

وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّلَا يُقْبَلُ
او ووېرېږئ | د هغه ورځې نه | چه په كار به نه راځي | يو كس | د بل كس | په څه څيز كښې | او نه به شي قبلولے
او ځان د هغه ورځې (د عذاب) نه بچ وساتئ چه هيڅوک به د بل چا هيڅ په كار نه راځي او نه به د چا سفارش

مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿٤٨﴾
د هغه نه | (څه) سفارش | او نه | به اخستے شي | د هغه نه | (څه) معاوضه | او نه به د هغوئ څه مدد كولے شي
قبلولے شي - او نه به د چا نه څه معاوضه اخستے شي او نه به د هغوى مدد كولے شي -

وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ
او كله چه خلاصے دركړه مونږ تاسو ته | قوم د فرعون نه | چه ده كولو به هغوى تاسو ته | سخت عذاب
او (ياد كړئ) كله چه مونږ تاسو ته د فرعون د قوم نه خلاصے دركړه چه تاسو ته به ئے سخت عذاب رسولو

يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ؕ وَفِيْ ذٰلِكُمْ
چه ذبح كول به ئے | ستاسو ځامن | او ژوندئ به ئے پرېښودلے | ستاسو ښځے | او په دے كښے ستاسو
ستاسو ځامن به ئے ذبح كول او ستاسو جينكئ به ئے (د وينځو توب د پاره) ژوندئ ساتلے - او په دے كښے

بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿٤٩﴾ وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ
ازمېښت وو | ستاسو د رب د طرف نه | ډېر لوئے - | او كله چه | وشلولو مونږ | تاسو د پاره | سمندر
ستاسو د پروردګار د طرف نه ډېر لوئے ازمېښت وو - او هغه وخت (را ياد كړئ) چه مونږ تاسو د پاره سمندر وشلولو

فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿٥٠﴾ وَاِذْ
پس خلاصے دركړه مونږ تاسو ته | او مونږ غرق كړلو | قوم د فرعون | او تاسو | ورته كتل | او هر كله چه
نو تاسو مو خلاص كړئ او ستاسو په وړاندې مو د فرعون قوم ډوب كړلو - او بيا مونږ موسىٰ سره

وٰعَدْنَا مُوْسٰٓى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ
وعده واخستله مونږ | موسىٰ نه | د څلوېښتو | شپو | بيا | جوړ كړو تاسو | څخے (معبود) | د هغه نه پس
(د تورات وركولو د پاره) د څلوېښتو شپو وعده وكړه نو تاسو د هغه نه پس (د سامري په وينا) څخے (په خدائے) ونيولو (د هغه شان)

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿٥١﴾ ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ
او تاسو | ظالمان وئ | بيا معاف كړئ مونږ | تاسو | پس له دے نه | چه تاسو
تاسو په خپل ځان باندې ظلم وكړو - بيا مونږ تاسو د دے (لوئے جرم) نه پس هم معاف كړئ چه تاسو

تَشْكُرُوْنَ ﴿٥٢﴾ وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ
شكر وكړئ - | او هر كله چه مونږ وركړو | موسىٰ ته | كتاب | او فيصله كن قانون | چه تاسو
شكر وباسئ - او (ياد كړئ) كله چه مونږ موسىٰ ته كتاب او فيصله كن قانون وركړو چه تاسو سمه

تَهْتَدُوْنَ ﴿٥٣﴾ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ
لاره بيا مومئ - | او هر كله چه | ووئيل | موسىٰ | خپل قوم ته | اے زما قومه! | بېشكه تاسو | ظلم وكړو
لاره بيا مومئ - او (هغه وخت هم ياد كړئ) كله چه موسىٰ خپل قوم ته ووئيل چه اے زما قومه! بېشكه تاسو

اَنۡفُسَكُمۡ بِاتِّخَاذِكُمُ الۡعِجۡلَ فَتُوۡبُوۡۤا اِلٰى بَارِئِكُمۡ فَاقۡتُلُوۡۤا
په خپل ځان | په (معبود) نیولو | دَ شخې | پس توبه وُکړئ | دَ خپل خالق په بارګاه کښې | بیا قتل کړئ
په معبود جوړولو په خپلو ځانونو باندې لوئے ظلم وکړو پس دَ خپل خالق طرف ته رجوع وُکړئ او خپل کسان
اَنۡفُسَكُمۡ ذٰلِكُمۡ خَيۡرٌ لَّكُمۡ عِنۡدَ بَارِئِكُمۡ فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ
خپل ځانونه | هم دا غوره ده | تاسو دَ پاره | ستاسو دَ خالق په نزد | بیا هغهٔ توبه قبوله کړه | ستاسو
وُوژنئ (چا چه شرک وکړو) چه تاسو دَ پاره ستاسو دَ پروردګار په نزد هم دا غوره ده بیا الله ستاسو توبه قبوله کړه ،
اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ ۵۴ وَاِذۡ قُلۡتُمۡ يٰمُوۡسٰى لَنۡ نُّؤۡمِنَ
بیشکه هم هغه دے | لوئے توبه قبلوونکے | نهایت رحم والا | او هر کله چه تاسو ووئیل | اے موسیٰ! | مونږ به هرګز یقین نه کوو
بیشکه چه هغه معاف کوونکے مهربان دے ۔ او (یاد کړئ) هر کله چه تاسو ووئیل اے موسیٰ! مونږ به هرګز په تا
لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهۡرَةً فَاَخَذَتۡكُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنۡتُمۡ
ستا | ترڅو چه وُ (نهٔ) ګورو | الله | ښکاره | پس وُنیوله تاسو | تندر | او تاسو
ایمان نهٔ راوړو ترڅو مے چه الله په خپلو سترګو ښکاره وُنه ګورو نو تاسو باندې تندر راغے او تاسو ورته ښکاره کتل او
تَنۡظُرُوۡنَ ۵۵ ثُمَّ بَعَثۡنٰكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَوۡتِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ ۵۶
کتل | بیا مونږ تاسو ژوندی کړئ | ستاسو دَ مرګ نه پس | چه تاسو | شکر وکړئ.
تاسو مړهٔ شوئ) .بیا مونږ ستاسو دَ مرګ نه پس تاسو بیا ژوندی کړئ چه تاسو شکر وکړئ -
وَظَلَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ الۡغَمَامَ وَاَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكُمُ الۡمَنَّ وَالسَّلۡوٰى
او سورے وکړو مونږ | په تاسو | دَ وریځے | او نازل کړل مونږ | په تاسو | ترنجبین | او مرزان
او مونږ په تاسو دَ وریځو سورے جوړ کړو او په تاسو مو مَن او سلوٰی نازل کړل او وُمو ووئیل
كُلُوۡا مِنۡ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰكُمۡ وَمَا ظَلَمُوۡنَا وَلٰكِنۡ كَانُوۡۤا
(چه) خورئ | دَ پاکو څیزونو نه | کوم چه مونږ تاسو ته درکړل | او هغوی په مونږ ظلم وُنهٔ کړو | لیکن هغوی پخپله
چه کوم پاک څیزونه مونږ تاسو ته درکړی دی هغه (په شوق سره) خورئ بیا هغوی زمونږ هیڅ نقصان وُنهٔ کړو بلکه په
اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ ۵۷ وَاِذۡ قُلۡنَا ادۡخُلُوۡا هٰذِهِ الۡقَرۡيَةَ فَكُلُوۡا مِنۡهَا
په خپلو ځانونو | ظلم کولو | او هر کله چه مونږ وُوئیل | داخل شئ | په دے کلی کښے | بیا خورئ | دَ دے نه
خپلو ځانونو لے ذیاتے کولو او هر کله چه مونږ وُوئیل چه په دے کلی کښے داخل شئ او دَ دے نه کوم ځائے چه
حَيۡثُ شِئۡتُمۡ رَغَدًا وَّادۡخُلُوا الۡبَابَ سُجَّدًا وَّقُوۡلُوۡا حِطَّةٌ
کوم ځائے چه غواړئ تاسو | په فراخئ سره | او داخل شئ | په دروازه کښے | سجده کوونکی | او وایئ | توبه
غواړئ بنهٔ وُخورئ او (دَ ښار) په دروازه کښے سجده کوونکی داخل شئ او بخښنه غواړئ (چه)
نَّغۡفِرۡ لَكُمۡ خَطٰيٰكُمۡ وَسَنَزِيۡدُ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۵۸ فَبَدَّلَ
مونږ به معاف کړو تاسو ته | ستاسو خطاګانے | او زیاته به درکړو بدله | نیکی کوونکو ته | پس بدله کړله
مونږ ستاسو خطاګانے معاف کړو او نیکانو ته به زیات اجر ورکړو- بیا ظالمانو هغه

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا

هغو ظالمانو | (بیوه بله) کلمه | په ځائے دَ هغې | څۀ چه وئیلے شوی وُو | هغوی ته | پس مونږ نازل کړو

نو بدلے شوے لفظ په بل لفظ بدل کړو (او استغفار ئے توبه جوړه کړه) نو مونږ په ظلم کوو نکو باندَ دَ

عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿٥٩﴾ ع ٦

په هغو ظالمانو | عذاب دَ اسمان نه | په وجه دَ هغوی دَ نافرمانئ

اسمان نه عذاب راوُلیږلو ځکه چه هغوی نافرمانه شوی وو۔

وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ

او کله چه | اوبهٔ وُغوښتلے | مُوسیٰ | دَ خپل قوم دَ پاره | نو مونږ ووئیل | وُوهه | په خپله همسا | کانړے

او (یاد کړئ) کله چه موسیٰ دَ خپل قوم دَ پاره اوبهٔ وغوښتلے نو مونږ ورته ووئیل چه دغه کنټه په خپله همسا وُوهه

فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ

پس روانے شوے | دَ هغې نه | دولس | چینے | وُپیژندلو | هر قوم | خپل دَ څښلو ځائے

نو دَ هغې نه دولس چینے راوُبهیدے هرے قبیلے خپل خپل سبیل جُدا جُدا وُپیژندو۔

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٦٠﴾

خورئ | او څښئ | دَ الله دَ رزق نه | او مهٔ گرځئ | په مزکه کښے | فساد کوونکی

او مونږ حکم ورکړو چه) دَ الله دَ ورکړے شوی رزق نه خورئ څښئ او په مزکه کښے فساد مهٔ کوئ۔

وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ

او هر کله چه تاسو ووئیل | اے موسیٰ | مونږ به هرګز صبر نهٔ کوُو | په خوراک باندے | هم دَ یو (قسم) | پس دُعا وکړه

او (یاد کړئ) کله چه تاسو ووئیل چه اے موسیٰ! مونږ هرګز دَ یو قسم په خوراک باندِ صبر نهٔ شو کولے پس تهٔ دَ خپل

لَنَا رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ مِنْۢ بَقْلِهَا

مونږ دَ پاره دَ خپل ربّ | چه پیدا کړی | زمونږ دَ پاره | کوم څیزونه چه راټوکوی | مزکه | (لکه) ساګ

ربّ نه مونږ دَ پاره دُعا وُکړه چه مونږ دَ پاره دَ مزکے نه راټوکیدونکی څیزونه مثلاً ساګ

وَقِثَّآئِهَا وَفُوْمِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ؕ قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ

او بادرنګ | او غنم | او مسور | او پیاز | (موسیٰ) وُوئیل | آیا تاسو اخستل غواړئ

بادرنګ غنم مسور او پیاز پیدا کړی۔ (موسیٰ) وُوئیل آیا تاسو دَ یو غوره څیز

الَّذِىْ هُوَ اَدْنٰى بِالَّذِىْ هُوَ خَيْرٌ ؕ اِهْبِطُوْا مِصْرًا فَاِنَّ لَكُمْ

هغه | کوم چه معمولی دے | په بدله دَ هغے کښے | کوم چه غوره دے | لاړ شئ | یو ښار ته | هلته به وی تاسو دَ پاره

په بدله کښے یو معمولی څیز اخستل غواړئ؟ پس لاړ شئ یو ښار ته داخل شئ څۀ چه تاسو

مَّا سَاَلْتُمْ ؕ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ

کوم چه تاسو غواړئ | او واچولے شو | په دوی باندِ | ذلت | او محتاجی | او هغوی راغلل | په غضب کښے

غواړئ هغه به تاسو ته به ملاؤ شی او هغوی باندِ ذلت او محتاجی مسلط کړے شول او هغوی دَ الله دَ غضب

مِّنَ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ

دَ الله | دا | په دے وجه چه هغوی | انکار کولو | دَ الله دَ آيتونو | او قتلول به ئے

مستحق شول په دے وجه چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو نه انکار کړے ؤو او دوی به په

النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّ كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿٦١﴾ ع

نبیان | په ناحقه | دا | په دے وجه چه | هغوی نافرمانی وُکړه | او حد نه به زیاتیدل ۔

ناحقه پیغمبران وژل او دا په دے وجه چه هغوی به گناه کوله او له حد نه به وتل

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰى وَالصّٰبِـِٔيْنَ

بیشکه کوم خلقو چه | ایمان راوړو | او هغه چه یهودیان شول | او نصرانیان (عیسایان) شول | او صابیان شول

بیشکه کوم خلق چه مؤمنان دی او هغه چه یهودیان، نصرانیان او صابیان شول ۔

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ

هغه چا چه ایمان راوړو | په الله | او په ورځ دَ آخرت | او عمل ئے وُکړو | نیک | نو هغوی دَ پاره | دَ هغوی اجر دے

دَ دوی نه چه کوم په الله تعالیٰ او په ورځ دَ آخرت ایمان راوړی او نیک عمل وُکړی نو دَ هغوی دَ پاره دَ هغوی

عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٦٢﴾ وَاِذْ اَخَذْنَا

دَ هغوی دَ رب سره | او نه به څه ویره وی | په هغوی | او نه به هغوی | غمژن وی | او هر کله چه واخستو مونږ

دَ رب سره اجر دے او نه به په هغوی څه ویره وی او نه به هغوی غمژن وی او (یاد کړئ) کله چه مونږ

مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ

کلکه وعده تاسو نه | او اُوچت کړو مونږ | تاسو دَ پاسه | کوهِ طور | (چه) وُنیسئ | کوم (هدایت) چه مونږ درکړے دے تاسو

تاسو نه وعده واخسته او ستاسو دَ پاسه مو کوهِ طور اُوچت کړو، وُدرولو (او حکم مو درکړے ؤو چه) کوم هدایت نامه مونږ تاسو

بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿٦٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ

مضبوطئ سره | او یاد ساتئ | څه چه په دے کښے دی | چه تاسو | پرهیزګاران جوړ شی | بیا | تاسو مخ واړولو

درکړے ده هغه په کلکه وُنیسئ او کوم (هدایت) چه په دے کښے دے هغه یاد ساتئ چه تاسو پرهیزګاره جوړ شئ. بیا تاسو دَ دے نه پس

مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَكُنْتُمْ

پس | له دے نه | پس که چرته نه وے | فضل | دَ الله | په تاسو | او دَ هغه مهربانی | نو شوی به وئی

مخ وُګرځولو ۔ پس که چرے دَ الله تعالیٰ فضل او مهربانی په تاسو نهٔ وے نو تاسو به ضرور

مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ

تاسو دَ نقصان مونددونکو نه ۔ | او بیشکه پوهه یئ تاسو | په هغه کسانو | چه زیاتے ئے وکړو | له تاسو نه

نقصان موندے وُو ۔ او یقینًا تاسو ته دَ هغو خلقو حال هم معلوم شوے دے کوم چه دَ تاسو نه دَ خالی دَ ذر

فِى السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِـِٔيْنَ ﴿٦٥﴾ فَجَعَلْنٰهَا

دَ سبت په باره کښے | پس ووئیل مونږ | هغوی ته | چه جوړ شئ | بیزوګان | ذلیله | پس وګرځولو مونږ دا قصه

(په حقله دَ الله دَ حکمونو نه) تجاوز وکړو نو مونږ دوی ته وُوئیل چه (ځئ اوس) ذلیل او خوار بیزوګان جوړ شئ پس مونږ دا قصه

نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَ

عبرت | دَهغو دَپاره | چه هغه وخت (موجود) وو | اوکوم چه وروستو راتلونکی وُو | او

دَدے زمانے دَپاره اودِے نه پس راتلونکو خلقو دَپاره دَ عبرت ذریعه او دَ الله دَعذاب نه ویریدونکو

مَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٦٦﴾ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖٓ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ

نصیحت | دَ پرهیزګارانو دَپاره | اوکله چه ووئیل | موسیٰ ؑ | خپل قوم ته | چه بیشکه الله | حکم درکوی تاسو ته

دَپاره نصیحت جوړ کړو ـ او ریاد کړه) کله چه موسیٰ خپل قوم ته ووئیل چه الله تاسو ته حکم درکوی

اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ؕ قَالُوْٓا اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ؕ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ

چه ذبح کړئ | یوه غوا | هغوی ووئیل | آیا ته مونږ پورے توقے کوے | ووئیل | زهٔ پناه غواړم | دَ الله

چه یوه غوا ذبح کړئ هغوی ووئیل آیا ته مونږ پورے توقے کوے (موسیٰ ؑ) ووئیل، الله م دِ (دَ دے خبر

اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ

له دے نه چه زهٔ شم | دَ جاهلانو نه | هغوی ووئیل | دُعا وُکړه | مونږ دَپاره | دَ خپل رب نه

نه) په پناه کښے وُساتی چه په تاپوهه خلقو کښے دِ شمیر شم ـ هغوی ووئیل (کهٔ داسے وی نو) خپل رب ته ووایه چه مونږ ته

يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ؕ قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ

چه بیان کړه | مونږ ته | څنګه ده هغه (غوا) | ووئیل | هغه | فرمائی | چه هغه | یوه غوا ده | نهٔ بوډئ

په واضحه ووائی چه دا غوا به څنګه وی ـ (موسیٰ ؑ) ووئیل چه الله فرمائی چه دا غوا به داسے وی چه نهٔ بوډئ وی

وَّلَا بِكْرٌ ؕ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذٰلِكَ ؕ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿٦٨﴾ قَالُوا ادْعُ

او نهٔ چیره وړه | خوانه (ده) | په مینځ دَ دے ده | پس وکړئ | هغه کوم چه درته حکم کیږی | هغوی ووئیل | دُعا وُکړه

او نهٔ وړه، دَ درمیانی عمر به وی، پس تاسو ته چه کوم حکم درکړے شوے دے په هغے عمل وُکړئ ـ هغوی ووئیل چه خپل رب ته

لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ؕ قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا

مونږ دَپاره دَ خپل رب نه | چه بیان کړه | مونږ ته | چه څهٔ دے رنګ دَ هغے | ووئیل | بیشکه هغه | فرمائی | چه هغه

ووایه چه مونږ ته (دا هم) وُښائی چه دَ هغے رنګ به څنګه وی؟ (موسیٰ ؑ) ووئیل چه الله فرمائی چه دا یوه

بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿٦٩﴾ قَالُوا ادْعُ

یوه غوا ده | زیړه | بنهٔ زیړ دے | رنګ دَ دے | خوشحالوی | لیدونکی | هغوی ووئیل | دُعا وُکړه

غوا ده نکه زیړه چه په کتوے دَ خلقو زړونه خوشحالیږی ـ هغوی ووئیل، خپل رب ته

لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۙ اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ

مونږ دَپاره | دَ خپل رب نه | چه بیان کړی | مونږ ته | چه دَ څهٔ قسم ده هغه | یقیناً | هغه غوا | مشتبه شوے ده

ووایه چه هغه مونږ ته صفا صفا ووائی چه هغه غوا به څنګه وی؟ بیشکه دَ هغے غوا پیژندل مونږ دَپاره ګران

عَلَيْنَا ؕ وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿٧٠﴾ قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا

په مونږ | او بیشکه مونږ | کهٔ چرے وغواړی الله | لار موندونکی یُو ـ | ووئیل | بیشکه هغه | فرمائی | چه هغه

شوی دی او کهٔ چرے الله وغواړی نو (اوس) به مونږ ضرور صحیح پته وُلګوو (موسیٰ ؑ) ووئیل الله فرمائی چه هغه

بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ

يوه غواده | جوتى نه ده | چه اړوى | مزكه | او نهٔ اوبهٔ وركوى | فصل ته | بالكل سالمه ده

يوه غواده چه نهٔ خو په ايوه كښے جوتى شوى وى او نهٔ فصل ته اوبهٔ وركوى صحيح سالمه

لَّا شِيَةَ فِيهَا ۚ قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ فَذَبَحُوهَا

نشته ئے (هيڅ) داغ | په هغے كښے | هغوى ووئيل | اوس | تا راوړه | سمه خبره | پس هغوى هغه ذبح كړله

او بے داغه به وى هغوى ووئيل چه اوس تاسو ټيک خبره وُكړه. نو هغوى هغه غوا ذبح كړله

ع ١٠ ٨ وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧١﴾ وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيهَا ۚ

او نهٔ وو دوى د ے ته نزدے | چه (داسے) ئے كړے وے | او هغه وخت چه وُوژلو تاسو | يو سړے | نو تاسو جګړه وُكړه | په هغے كښے

اګرچه هغوى (داسے) كولو ته تيار نهٔ وُو. او (ياد كړئ) كله چه تاسو يو سړے وُوژلو او په يو بل بانډِ مو الزام وُلګولو

وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٧٢﴾ فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ

او الله | ښكاره كوونكے وو | كوم چه تاسو پټولو | بيا مونږ ووئيل | وُوهئ دا (مقتول)

او الله پاک ښكاره كوونكے وو كوم څيز چه تاسو پټولو. نو مونږ حكم وركړو چه دا (مقتول) د ذبح شوے

بِبَعْضِهَا ۚ كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى ۙ وَيُرِيكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ

د ے (ذبيحے) په يوه حصه | دغه شان | ژوندى كوى الله | مړى | او ښائى تاسو ته | خپلے نخښے | چه تاسو

غوا په يوه ټوټۍ وُوهئ الله تعالىٰ دغه شان مړى ژوندى كوى او تاسو ته د خپلو قدرتونو نخښے نښانے ښائى چه تاسو

تَعْقِلُونَ ﴿٧٣﴾ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ

پوهه شئ | بيا سخت شول | ستاسو زړونه | پس | د دے نه | نو هغه | په شان د كاڼړى دى

د عقل نه كار واخلئ. بيا د دے واقعے نه پس (هم) ستاسو زړونه سخت شول نو دا زړونه دا سے (سخت) دى لكه كاڼړى

اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً ۚ وَاِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْاَنْهٰرُ ۚ

يا د هغے نه هم زيات سخت | او په كاڼړو كښے څوځنے (داسے هم) دى | چه | رابهيږى | د هغے نه | ولے

يا د كاڼړو نه هم زيات سخت دى او ببشكه په كاڼړو كښے څنے (داسے كاڼړى هم) دى چه د هغے نه د اوبو لوئے لوئے ولے رابهيږى

وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ ۚ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا

او په هغے كښے څنے | هغه هم دى | چه وُچوى | پس راووځى | د هغے نه اوبهٔ | او په هغے كښے څنے | هغه هم دى

او په هغے كښے يقيناً داسے كاڼړى هم دى چه چوى او د هغے نه اوبهٔ بهر ته راووځى او څنے داسے هم دى چه د

يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٧٤﴾ اَفَتَطْمَعُونَ

چه راؤرغړى | د الله د ويرے نه | او نهٔ دے الله | بے خبره | د هغے نه كوم چه تاسو كوئ | ايا تاسو اُميد كوئ

الله د ويرے نه ښكته رارغړى. او (ياد ساتئ) چه الله تعالىٰ ستاسو د عملونو نه غافل نهٔ دے (اے مسلمانانو!) ايا او س

اَنْ يُّؤْمِنُوا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلٰمَ

چه هغوى به ايمان راوړى | ستاسو په وينا | او بيشكه | يو ډلے | د هغوى نه | چه اوريدل به ئے | كلام

هم تاسو ته اُميد دے چه دا (اهل كتاب) به ستاسو خبره وُمني، حال دا دے چه به د وُكښے يو ټولے دا سے وو چه د الله كلام به ئے اوريدو

اللّٰهِ ثُمَّ يُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾ وَاِذَا

دَ الله | بیا یې | بدلولو هغه | پس په دے | دَ پوهیدُو نه | او هغوی پوهیدل | او هر کله چه

او چه بښۀ به ئې پرے ځان پوهه کړو نو بیا به ئې په کښې سره دَ علم او سره پوهے کے زیاتے کولو۔ او هر کله چه

لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَا

هغوی یو ځائے شی | هغو خلقو سره | کوم چه ایمان راوړے دے | نو وائی | مونږ هم ایمان راوړے دے | او هر کله چه ځان له شی

دوی مؤمنانو سره مخامخ شی نو وائی مونږ خو ایمان راوړے دے او هر کله چه په

بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ قَالُوْٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ

دَ یو بل سره | نو وائی | آیا خبر ورکوئ تاسو دوی ته | دَ هغه څۀ چه پرانستلی دی الله | په تاسو باندې

خپل مینځ کښې ځان له شی نو وائی چه آیا تاسو مسلمانانو ته هغه خبرے ښایئ کومے چه الله تاسو ته ښکاره کړی

لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٧٦﴾ اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ

چه مناظره وکړی دوی تاسو سره | په هغے | په نزد دَ رب ستاسو | پس آیا تاسو نه پوهیږئ؟ | آیا هغوی نه پوهیږی؟

دی چه ستاسو دَ قدر په مخکښے پرے تاسو سره جګړے کوی؟ آیا تاسو دَ عقل نه کار نۀ اخلئ۔ آیا هغوی ته معلومه نۀ ده

اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿٧٧﴾ وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ

چه الله | پیژنی | هغه څۀ چه پټوی ئې دوی | او هغه څۀ چه ښکاره کوی ئې دوی | او ځنے له دوی نه | امیان دی

چه الله تعالیٰ ته دَ هغوی ټولے پټے او څرګندے خبرے ښکاره او معلومے دی او په هغوی کښې ځنے خلق امیان دی

لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿٧٨﴾

چه نۀ پوهیږی | په کتاب | سوا دَ دروغو آرزوګانو | او نۀ دی دوی | مګر | ګمان کوونکی۔

کوم ته چه دَ دروغو دَ ارمانونو نه سوا دَ کتاب الله علم نشته او هغوی صرف ګمانونه چلوی۔

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ۗ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا

پس خرابی ده | هغو دَ پاره | چه لیکی | کتاب | په خپلو لاسونو | بیا وائی | (چه) دا

پس افسوس دے دَ هغه چا په حال چه اول په خپلو لاسونو کتاب ولیکی بیا وائی چه دا کتاب دَ

مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ

دَ الله دَ طرف نه دے | دَ پاره دَ دے چه واخلی | دَ هغے په بدله کښے قیمت لږ | پس خرابی ده | دوی دَ پاره | په سبب | دَ لیکلو

خدائے دَ طرف نه دے دَ پاره دَ دے چه دَ دے په بدل کښے لږ قیمت واخلی۔ پس دَ دوی لاسونو چه څۀ ولیکل هغه دَ دوی

اَيْدِيْهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ ﴿٧٩﴾ وَقَالُوْا

دَ لاسونو دَ دوی | او خرابی ده | دوی دَ پاره | په سبب دَ هغے | چه هغوی ګټلو | او هغوی وائی

دَ پاره دَ بربادئ (باعث) دی او کوم څۀ چه دوی (دَ غه شان) ګټی هغه به هم دوی دَ پاره دَ افسوس سامان وی۔ او دوی وائی

لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ؕ قُلْ اَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللّٰهِ

هرګز به نه رسی مونږ ته | اور | مګر یو څو ورځے | دَ شمیر | ووایه | آیا اخستے ده تاسو | له خدائے نه

مونږ ته به دَ شمیر دَ څو ورځو نه سوا دَ دوزخ اور هرګز نۀ رانږدے کیږی، ووایه چه سو دَ الله نه دا سے څۀ وعده

عَهْدًا فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗٓ اَمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا

څهٔ وعده | چه هیڅ کله به خلاف نهٔ کوی | الله | دَ خپلے وعدے | یا وایئ | په الله باندې | هغه څهٔ چه

اخستے ده چه الله تعالیٰ به دَ خپلے وعدے خلاف نهٔ کوی یا تاسو (هم داسے) الله سره هغه خبرے تړئ

لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٨٠﴾ بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ

تاسو پرے نهٔ پوهیږئ | ولے نه | چاچه وُکړه | (څهٔ) ګناه | او راګیر کړو | هغه | دَ هغهٔ ګناه

کومے چه تاسو ته معلومے نهٔ دی۔ البته چاچه څهٔ بدی وُکړه او هغه دَ هغهٔ ګناهونو دَ هر طرف نه راګیر کړو

فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٨١﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

پس هغوی دی | اوسیدونکی دَ دوزخ | (چه) هغوی به هغے کښے | همیشه وی | او هغه خلق | چه ایمان راوړی

نو هم داسے خلق دوزخیان دی او هغوی به په دے کښے همیشه وی۔ او هغه خلق چه ایمان ئے راوړو

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٨٢﴾ ع ١١ ٩

او عملونه ئے وُکړل | نیک | هغه خلق دی | جنتیان | (چه) هغوی به | په هغے کښے | همیشه وی۔

او نیک عملونه ئے وُکړل هغه خلق جنتیان دی او هغوی به همیشه په دے کښے وی۔

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ قف

او هغه وخت | چه واخستلو موږ | کلکه وعده | بنی اسرائیلو نه | چه عبادت به نهٔ کوئ | مګر صرف | دَ الله

او (یاد ساتئ) کله چه موږ دَ بنی اسرائیلو نه کلکه وعده واخستله چه دَ الله تعالیٰ نه سوا دَ بل چا عبادت مهٔ کوئ

وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَقُوْلُوْا

او مور پلار سره به | ښیګړه کوئ | او | خپلوانو | او یتیمانو | او مسکینانو سره | او وایئ

او دَ مور پلار سره نیکی کوئ او دَ خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو سره (به هم نیکی کوئ) او خلقو سره

لِلنَّاسِ حُسْنًا وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ط ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ اِلَّا

خلقو ته | ښے خبرے | او وُدروئ | مونځ | او ورکوئ | زکوٰة | بیا واوړیدئ تاسو مګر

په خوږه ژبه خبرے کوئ او مونځ ادا کوئ او زکوٰة ور کوئ، بیا دَ یو څو کسانو نه سوا تاسو

قَلِيْلًا مِّنْكُمْ وَاَنْتُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿٨٣﴾ وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُوْنَ

لږ | له تاسو نه | او تاسو یئ | مخ ګرځوونکی | او هغه وخت | چه واخستله موږ | کلکه وعده تاسو نه | چه مهٔ توئ

تول (دے وعدے نه) واوړیدئ او تاسو مخ ګرځوونکی یئ۔ او (یاد کړئ) کله چه موږ تاسو نه وعده اخستے وه چه په خپل

دِمَآءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُوْنَ اَنْفُسَكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ

وینے دَ یو بل | او مهٔ وُباسئ | قوم خپل | دَ کورونو خپلو نه | بیا | تاسو اقرار وُکړو

مینځ کښے وینے مهٔ تویوئ او مهٔ خپل خپلوان دَ کور کلی نه شړئ. بیا تاسو دِ دے لوظ کلک اقرار کړے وُو

وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿٨٤﴾ ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ

او تاسو ګواه یئ | بیا | تاسو هغه خلق یئ | چه وژنئ | خپل خلق | او بهر ته وُباسئ

او تاسو دَ دے ګواهی هم ورکوئ۔ او بیا تاسو هغه خلق یئ چه خپل خپلوان وژنئ او یو ټولے دَ هغوی

فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

یوه ډله | دَ خپل قوم نه | دَ دوی دَ کورونو نه | مدد کوئی | دَ دوی خلاف | په ګناه سره | او ظلم سره

دَ کورونو نه وُباسئی او دَ هغوی خلاف په ګناه او زیاتی کولو کښے دَ یو بل امداد کوئی

وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ

او کهٔ راشی تاسو ته | قیدیان | (نو) فدیه ورکوئی په (بدل) دَ هغوی کښے | او حال دا دے چه حرام دی | په تاسو باندے

او کهٔ هغه خلق قیدیان شی او تاسو ته راشی نو دَ هغوی دَ خلاصی دَ پاره فدیه ورکوئی حال دا دے چه هغوی دَ کورونو

اِخْرَاجُهُمْ اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ

وُښکل دَ دوی | نو آیا تاسو منئ | څئے (حکم) | دَ کتاب | او انکار کوئی | دَ څئے

نه وېستل دَ سره په تاسو حرام وو، آیا تاسو دَ الله دَ کتاب څئے حصے منئ او دَ څئو نه انکار کوئی

فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

پس څهٔ سزا ده | دَ هغهٔ چه وُکړی | دا سے | له تاسو نه | سوا دَ رسوائی نه | دَ دنیا په ژوند کښے

پس په تاسو کښے چه کوم سړے دا سے وُکړی دَ هغهٔ سزا دَ دنیا په ژوند کښے دَ ذلت او رسوائی نه سوا نو څهٔ کیدے شی

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا

او په ورځ دَ قیامت | به واچولے شی | ډیر سخت عذاب کښے | او نهٔ دے الله | بے خبره | دَ هغے نه

او دَ قیامت په ورځ به داسے خلق په ډیر سخت عذاب کښے اچولے شی او خدائے پاک ستاسو دَ عملونو نه

تَعْمَلُوْنَ ۝۸۵ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ

چه تاسو ئے کوئی | دا | هغه (خلق) دی | چا چه واخستلو | ژوند | دَ دُنیا | په بدله دَ آخرت کښے

بے خبره نهٔ دے۔ دا هغه خلق دی کوم چه دَ آخرت په بدل کښے دَ دُنیا (یو څو ورځے) ژوندون غوره کړے دے

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝۸۶ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى

پس نهٔ به شی سپکولے | له دوی نه | عذاب | او نهٔ به دوی ته مدد ورکولے شی | او بیشکه مونږ ورکړو | موسیٰ ته

پس دَ دوی په عذاب کښے به کمے نهٔ شی کولے او نهٔ به ئے هیڅ قسم امداد کیدے شی او مونږ موسیٰ ؑ له کتاب

الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ۚ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ

کتاب | او پرله پسے راولیږل مونږ | ورو ستو دَ دهٔ نه | پیغمبران | او ورکړے مونږ | عیسیٰ ځوئے دَ مریم ته

ورکړو او دَ هغهٔ نه پس مونږ پیغمبران پرله پسے راولیږل او حضرت عیسیٰ ؑ ځوئے دَ مریم له مونږ ښکاره او څرګند

الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۗ اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ

ښکاره معجزے | او قوت ورکړو مونږ هغهٔ ته | په روح القدس سره | آیا هر کله (چه) | راغے راوړو تاسو ته | یو پیغمبر

معجزے ورکړے او دَ روح القدس (جبرائیل) په ذریعه مو دَ هغهٔ مدد وُکړو (دا ستاسو عادت شوے دے چه) کله هم تاسو ته یو پیغمبر ستاسو

بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ۚ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ ۡ وَفَرِيْقًا

هغه حکم | چه نهٔ ئے خوښوی | نفسونه ستاسو | نو تاسو غرور وُکړو | پس یوه ډله | تاسو دروغژن کړله | او یوه ډله

دَ مرضئ خلاف څهٔ حکم راؤړو راغلو نو تاسو سرکشی وُکړه بیا څهٔ پیغمبران تاسو دروغژن کړل او څهٔ تاسو

تَقْتُلُوْنَ ﴿٨٧﴾ وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ

موقتلوله | او هغوی وائی | زمونږ زړونه | په پرده کښې دی | (نه) بلکه | لعنت کړے دے په دوی | الله | دَ دوی دَ کفر په وجه

وُوژل او (یهود) وائی چه زمونږ په زړونو باندې پرده پرته ده، بلکه الله دَ دوی دَ کفر په وجه په دوی لعنت کړے دے

فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٨٨﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ

پس لږ | ایمان راوړی دوی | او هر کله چه | راغے دوی ته | کتاب | دَ الله دَ طرف نه

نو ډیر لږ کسان په کښې ایمان راوړی او هر کله چه دوی ته دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه هغه کتاب راغلو چه دَ

مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ

تصدیق کوونکے | دَ هغه څه چه | دوی سره دے | او وُو دوئی دَ دے نه وړاندې | چه کامیابی ئے غوښتله

هغه (کتابونو) تصدیق کوی کوم چه دوی سره موجود دی او (دَ کوم په اُمید چه) دے خلقو دَ دے (دَ نزول) نه وړاندې

عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ

په کفارو باند | پس هر کله چه | راغے دوی ته | هغه چه پیژندلو دوی | نو دَ هغې نه ئے انکار وُکړو

دَ کافرانو په مقابله کښې دَ فتح دُعاګانے غوښتلے۔ پس هر کله چه دوی ته هغه (هدایت) راورسیدو کوم چه دوئی پیژندو نو دَ هغې

فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٨٩﴾ بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ

پس لعنت دَ الله دے | په کافرانو باند | بد دے هغه څیز | چه خرڅ کړل هغوئ دَ کوم په بدل کښې | خپل ځانونه

نه ئے انکار وُکړو نو په داسے انکارکوونکو باندې تل دَ خدائے لعنت وریږي، ډیر بد دے هغه څیز چه دوی پرے خپل ځانونه خرڅ کړی دی۔

اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ

چه انکار کوی | دَ هغې | چه نازل کړو | الله | په سبب دَ حسد کولو | چه نازلوی | الله | خپل رحمت | په چا باندې

(او هغه) دا چه دَ خدائے دَ کتاب نه دَ بغض په وجه انکار کوی چه (ولے) خدائے پاک خپل فضل په هغه چا کوی څوک چه

يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ

چه غواړی ئے | له خپلو بندګانو نه | پس اخته شول دوی | په غضب دَ پاسه دَ بل غضب | او کافرانو دَ پاره | عذاب دے

په خپلو بندګانو کښې دَ هغهٔ خوښ وی پس دوئی په لاندې باندې غضب کښې اخته شول او کافرانو دَ پاره دَ ذلت عذاب

مُّهِيْنٌ ﴿٩٠﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ

دَ ذلت | او هر کله چه وویلے شی | دوی ته | چه ایمان راوړئ | په هغې | چه نازل کړل الله | (نو) وائی | مونږ خو مَنُو

مقرر دے۔ او هر کله چه دوی ته وویلے شی چه کوم څهٔ الله نازل کړی دی په هغې ایمان راوړئ نو وائی کوم چه په مونږ نازل

بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ ۗ وَهُوَ الْحَقُّ

هغه | چه نازل شوی دی | په مونږ | او انکار کوی دوی | دَ هغې نه | کوم چه دَ هغې نه سیوا دی | حال دا دے چه هغه (قران) حق دے

کړے شول په هغې خو به ایمان راوړو او دَ دے نه سوا چه څهٔ دی دَ هغې نه انکار کوو حال دا دے چه دا (قرآن) رښتونے دے

مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ؕ قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ

تصدیق کوی | دَ هغه څهٔ | چه دَ دوی سره دی | وُوایه | پس ولے | وژل تاسو | نبیان | دَ الله | دَ دے نه وړاندې

او کوم چه (پخوانے اسمانی علم) دَ دوی سره دے دَ هغې تصدیق کوی (دوی ته) ښوس وُکړئ دَ دے نه وړاندې تاسو نبیان ولے وژل کهٔ

إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩١﴾ وَلَقَدْ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِالْبَيِّنَٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ
که چرے وئ تاسو مؤمنان ۔ | او بیشکه راغلے ؤ تاسو ته موسیٰ | په روښانه نښو سره | بیا تاسو جوړ کړو
چرے تاسو مؤمنان یئ ۔ او بیشکه موسیٰؑ تاسو ته ښکاره نښے راوړے راغلو بیا تاسو دَ دے نه
الْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿٩٢﴾ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَكُمْ وَرَفَعْنَا
خځ (معبود) | پس له دے نه | او تاسو وئ | ظالمان | او هر کله چه واخسته موږ | کلکه وعده تاسو نه | او اوچت کړو موږ
پس دَ خځی عبادت شروع کړو او تاسو ظلم کولو والا یئ ۔ او (یاد کړئ) کله چه موږ تاسو نه پخه وعده اخستے وه او
فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا۟ مَآ ءَاتَيْنَٰكُم بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا۟ ۖ قَالُوا۟ سَمِعْنَا
تاسو دَ پاسه | طور | ونیسئ | هغه څه چه | موږ درکړل تاسو ته | په قوت سره | او واورئ | دوی وویل | موږ واوریدل
کوهِ طور مو تاسو دَ پاسه اوچت کړے ؤ (او حکم مو درکړے ؤ) چه موږ کوم (کتاب) درکړے دے هغه مضبوط ونیسئ او ښه واورئ هغوی وویل
وَعَصَيْنَا وَأُشْرِبُوا۟ فِى قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ۚ قُلْ بِئْسَمَا
او ونه منل موږ | او وڅښولے شوه | دَ دوی په زړونو کښے | مینه دَ خځی | دَ دوی دَ کفر په وجه | ووایه | بده ده هغه خبره
موږ واوریدل لیکن منو یُ نه او دَ دوی دَ کفر په وجه دَ دوی زړونه دَ خځی په مینه خړوب شوی وو (اے نبیؐ!) ووایه چه
يَأْمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَٰنُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩٣﴾ قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ
دَ کوم چه حکم درکوی تاسو ته | ایمان ستاسو | که چرے | تاسو یئ | مؤمنان | ووایه | که چرے وی | تاسو دَ پاره
ستاسو دا (ناقص) ایمان خو تاسو ته ډیر خراب تعلیم درکوی که چرے واقعی تاسو مؤمنان یئ ۔ ورته ووایه چه که چرے دَ آخرت
الدَّارُ الْءَاخِرَةُ عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا۟
کور | دَ آخرت | دَ الله په نزد | خصوصیت سره | سوا | دَ نورو خلقو نه | نو تاسو آرزو وکړئ
کور دَ الله سره دَ نورو په ځائے تاسو دَ پاره مخصوص وی نو بیا دَ مرګ آرزو خو وکړئ
الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٩٤﴾ وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًۢا بِمَا
دَ مرګ | که چرے تاسو یئ | رښتونی ؟ | او هیڅ کله به آرزو ونه کړی دوی دَ دے | همیشه | په سبب دَ هغه څه
که تاسو (په خپله دعوی کښے) رښتونی یئ ۔ او (یاد ساتئ) دوی دَ خپلو هغو (بدو) عملونو په وجه کوم چه
قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌۢ بِالظَّٰلِمِينَ ﴿٩٥﴾ وَلَتَجِدَنَّهُمْ
چه وړاندې لیږلی دی | دَ دوی لاسونو | او الله | ښه پوهه دے | په ظالمانو ۔ | او خامخواه به بیا مومے ته دوی
دَ دوی دَ لاسه شوی دی، هیڅ کله به دَ دے آرزو ونه کړی او الله ظالمان خلق ډیر ښه پیژنی ۔ او ته به دوی په ژوندون
أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَوٰةٍ ۚ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا۟ ۚ
زیات لالچیان | دَ خلقو نه | په ژوند | او له هغو خلقو نه | کوم چه مشرکان دی
پسے دَ ټولو خلقو نه زیات حرصناک بیا مومے تر دے چه دَ مشرکانو نه هم زیات حرصناک ۔
يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِۦ
غواړی هر یو له دوی نه | چه کاش عمر ورکړے شی ده ته | زر کاله | او نه دے خلاصوونکے دَ ده
په دوی کښے هر یو تن دا غواړی چه کاش دَ ده عمر زر کاله شی خو حال دا دے که چرے دوی او ږد عمر هم بیا مومی

معانقة ٢

مِنَ الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾ قُلْ مَنْ كَانَ

دَ عذاب نه | چه (اوږد) عمرورکړشي | او الله | ګوري | کوم چه دوی کوی | ووايه | کوم چه وي

نو هم دَ عذاب نه نهٔ شي خلاصيدے او الله تعالىٰ دَ دوی کارونه ډير ښهٔ وينې ګوري۔ (اے نبي! تهٔ) ووايه چه

عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ

دُښمن | دَ جبرائيل | بيشکه چه هم هغه | نازل کړے دے (قران) | ستا په زړهٔ | په حکم دَ خدائے

هر څوک چه دَ جبرائيل دُښمن دے (وی دی) بيشکه هغهٔ دَ الله تعالىٰ په حکم سره ستا په زړهٔ دا کتاب نازل کړے دے

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٩٧﴾

چه تصديق کوی | دَ هغه (کتابونو) | چه دَ دے نه وړاندِ ؤو | او هدايت | او زيرے دے | مؤمنانو دَ پاره

چه دَ هغه کتابونو کوم چه دَ دے نه وړاندِ ؤو تصديق کوی او دَ ايمان والوُ دَ پاره هدايت او زيرے دے۔

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ

څوک چه وی | دُښمن | دَ الله | او دَ هغهٔ دَ فرښتو | او دَ هغهٔ دَ رسولانو | او دَ جبرائيل | او ميکائيل

څوک چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ فرښتو او دَ هغهٔ دَ رسولانو او دَ جبرائيل او ميکائيل دښمن وی

فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿٩٨﴾ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍۢ

پس بيشکه الله | دښمن دے | دَ کافرانو ۔ | او مونږ نازل کړی دی | ستا طرف ته | ايتونه

نو يقينًا الله تعالىٰ هم دَ داسے کافرانو دُښمن دے۔ او (اے پيغمبره!) مونږ په تا باندِ ښکاره حکمونه نازل

بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ ﴿٩٩﴾ اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا

ښکاره | او نهٔ کوی انکار | دَ دے | مګر | بدکاران ۔ | آيا هر کله چه | وُکړله دوی

کړی دی او دَ فاسقانو نه سوابل څوک دَ دے نه انکار نهٔ کوی۔ آيا (دا رښتيا نهٔ دی چه) کله هم دوی څهٔ

عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠٠﴾

څهٔ وعده | نو وُغورځوله هغه | يو ډله | له دوئ نه | بلکه | اکثر دَ دوئ نه | ايمان نهٔ لری

لوظ نامه وکړه نو هغه دَ دوی نه يو نيم ډلے شا ته وُغورځوله؟ بلکه اکثر دَ دوی نه ايمان نهٔ راوړی۔

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا

او هر کله چه | راغے دوئ ته | يو رسول | دَ الله دَ طرف نه | (چه) تصديق کوونکے دے | دَ هغه څه

او هر کله چه دوی ته دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه يو پيغمبر راغلو چه دَ هغه کتابونو کوم چه دَ وړاندِ نه دَ دوی

مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ

چه دوی سره دے | نو وُغورځولو | يو ډلے | دَ هغو خلقو نه | کوموته چه ورکړے شوے وو کتاب | دَ الله کتاب

سره ؤو تصديق کوی نو دَ دغے اهل کتابو نه يو ټولی دَ الله کتاب داسے شا ته وُغورځولو

وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠١﴾ وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا

وروستو | دَ شاګانو خپلونه | لکه چه دوی | نهٔ پوهيږی ۔ | او پيروی وُکړه دوی | دَ هغه څهٔ چه لوستلو

لکه چه دوی هيڅ دَ سره نهٔ پيژندو ۔ (او دوی هغه (جادو) پسے روان شول کوم چه

الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ

شیطانانو | په بادشاهئ دَ سلیمان کښے | اوکفر نۀ وو کړے سلیمان | لیکن (هم) شیطانانو

په دَ سلیمان په بادشاهئ کښے شیطانانو لوستلو او سلیمان هیڅ کله کفر نه وو اختیار کړے، کفر خو به شیطانانو کولو چه

كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ

کفر کړے وو | ښودلو به دوی | خلقو ته | جادو | او هغه چه نازل شوے وو | په دوو فرښتو | په بابل کښے

(ناپوهه او ساده) خلقو ته به ئے جادو ښودلو او په هغه پسے روان شول چه په دوو فرښتو هاروت او ماروت

هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ۗ وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ

هاروت | او ماروت باندے | او دوی به نۀ ښودلو | هیڅ یو کس ته | تر دے چه وئیل به دوی | چه مونږ خو

باندے په بابل (ښار) کښے نازل شوے وو او هغوی دواړو به تر هغے هیچا ته تعلیم نۀ ورکولو چه اول به ئے ورته وُنه وئیل

فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۗ فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ

ازمیښت (دَ پاره) یُو | پس مۀ کافر کیږئ | پس دوی به زده کولو | دے دواړو نه | هغه (دم) چه جدائی به راوستله دوی په هغے سره

چه کوره مونږ ازمیښت (له راغلی) یُو پس تاسو کافر کیږئ مه۔ (دَ دے باوجود) دِے خلقو به دَ دوی نه هغه خبرے زده کولے دَ

بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ۗ وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ

په مینځ دَ سړی | او دَ هغۀ دَ ښځے | او دوی نۀ وو | ضرر رسوونکی | په دِے سره | هیڅ کس ته | بغیر | دَ حکم

کوم په ذریعه چه به ئے دَ خاوند او ښځے ترمینځه جدائی راوستله، او دوی دَ الله دَ حکم نه بغیر هیچا ته هم ضرر نۀ شو

اللّٰهِ ۗ وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ۗ وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ

دَ الله نه | او دوی به زده کولو | هغه څۀ چه ضرر به ئے رسولو دوی ته | او فائده به ئے نۀ رسوله دوی ته | او بیشکه دوی پوهه وُو | چه چا

رسولے او دِے خلقو هغه خبرے زده کړے چه په خپله دوی ته پاره مضر وے او دوی ته به ئے هیڅ فائده نۀ رسوله او یقیناً دوی ته معلومه وه

اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۗ وَلَبِئْسَ مَا

واخستو هغه (جادو) | نشته دے هغۀ دَ پاره | په آخرت کښے | څۀ حصه | او ډیر بد دے | هغه څیز

چه کوم خلقو دا (جادو) اختیار کړو دَ هغوی دَ پاره به په آخرت کښے هیڅ حصه نۀ وی۔ او یقیناً بد دے هغه څیز (یعنی

شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ۗ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٢﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا

دَ کوم په بدله کښے چه خرڅ کړل دوی | خپل ځانونه | کاش! | چه دوی پوهیدلے | او که چرے دوی | ایمان راوړے وے

کفر) دَ کوم په بدله کښے چه دوی خپل ځانونه خرڅ کړی دی، کاش دوی ته علم وے ۔ او که چرے دوی ایمان راوړے وے او ځان

وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ۗ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٣﴾ ع ۱۲ ۷ ۱۲

او پرهیزګاری کړے وے | نو ثواب | له طرفه دَ خدائے نه | ډیر غوره وو | کاش! | چه دوی پوهیدلے۔

ئے (دَ جادُو نه) بچ ساتلے وے نو دَ خدائے دَ طرف نه ثواب ډیر غوره وو، کاش! که دوی پوهیدلے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا ۗ

اے مؤمنانو! | مۀ وایئ | "رَاعِنَا" | او وایئ | اُنظرنا | او ښۀ واورئ

اے مسلمانانو! تاسو هیچرے "راعنا" لفظ مۀ وایئ او (دَ دِے په ځائے) اُنظرنا وایئ او خبرے ته ښۀ غوږ نیسئ۔

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١٠٤﴾ مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

اوکافرانو دَپاره | عذاب دے | درد ناک۔ | نۀ غواړی | هغه (خلق) | کوم چه کافران دی | دَاهل کتابو نه

اوکافرانو دَپاره درد ناک عذاب مقرر دے۔ نۀ دَاهل کتابو نه هغه خلق کوم چه کفر اختیارکړو دا خبره خوښوی اونۀ

وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ

اونۀ مشرکان | چه نازل کړے شی | په تاسو باندِ | څۀ ښۀ خبره | ستاسو دَرب دَطرف نه

مشرکان چه ستاسو دَرب دَطرف نه دِ په تاسو باندِ څـۀ خیر نازل شی۔

وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿١٠٥﴾

او الله | خاص کوی | په خپل رحمت سره | چالره چه وغواړی | او الله | خاوند دَلوئے فضل دے۔

او خدائے خپل رحمتونه خاص هغه چاله ورکوی چه چاله ئے رضاشی او الله دَلوئے فضل خاوند دے۔

مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ۗ

کوم چه منسوخ کړو موږ | څۀ ایت | یا هغه هیر کړو | نوموږ راوړو | دَهغے نه ښۀ | یا په شان دَهغے

موږ چه کوم حکم (یا شریعت) منسوخ کړو، یائے (ستادَزړۀ نه) هیرَوُو نودَدِے نه غوره یا دَدے په شان (بل حکم) رالیږو

اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٠٦﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ

ایا تۀ نۀ پوهیږے | چه الله تعالیٰ | په هر څیز قادر دے۔ | ایا تۀ نۀ پوهیږے

ایا تا ته معلومه نۀ ده چه الله تعالیٰ په هر څیز باندِ قدرت لری۔ ایا تا ته معلومه نۀ ده

اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

چه الله دَپاره ده | بادشاهی | دَاسمانونو | او دَ زمکے | اونشته | تاسو دَپاره | سوا | دَالله نه

چه دَاسمانونو او دَ زمکے بادشاهت هم دَالله دَپاره دے۔ او دَالله تعالیٰ نه سوا ستاسو نه څوک

مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿١٠٧﴾ اَمْ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَسْـَٔلُوْا رَسُوْلَكُمْ كَمَا

څوک دوست | او نۀ مددګار | ایا تاسو غواړئ | چه سوال وُکړئ | دَخپل رسول نه | لکه چه

دوست کیدے شی او نۀ څوک مددګار۔ (اے مسلمانانو!) ایا ستاسو اراده ده چه تاسو هم دَخپل رسول نه هغسے سوالونه

سُئِلَ مُوْسٰى مِنْ قَبْلُ ۗ وَمَنْ يَّتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ

سوال شوے وو دَموسیٰؑ نه | له دِے نه وړاندِ | او څوک چه | بدل کړی | کفر | په ایمان

وُکړئ څنګه چه دَدِے نه وړاندِ موسیٰؑ نه شوی وو۔ او چا چه کفر په ایمان بدل کړو

فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿١٠٨﴾ وَدَّ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

نو هغه ګمراه شو | دَ نیغ لارے نه | غواړی | اکثر خلق | دَاهل کتابو نه

نو بیشکه چه هغۀ سمه لار ورکه کړله اکثر اهل کتاب دَخپل ذاتی حسد په وجه

لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ اِيْمَانِكُمْ كُفَّارًا ۚ حَسَدًا مِّنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ

چه کاش راوګرځوی تاسو | ستاسو دَایمان راوړو نه پس | کفر ته | دَحسد په وجه | کوم چه دَدوی په زړونو کښے دے

داغواړی چه په څۀ شان تاسو دَایمان راوړو نه پس بیا کفر طرف ته پستنه کړی

مِّنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۚ فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا حَتّٰى يَاْتِيَ

پس له هغې نه | چه واضح شو | په دوی باندې | حق | پس معاف کړئ | او مخ واړوئ | تر هغې پورې چه | راوړی

دَ دې نه پس (هم) چه حق په دوی ظاهر شوے دے پس تاسو (دوی) معاف کړئ او مخ ترے واړوئ ترد ے چه

اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٠٩﴾ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

الله | خپل حکم | بیشکه الله | په هر څیز باندې | قادر دے۔ | او وُدروئ | مونځ

دَ الله حکم راشی بیشکه چه الله تعالیٰ په هر څۀ پورهٔ پورهٔ قدرت لری او مونځونه کوئ

وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۗ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ

او ورکوئ | زکوٰة | او هغه څۀ چه | وړاندې لیږئ | دَ خپلو ځانونو دَ پاره | دَ نیکئ نه | بیا به مومئ تاسو هغه

او زکوٰة ورکوئ او تاسو چه ځان له وړاندې هر څۀ نیکی وُلیږئ نو هغه به الله سره (موجود) بیا مومئ

عِنْدَ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿١١٠﴾ وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ

دَ الله سره | بیشکه | الله | هغه څۀ چه | تاسو ئے کوئ | ګوری وینی۔ | او دوی ووئیل | هیڅ کله به داخل نۀ شی

بیشکه چه الله ستاسو کارونه وینی ګوری۔ او (اهل کتاب) وائی چه هیڅ کله به

الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۗ تِلْكَ اَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوْا

جنت ته | سوا دَ هغۀ نه چه وی | یهودی یا نصرانی | دا دَ دوی باطلې اَرزُوګانې دی | وُوایه | راوړئ

یهودُ یا نصاراؤ نه سوا بل څوک جنت کښې نۀ داخلیږی۔ دا صرف دَ دوی اَرزوګانې دی، ته وُ وایه چه

بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١١١﴾ بَلٰى ۚ مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ

خپل دلیل | کۀ چرے یئ تاسو | رښتونی ؟ | (نۀ) بلکه | چا چه تیت کړو | خپل مخ | الله ته

کۀ چرے تاسو رښتونی یئ نو (دَ دے خبرے) دلیل پیش کړئ ؟ هو ! څوک چه خپل ځان الله تعالیٰ ته وُسپاری

وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗۤ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۪ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ

او هغه نیکی کوونکے وی | نو دَ هغۀ دَ پاره | اجر دَ هغۀ دے | دَ هغۀ دَ رب سره | او نۀ به وی څۀ ویره | په هغوی

او نیک کارونه وُکړی نو دَ هغۀ جزا دَ خپل رب سره مقرر ده او په داسے خلقو به نۀ هیڅ قسم ویره

وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١١٢﴾ ع وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ ع ۱۳/۹/۱۳

او نۀ به هغوی | غمژن وی | او وائی | یهود چه | نۀ دی نصاریٰ (عیسایان) | په څۀ لار

راځی او نۀ هیڅ قسم خفګان۔ او یهودیان وائی چه دَ نصاراؤ دین هیڅ دین نۀ دے

وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ يَتْلُوْنَ

او وائی | نصاریٰ | نۀ دی | یهود | په څۀ لار | او هغوی (تول) لولی

او نصاریٰ وائی چه دَ یهودو مذهب هیڅ مذهب نۀ دے، حال دا دے چه هغوی دواړۀ (اسمانی)

الْكِتٰبَ ۗ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ

کتاب | دغه شان | وائی | هغه خلق | چه علم نۀ لری | په شان دَ خبرے دَ هغوی | پس الله به فیصله وُکړی

کتابونه لولی۔ دغه شان خبره هغه خلق هم کوی کوم چه نۀ پوهیږی (یعنی مشرکان) نو دَ قیامت په ورځ به

بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ

دَدوی په مینځ کښې | په ورځ دَ قیامت | په کومه خبره کښې | چه هغوی اختلاف کولو | او څوک دے | زیات ظالم

الله تعالیٰ دَ دوی دَ اختلافاتو په حقله په خپله فیصله کوی ۔ اودَ هغه چانه لوئے ظالم بل

مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى

دَ هغهٔ نه | چه منع کړی | دَ الله دَ جماتونو نه | چه ذکر کړے شی په هغې کښې | دَ هغهٔ نوم | او کوشش وُکړی

څوک کیدے شی چه جماتونه دَ دے خبرے نه بندوی چه په هغې کښې دَ الله نوم واخستے شی او دَ هغې دَ

فِیْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ ؕ

دَ هغې په وُرانولو کښې | دَ دا سے خلقو حق نهٔ دے | چه داخل شی هغې (جماتونو) کښې | مګر ویریدونکی

شاړولو کوشش کوی ، هغه خلقو دَ پاره خومناسب دو چه دِ دے جماتونو ته په ویره ویره ورننوتے (یادساتئ)

لَهُمْ فِی الدُّنْيَا خِزْیٌ وَّلَهُمْ فِی الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ

دَ هغوی دَ پاره | په دُنیا کښې | رسوائی ده | او هم هغوی دَ پاره دے | په آخرت کښې | عذاب

هغوی دَ پاره په دنیا کښې خواری او رسوائی ده او په آخرت کښې ډیرلوئے عذاب مقرر

عَظِيْمٌ ﴿۱۱۴﴾ وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ

ډیرلوئے | او هم دَ الله دے | مشرق | او مغرب | پس هر طرف ته | چه مخ کړئ | هم هغه ځائے کښې دے

دے ۔ او مشرق دے که مغرب ټول اړخونه دَ الله دی نو چه کوم اړخ ته مخ وُکړئ هغه اړخ ته

وَجْهُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۱۵﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ۙ

مخ دَ الله | بیشکه الله | خاوند دَ فراخئ | او دانا دے | او هغوی وائی | جوړ کړے دے الله | ځوئے

خدائے شته ، الله دَ وسعتونو خاوند دے او ښهٔ پوهه دے ۔ او یهود او نصاریٰ وائی چه خدائے پاک ځوئے لری

سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ لَّهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ

هغه خو پاک دے | بلکه | دَ هغهٔ دی | کوم چه | په آسمانونو | او زمکه کښې دی | ټول | دَ هغهٔ

(حال دا دے چه) هغه (دَ دا سے خبرو نه) پاک دے بلکه څهٔ چه په آسمانونو او زمکه کښې دی هم دَ هغه دی ټول دَ هغهٔ

قٰنِتُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا

فرمانبردار دی | پیدا کونکے | دَ آسمانونو | او زمکے دے | او هر کله چه هغه اراده وُکړی | دَ یو کار

حکم منونکی دی ، الله دَ آسمانونو او دَ زمکے پیدا کونکے دے او هغه چه دَ یو کار فیصله وُکړی

فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۱۱۷﴾ وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ

نو بیشکه چه وائی | هغهٔ ته | چه شه | نو هغه شی | او وائی | هغه (خلق) | کوم چه نهٔ پوهیږی

نو وائی چه "شه" نو هغه کار (فوراً) وُشی او ناپوهه خلق وائی چه الله تعالیٰ مونږ سره په

لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوْ تَاْتِيْنَآ اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ

ولے خبرے نهٔ کوی مونږ سره الله | یا ولے نهٔ راځی مونږ ته | (څهٔ) نخښه | دغه شان | وئیلی وو

ځیله ولے خبرے نهٔ کوی یا ولے مونږ ته (ستا دَ صداقت) نخښے نهٔ رالیږی؟ دغسے دَ هغوی نه وړاندے

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ۭ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ۭ قَدْ

هغه خلقو | چه د دوی نه وړاندې وو | په شان د دوی د ویلو | یو شان دی | د هغوی زړونه ۔ | بیشکه

خلقوهم د دوی په شان خبرې کړې وې، د دوی او د هغوی زړونه (په کفر کښې) یو رنګ شوی دی۔ مونږ

بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿١١٨﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ

بیان کړې دی مونږه | نخښې | د پاره د هغه قوم | چه یقین کوی | بیشکه مونږ رالیږلے ئے ته | په رښتینی دین سره

یقین لرونکو ته نخښې ښکاره په ښه شان څرګندې کړې دی۔ (اے نبی!) بیشکه مونږ ته په رښتینی دین سره

بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ۙ وَّلَا تُسْـَٔـلُ عَنْ اَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ﴿١١٩﴾

زیرے ورکوونکے | او ویرونکے | او تپوس به نه شی کولے تا نه | د دوزخیانو په حقله

زیرے ورکوونکے او ویره ورکوونکے جوړ کړے لیږلے یئ او تا نه به د دوزخیانو په حقله هیڅ تپوس پوښتنه نه شی کیدے۔

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ

او هیڅ کله به راضی نه شی | له تا نه | یهودیان | او نه | نصارٰی | تر دے چه | ته پیروی ونه کړې

او یهود او نصارٰی تا نه هیڅ کله نه رضا کیږی ترڅو چه ته د دوی په مذهب

مِلَّتَهُمْ ۭ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ۭ وَلَىِٕنِ اتَّبَعْتَ

د هغوی د دین | ووایه | بیشکه چه هدایت | هم د الله | اصل هدایت دے | او که چرے پیروی وکړه تا

روان نه شے، ته ورته ووایه چه الله مانه کومه لار ښودلے ده هم هغه سمه لار ده او که د دے کامل علم

اَهْوَاۗءَهُمْ بَعْدَ الَّذِيْ جَاۗءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ

د هغوی د آرزوګانو | پس د هغې نه | چه راغلے دے تا ته | علم | نو نه به وی تا د پاره

نه پس هم ته د دوی په خواهشاتو پسے روان شوے، نو د خدائے نه د بچ ساتلو د

مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿١٢٠﴾ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰھُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ

الله سره | څوک دوست | او نه څوک مددګار | هغه خلق (چا ته چه) | ورکړو مونږ | کتاب | چه هغوی د دے تلاوت کوی

پاره به هیڅوک ستا دوست یا مددګار پیدا نه شی۔ چا ته چه مونږ کتاب (تورات) ورکړے دے، هغوی دا د دے

حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ۭ اُولٰۗىِٕكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۭ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ

په حق | تلاوت د دے سره | هم هغه خلق | ایمان راوړی | په هغې باندې | او څوک چه | د هغې نه انکار کوی ۔

لوی لګه ښکله چه د دے د لوستلو حق دے۔ هغوی په دے کتاب (قرآن) هم ایمان راوړی او څوک چه د دے نه انکار کوی

فَاُولٰۗىِٕكَ ھُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٢١﴾ يٰبَنِىْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِىَ الَّتِىْٓ

پس هغه خلق دی | زیان کاران | اے بنی اسرائیلو! | یاد کړئ | زما نعمتونه | هغه چه

هغوی پوره خپل تاوان کوی ۔ اے د یعقوب (علیه السلام) اولاده! زما هغه نعمتونه را یاد کړئ کوم چه ما

اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّىْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَي الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٢٢﴾ وَاتَّقُوْا

کړی وو ما | په تاسو باندې | او دا چه فضیلت درکړے وو ما تاسو ته | په جهانونو باندې | او وویریږئ

په تاسو کړی وو ، او دا چه ما تاسو له په ټول جهان والو باندې فضیلت درکړو او د هغې ورځے

وقف منزل ع

يَوْمًا لَّا تَجْزِىْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ

دَهغه ورځ نه | چه په کار به رانهٔ شي | يو کس دَبل کس | په هيڅ څيز کښے | او قبول به نهٔ شي | دَ هغهٔ نه | څهٔ بدل

نه وُويريږئ چه يو بنده به دَبل بنده هيڅ په کار نهٔ راځي۔ او نهٔ به دَهغه نه څهٔ بدله قبلولے شي

وَّلَا يَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿١٢٣﴾ وَاِذِ ابْتَلٰٓى اِبْرٰهٖمَ

او نفع به ورنهٔ کړی هغهٔ ته | سفارش | او نهٔ به دَهغوی مدد وُکړے شي۔ | او هرکله چه وُازمائيلو | اِبراهيمؑ

او نهٔ به هغهٔ ته سفارش فائده رسولے شي او نهٔ به دَهغوی هيڅ قسم امداد کيدے شي۔ او (ياد کړه) هرکله چه دَابراهيمؑ

رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ؕ قَالَ اِنِّىْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ

رب خپل | په څو خبرو سره | پس پوره کړے دے هغه | نو وے فرمائيل | بيشکه زهٔ | به جوړ کړم تا | دَ ټولو خلقو

خدائے په يو څو خبرو کښے دَهغهٔ ازميښت وُکړو نو هغهٔ ټول حکمونه پوره کړل۔ نو الله وُفرمائيل چه زهٔ تا دَ ټولو خلقو امام

اِمَامًا ؕ قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِىْ ؕ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِى الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٢٤﴾

پيشوا | وُئے وئيل | او زما دَ اولاد نه (هم)؟ | وے فرمائيل | نهٔ به رسي | زما وعده | ظالمانو ته۔

جوړوونکے يم (ابراهيمؑ) وُوئيل او زما اولاد هم؟ (الله) وُفرمائيل (بيشه ده خو) ظالمان زما په عهد کښے داخل نهٔ دی۔

وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَاَمْنًا ؕ وَاتَّخِذُوْا

او هرکله چه جوړ کړله مونږ | کعبه | ځائے دَعبادت | دَ خلقو دَپاره | او (دَ) امن (ځائے) | چه جوړ کړه

او (ياد کړه) هرکله چه مونږ خانه کعبه خلقو دَپاره دَعبادت مرکز او دَ امن ځائے جوړ کړو او (حکم مو ورکړو) چه

مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهٖمَ مُصَلًّى ؕ وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ

مقام دَ ابراهيم | دَ مونځ ځائے | او مونږ حکم ورکړو | ابراهيمؑ ته | او اسماعيلؑ ته

مقامِ ابراهيم دَ مونځ ځائے جوړ کړه او مونږ ابراهيمؑ او اسماعيلؑ ته عهد واخستو چه تاسو زما کور دَ

اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ﴿١٢٥﴾

چه تاسو پاک ساتئ | زما کور | دَ پاره دَطواف کوونکو | او دَ اعتکاف کوونکو | او دَ رکوع او سجده کوونکو

طواف کوونکو او اعتکاف کوونکو او رکوع او سجده کوونکو دَ پاره پاک او صفا ساتئ۔

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ

او هرکله چه وُوئيل | ابراهيمؑ | اے زما ربه! | جوړ کړه | دا ښار | امن والا | او روزی ورکړه

هرکله چه ابراهيمؑ وُوئيل اے زما ربه! دا ښار دَ امن ځائے وُګرځوه او په دے کښے دَاوسيدونکو

اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ

دَدے اُوسيدونکو ته | دَ ميوو نه | څوک چه | ايمان راوړي | دَ هغوی نه | په الله | او په ورځ

نه کوم چه په الله او په ورځ دَ آخرت ايمان راوړی هغوی ته دَ خوراک دَپاره ميوے

الْاٰخِرِ ؕ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗٓ

دَ آخرت | وے فرمائيل | او کوم چه انکار وُکړی | نو فائده به ورکړم هغهٔ ته | لږه | بيا به | وُشړم هغه په ذلت سره

ورکړه۔ (الله) وُفرمائيل او څوک چه کافر شي هغهٔ له به هم څهٔ موده فائده ورکړم بيا به هغه دَجهنم

اِلٰى عَذَابِ النَّارِؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿١٢٦﴾ وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ
دَ دوزخ عذاب ته | او هغه بد | ځائے دے | او هر کله چه اُوچتول | ابراهيم | بنيادونه
عذاب ته وُرسوم او هغه دَ استوګنے ډير خراب ځائے دے ۔ او ياد کړه هر کله چه ابراهيم او اسماعيل عليهم السلام

مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُؕ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّاؕ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ
دَ کعبے | او اسماعيل | اے زمونږ ربه! | قبول کړه | له مونږ نه | بيشکه هم ته يې | لوئے اُوريدونکے
دَ بيت الله دَ ديوالونو بنيادونه اُوچتول ۔ (او دُعائے غوښتله چه) اے زمونږ ربه! ځمونږ دا خدمت قبول کړه بيشکه ستهٔ

الْعَلِيْمُ ﴿١٢٧﴾ رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ
دانا ۔ | اے زمونږه ربه! | او کرځوه مونږ | فرمانبردار | ستا | او زمونږ دَ اولاد نه (هم)
اُوريدونکے او پوهه يئے ۔ اے زمونږ ربه! مونږ دواړه خپل تابعدار او فرمانبردار وُګرځوه او زمونږ په اولاد کښے هم يو توله

اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ۪ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَاۚ اِنَّكَ اَنْتَ
يوه ډله | فرمانبرداره | ستا | او وُښايه مونږ ته | زمونږ دَ حج طريقے | او توبه قبوله کړه زمونږ | بيشکه هم ته يې
خپل فرمانبردار کړه او مونږ ته زمونږ دَ عبادت طريقے وُښايه او زمونږ توبه قبوله کړه بيشکه تهٔ توبه

التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿١٢٨﴾ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا
توبه قبلونکے | مهربان | اے زمونږ ربه! | او راوُلېږه | په دوی کښے | يو رسول | له دوی نه | چه تلاوت کوی
قبلونکے او رحم کوونکے يئے ۔ اے زمونږه ربه! په دوی کښے له دوی نه يو رسول راوُلېږه چه دوی ته ستا

عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْؕ اِنَّكَ اَنْتَ
دوی ته | ستا اٰيتونه | او زده کوی دوی ته | کتاب | او دانائی | او پاک کړی دوی | بيشکه هم ته يې
حکمونه اُوړوی او دَ کتاب (قرآن مجيد) او دَ هوښيارتيا تعليم ورکوی او دَ ګناهونو نه ئے پاکوی بيشکه تهٔ غالب

الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٢٩﴾ وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ع ۱۵ ۸ ۱۵
غالب | دَ حکمت خاوند | او څوک دے چه مخ واړوی | ملّت دَ ابراهيم نه | سوا دَ هغه نه | چه احمق کړی خپل ځان
او حکمت خاوند يئے ۔ او دَ ملّت ابراهيمی نه څوک مخ اړولے شی، سوا دَ هغه چا نه چه خپل ځان ئے کم عقل

وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَاۚ وَاِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٣٠﴾
او بيشکه | مونږ غوره کړو هغه | په دُنيا کښے | او بيشکه هغه | په آخرت کښے (هم) | به له صالحانو نه وی ۔
کړے وی او مونږ (ابراهيم) په دُنيا کښے (هم) غوره کړے وُو او په آخرت کښے به هم دَ نيکانو دَ ټولی نه شمير وی ۔

اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٣١﴾
هر کله چه وُوئيل | هغهٔ ته | دَ هغهٔ رب | فرمانبردار شه | نو وُئے وئيل | زهٔ فرمانبردار يم | دَ جهان دَ پرورګار
ياد کړه کله چه (ابراهيم ته) دَ هغهٔ رب وُوئيل چه (زما حکم ته) غاړه کيږده هغهٔ وُوئيل چه ما دَ ټول جهان رب ته غاړه ايښے ده ۔

وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُؕ يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى
او وصيت وُکړو | دَ دے خبرے | ابراهيم | خپلو ځامنو ته | او يعقوب هم | (چه) اے زما ځامنو! | بيشکه الله | غوره کړو
او بيا دَ دے خبرے وصيت ابراهيم او (دَ هغه نوَسی) يعقوب خپل اولاد ته هم کړے وو چه اے ځامنو! بيشکه الله تاسو دَ پاره

لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾

تاسو دَ پاره | دا دین | پس تاسو مهٔ مرئ | مګر (په هغه حال کښے چه) تاسو | مسلمانان یئ ـ

دین (دَ اسلام) غوره کړے دے پس تاسو تر مرګه پورے مسلمانان وُسیږئ ـ

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ

آیا وئ تاسو حاضر | کله چه حاضر شو | یعقوب ته | مرګ ـ | کله چه وُوئیل هغه | خپلو ځامنو ته

بیا آیا تاسو هغه وخت موجود دئ کله چه دَ یعقوب؏ اخری وخت راغے (او) کله چه هغهٔ دَ خپلو ځامنو نه

مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِيْ ؕ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ

چه دَچا عبادت به کوئ ؟ | زما نه پس | هغوی ووئیل | مونږ به عبادت کوُو | دَ معبود ستا

تپوس وُکړو چه زما نه پس به تاسو دَچا عبادت کوی ؟ هغوی ووئیل چه مونږ به هم دَ هغه یو خدائے عبادت کوو

وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚۖ

او دَ معبود دَ پلارنیکهٔ ستا | (چه) ابراهیم؏ | او اسماعیل؏ | او اسحاق (دُو) | چه معبود دے | یو ـ

دَ کوم عبادت چه تا او ستا بزرګانو ابراهیم او اسماعیل او اسحاق (علیهم السلام) کولو ـ

وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۳﴾ تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا

او مونږ | هم دَ هغهٔ | فرمانبردار یُو | دا یوه ډله وه | چه تیره شوے ده | هغوی دَ پاره دی | کوم چه

او مونږ هم دَ هغه الله فرمانبردار یُو ـ دا یو اُمّت وُو چه تیر شو دَ هغوی عملونه به

كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۴﴾

وُکړل هغوی | او تاسو دَ پاره دی | کوم چه تاسو وُکړل | او له تاسو نه به تپوس نه شی کولے | دَ هغه څهٔ | چه کول به هغوی ـ

دَ هغوی په کار راځی او ستاسو عملونه به ستاسو په کار راځی او تاسو نه به دَ هغوی دَ عملونو په حقله تپوس نهٔ کیږی ـ

وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ

او هغوی وائی | چه شئ تاسو | یهود یا نصارٰی | (چه) تاسو لار بیا مومئ | وُوایه (نا) بلکه | (مونږ خو به) په ملت دَ ابراهیم (یو)

او هغوی وائی چه یهودیان یا نصارٰی شئ چه سمه لار بیا مومئ ـ ته وُوایه چه ملت دَ ابراهیم (په پیروئ کښے هدایت

حَنِيْفًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۳۵﴾ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ

چه دَ یو خدائے منونکے وو | او نهٔ وو | له مشرکانو نه | وایئ تاسو | ایمان راوړے دے مونږ په الله | او په هغه څه

دے) چه دَ یو الله بنده وو او (ستاسو په شان) مشرک نهٔ وُو ـ وُوایه چه مونږ الله باندې ایمان لرو او په هغه کتاب

اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

چه نازل شول په مونږ | او څهٔ چه نازل شول | ابراهیم؏ | او اسماعیل؏ | او اسحٰق؏ | او یعقوب؏

چه مونږ ته رالیږلے شوے دے او په هغه (کتابونو) هم چه حضرت ابراهیم، اسحاق او یعقوب علیهم السلام ته او دَ دوی

وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ

او (دَ هغه) اولاد باندې | او څهٔ چه ورکړے شوی وُو | موسیٰ او عیسیٰ ته | او څهٔ چه ورکړے شوی وُو | نورو نبیانو ته | دَ هغوی دَ رب دَ طرفه

اولاد ته رالیږلی شوی دی او په هغه کتابونو باندې کوم چه موسیٰ، عیسیٰ او نورو پیغمبرانو علیهم السلام ته دَ خپل رب دَ طرفه ورکړے شوی وو

لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٦﴾ فَإِنْ اٰمَنُوا

مونږ فرق نه کوو | په مینځ د هیڅ یو کښې | له هغوی کښې | او مونږ خو | هم د هغه | فرمانبردار یو | پس که چرې ایمان راوړی هغوی

مونږ فرق نه کوو او مونږ خو هم د هغه فرمانبردار یو. پس که چرې داخلق هغسې

مونږ په دوی کښې د چا په مینځ کښې هیڅ فرق نه کوو

بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ

شان چه | تاسو ایمان راوړې دے | په دے (کتاب) | نو هغوی هم لاره بیا موندله | او که چرې هغوی مخ واړولو | پس بیشکه هغوی

ایمان راوړی څنګه چه تاسو خلقو په دے کتاب ایمان راوړې دے نو یقیناً هغوی هدایت بیا موندو او که هغوی شا کړه نو بیا دا هغوی

فِي شِقَاقٍ ۚ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿١٣٧﴾

په مخالفت کښې دی | پس کافی دے تا د پاره الله د هغوی په مقابله کښې | او هغه دے | آورېدونکے | ډیر ښه پوهه.

بے ځایه ضد دے، اے پیغمبره د دوی د شر نه د بچ ساتلو د پاره تا له الله کافی دے او هغه آورېدونکے او پوهه دے.

صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ۖ وَنَحْنُ لَهُ عٰبِدُونَ ﴿١٣٨﴾

د الله رنګ! | او څوک | غوره دے | د الله نه | په رنګ ورکولو کښې | او مونږ خو د هغه | عبادت کوو.

مونږ د الله رنګ قبول کړے دے او د الله د رنګ نه نور د چا رنګ غوره کیدے شي او مونږ خو یوازے د الله عبادت کوونکی یو.

قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِي اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ أَعْمَالُنَا

ووایه | ایا تاسو جګړه کوئ مونږ سره | د الله په نسبت | او هغه زمونږ رب دے | او رب ستاسو | او مونږ د پاره | زمونږ عملونه دی

ووایه چه ایا تاسو مونږ سره د الله په باره کښې جګړے کوئ حال دا دے چه هم هغه زمونږ رب دے او ستاسو (هم) مونږ د پاره زمونږ عملونه

وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ ﴿١٣٩﴾ أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرٰهٖمَ

او تاسو د پاره | ستاسو عملونه | او مونږ | هم د هغه په اخلاص سره عبادت کوو. | یا تاسو وایئ | چه بیشکه ابراهیم

دی او تاسو د پاره ستاسو عملونه او مونږ هم د هغه مخلص (بندګان) یو. ایا تاسو دا وایئ چه ابراهیم،

وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ كَانُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى ۗ قُلْ

او اسماعیل | او اسحاق | او یعقوب (علیهم السلام) او (د هغه) اولاد وو | یهودیان یا عیسایان | ووایه

اسماعیل، اسحاق، یعقوب علیهم السلام او د هغه اولاد یهودیان یا عیسایان وو ورته ووایه

ءَأَنْتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللّٰهُ ۗ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهُ

ایا تاسو | زیات پوهه یئ | یا الله | او څوک زیات ظالم دے | د هغه نه | چه پټه کړی | ګواهي | چه هغه سره وی

چه تاسو ښه خبر یئ او که الله. او د هغه چا نه لوئے ظالم به څوک وی؟ چه د خدائے شهادت ورسره پروت وی او هغه

مِنَ اللّٰهِ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٠﴾ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا

د الله د طرف نه | او نه دے الله | بے خبره | د هغه څه نه چه تاسو کوئ | هغه یو ټولے وو | چه تیر شو | د هغوی د پاره دی

ئے پټوی او خدائے ستاسو د کارونو نه ناخبره نه دے هغه یو ټولے وو چه تیر شو د هغوی عملونه به

مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤١﴾ ع ١٦ ١٢ ١٦

د هغوی عملونه | او تاسو د پاره دی | ستاسو عملونه | او پوښتنه به نه کیږی له تاسو نه | د هغه څه چه | هغوی به کول.

د هغوی به کار راځی او ستاسو عملونه به ستاسو کار راځی او تاسو نه به د هغوی د عملونو په حقله هیڅ تپوس نه کیږی.

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِىْ

زر دہ چہ وُبہ وائی | بے عقلہ | لہ خلقونہ | چہ کوم شیز وګرځول دوی | لہ هغې قبلې د دوی نہ | چہ

اوس خو بہ دا بے وقوف خلق ضرور وائی چہ مسلمانان کوم شیز د چلے هغې قبلې (بیت المقدس) نہ وګرځول چہ

كَانُوْا عَلَيْهَا ۭ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۭ يَهْدِىْ مَنْ

وُو دوی پہ هغې بانږ | وُوایہ | الله د پارہ دے | مشرق | او مغرب | لار ه ښائی | هغہ چا تہ

تر اوسہ پہ ورتہ مخ کولو (اے پیغمبره!) ووایہ چہ مشرق او مغرب ټول یواز ے د خدائے دی او چہ د چا پہ حقلہ

يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ١٤٢ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً

چہ وُغواړی | نیغې لارے طرف تہ ـ | او هم دغہ شان | مونږ جوړه کړئ تاسو | یو اُمت

ئے رضا شی نو هغہ پہ سمہ لار روان کړی ـ او دغہ شان (اے مسلمانانو!) مونږ تاسو یو غوره ټولے

وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ

معتدل | د پاره د دے چہ تاسو شئ | ګواهان | پہ خلقو بانږ | او شی | رسول

وګرځولئ چہ تاسو پہ نورو خلقو بانږ ګواهان شئ او (د الله) رسول پہ تاسو بانږ

عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ۭ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِىْ كُنْتَ عَلَيْهَآ

پہ تاسو بانږ | ګواه | او نہ وه مقرر کړے مونږه | قبلہ | هغہ چہ | تہ وُوے پہ هغې بانږ

ګواه شی او مونږ هغہ قبلہ چہ تا بہ ورتہ (پہ مکہ کښے) مونځ کولو پہ دے غرض بیا

اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ

مګر | د پارہ د دے چہ مونږ معلوم کړو هغہ څوک | چہ پیروی کوی | د رسول | لہ هغہ کس نہ | چہ بیرتہ راګرځی

مقرر کړه چہ معلوم کړو چہ څوک د پیغمبر پیروی کوی او څوک پہ اړولو پونډو بیرتہ

عَلٰى عَقِبَيْهِ ۭ وَاِنْ كَانَتْ لَكَبِيْرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيْنَ هَدَى

پہ خپلو دواړو پونډو | او بیشکہ دا خبره دُرنہ ده | مګر | پہ هغو خلقو نده | چا تہ چہ هدایت وکړو

ګرځی او یقینًا دا خبره (ډیره) ګرانه وه مګر هغہ خلقو د پاره (هیڅ ګرانه) نہ ده چا تہ چہ

اللّٰهُ ۭ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيْعَ اِيْمَانَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ

الله | او الله نہ ضائع کوی | ایمان ستاسو | بیشکہ الله | پہ خلقو

الله هدایت کړے وی او (یاد ساتئ) الله داسے نہ دے چہ ستاسو ایمان (او عملونہ) ضائع کړی، بیشکہ الله پہ خلقو

لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ١٤٣ قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِى السَّمَآءِ

خامخا مهربان | بخښونکے دے | بیشکہ | مونږ وینو | ګرځیدل | د مخ ستا | د آسمان طرف تہ

بانږ ډیر مهربانہ رحم کوونکے دے ـ (اے پیغمبره!) مونږ وینو چہ تہ بیا بیا آسمان طرف تہ ګوړے نو مونږ

فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰىهَا ۠ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ

پس ضرور بہ وګرځوو مونږ تا | هغې قبلې تہ | کومہ چہ ستا خوښہ ده | پس وګرځوه | مخ خپل | پہ طرف

بہ تا ضرور هغہ قبلې تہ وګرځوو چہ کومہ ستا خوښہ ده نو خپل مخ د مسجد حرام (کعبہ) پہ

الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ

دَ مسجد حرام | او هر ځائے کښے چه | یئ تاسو | پس وګرځوئ | مخونه خپل | دَ هغه طرف ته

نو دَ کرځوئ۔ او (اے مسلمانانو!) هر ځائے کښے چه تاسو یئ نو دَ مسجد حرام (کعبه) طرف ته مخ کوئ

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ

او بیشکه | هغه خلق | کوم ته چه ورکړے شو کتاب (تورات) | یقیناً پوهیږی | چه بیشکه دا حق دے | دا دی دَ رب دَ طرف نه

او کوم خلقو ته چه کتاب ورکړے شوے دے هغوی ډیر ښه پوهیږی چه (دَ قبلے بدلیدل) دَ هغوی دَ رب دَ طرف نه

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٤٤﴾ وَلَئِنْ اَتَيْتَ الَّذِيْنَ

او نه دے الله | بے خبره | له هغه څه نه چه دوی ئے کوی | او که چرے | راوړے ته | هغوی ته

بالکل برحق دی او الله دَ هغه څه نه بے خبره نه دے کوم چه دوی کوی۔ او که چرے ته هغه خلقو ته چاته چه کتاب

اُوْتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ ۚ وَمَا اَنْتَ بِتَابِعٍ

چاته چه ورکړے شو | کتاب | هر قسم دلیل | نو (هم) به هغوی نه منی | قبله ستا | او نه ئے ته پیروی کونکے یئے

ورکړے شوے دے هر قسم دلیلونه راوړے نو هم به هغوی ستا قبله ونه منی او نه ئے ته دَ هغوی قبله

قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ؕ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ

دَ قبلے دَ هغوی | او نه دی ځنے له هغوی نه | پیروی کونکی | دَ قبلے دَ ځنے نورو | او که چرے | پیروی وکړه تا

قبلولے شے او هغوی په خپل مینځ کښے هم دَ یو بل دَ قبلے منلو ته تیار نه دی او که چرے ته دَ دے

اَهْوَآءَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ اِنَّكَ اِذًا

دَ هغوی دَ خواهشاتو | دَ دے نه پس چه | راغلے دے تا ته | علم | نو بیشکه ته هم | دغه وخت

واضح علم راتلو نه پس هم دَ دوی په خواهشاتو پسے لاړے نو په ظالمانو کښے

لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٤٥﴾ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا

(به) دَ ظالمانو نه (شے) | هغه خلق | چاته چه ورکړے دے مونږ | کتاب | هغوی دا (رسول) پیژنی | لکه چه

به شمیر شے۔ چاته چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوی دا (نبی) داسے پیژنی لکه څنګه

يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ؕ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ

هغوی پیژنی | خپل ځامن | او بیشکه | څه خلق | دَ هغوی نه | ضرور پټوی | حقه خبره | او هغوی

چه هغوی خپل ځامن پیژنی او بیا هم په دوی کښے یو ټولے سره دَ علم حق

يَعْلَمُوْنَ ﴿١٤٦﴾ اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿١٤٧﴾ وَلِكُلٍّ

پوهیږی | دا حق دے | ستا دَ رب دَ طرف نه | پس مه کیږه ته | دَ شک کوونکو نه | او هر یو دَ پاره

پټوی دا (دَ قبلے بدلیدل) دَ الله دَ طرف نه حقه خبره ده نو هیڅ قسم له شک شبهه په کښے مه کوه۔ او هر چا

وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ

یو طرف (مقرر) دے | چه هغه مخ کوونکے دَ هغے دے | پس وړاندې ځئ | په نیکیو کښے | هر ځائے کښے چه یئ تاسو | را به ولی

دَ پاره یو طرف دے کوم ته چه هغه متوجه کیږی پس تاسو دَ نیکئ په کارونو کښے دَ یو بل نه مخکښے شئ، هر ځائے کښے چه تاسو یئ

وقف لازم

ع ١٧ وقف منزل

وقف النبی ﷺ

بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٤٨﴾ وَمِنْ حَيْثُ

تاسو | الله | قول | بیشکه | الله | په هر څیز باندې | قادر دے | او د کوم ځائے نه چه

الله به موبیا یو ځائے کړی بیشکه الله په هر کار قدرت لری۔ او د کوم ځائے نه چه ته

خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَاِنَّهٗ

نه ووځې | پس واړوه | مخ خپل | په طرف | د مسجد حرام | او بیشکه دا

(په سفر) وتلے یې! د هغه ځائے نه مسجد حرام طرف ته (په مونځ کښې) مخ کوه حُکه چه دا ستاد

لَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ ۭ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٤٩﴾ وَمِنْ حَيْثُ

ضرور حق دے | له طرفه د رب ستا | او نه دے الله | بے خبره | د هغه څه نه چه تاسو کوئ | او کوم ځائے نه چه

پاک رب له طرفه برحقه فیصله ده او خدائے پاک ستاسو د عملونو نه بے خبره نه دے۔ او (اے نبی!) هر ځائے

خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَحَيْثُ مَا

ته ووځې | نو اړوه | خپل مخ | طرف | د مسجد حرام ته | او هر ځائے کښې چه

ته چه ته لاړ شے د هغه ځائے نه (په مونځ کښې) مسجد حرام طرف ته مخ کوه۔ او (اے مسلمانانو!) په هر ځائے

كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ ۙ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ

یئ تاسو | نو واړوئ | مخونه خپل | د هغے طرف ته | د پاره د دے چه نه وی | خلقو د پاره | په تاسو

کښې چه تاسو یئ نو هغے طرف ته برابر مخ کوئ (د قبلے د بدلولو حکم ځکه ورکولے شی) چه په تاسو باندې سوا د هغو خلقو

حُجَّةٌ ۤ اِلَّا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ ۤ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِيْ ۤ

(څه) الزام | سوا | د هغو خلقو نه | چه ظالمان دی | له دوی نه | پس مه ویریږئ د هغوی نه | او ویریږی له ما نه

نه کوم چه به دوی کښې بے انصافه دی د چا څه اعتراض پاتے نه شی پس تاسو د دوی نه هیڅ کله مه ویریږئ او صرف ما نه

وَلِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿١٥٠﴾ ۙ كَمَآ اَرْسَلْنَا

او چه زه پوره کړم | خپل نعمت | په تاسو | او د پاره د دے چه تاسو | لاره بیا مومئ | لکه څنګه چه | مونږ رالیږلو

ویریږئ او د پاره د دے چه زه په تاسو باندې خپل نعمتونه پوره کړم او دے د پاره چه تاسو هدایت بیا مومئ۔ (دا د قبلے بدلیدل

فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ

په تاسو کښې | یو رسول | هم له تاسو نه | چه تلاوت کوی | په تاسو | زمونږ ایتونه | او پاکوی تاسو

هم یو داسے نعمت دے) څنګه چه هغه رسول کوم چه مونږ هم تاسو نه ستاسو طرف ته لیږلے دے چه تاسو ته زمونږ حکمونه اوروی تاسو

وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا

او زده کوی تاسو ته | کتاب | او حکمت | او زده کوی تاسو ته | هغه څه چه تاسو نه

پاکوی، او قران او حکمت در ته ښائی، او د داسے خبرو تعلیم درکوی چه تاسو نه معلوے

تَعْلَمُوْنَ ﴿١٥١﴾ ۭ فَاذْكُرُوْنِيْٓ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِيْ وَلَا تَكْفُرُوْنِ ﴿١٥٢﴾ ع

پوهیدئ۔ | پس یاد کړئ ما | چه یاد کړم زه تاسو | او شکر وکړئ زما | او ناشکری ونه کړئ زما۔

هم نه وے نو تاسو ما یادوئ زه به تاسو یاد لرم او زما شکر ادا کوئ او ناشکری مه کوئ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
اے | دَ ایمان خاوندانو! | تاسو مدد اخلئ | په صبر | او مونځ سره | بیشکه | الله
اے مؤمنانو! (په هره سختۍ کښې) په صبر او مونځ سره مدد حاصلوئ بیشکه الله دَ صابر
مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٥٣﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِیْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ
سره دَ صبر کوونکو | او مه وایئ | هغه چا ته | چه شهیدان شی | دَ الله په لاره کښې | مړه
او هغو خلقو ته چه دَ الله په لاره کښې وژلے شی مړه مه وایئ۔ خلقو ملګرے دے۔
بَلْ اَحْيَآءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿١٥٤﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَیْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ
بلکه هغوی ژوندی دی | لیکن | تاسو نه پوهیږئ | او مونږ به ضرور وازمایونا سو | په څه څیز | له ویرے نه
هغوی (په حقیقت کښې) ژوندی دی خو تاسو پرے نه پوهیږی او مونږ به ضرور په ویره او
وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ؕ وَبَشِّرِ
او له لوږے نه | او له نقصان دَ مالونو نه | او دَ ځانونو نه | او دَ میووه نه | او زیرے ورکړه
په لوږه کښې او دَ مالونو او دَ ځانونو او دَ میوو په نقصان کښې ستاسو ازمیښت کوو او اے پیغمبره
الصّٰبِرِيْنَ ﴿١٥٥﴾ الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْٓا اِنَّا لِلّٰهِ
صبر کوونکو ته | هغه چا ته چه | هر کله ورسیږی هغوی ته | (څه) مصیبت | نو وائی | بیشکه مونږ | دَ الله یو
صبر کوونکو ته زیرے ورکړه۔ دا هغه خلق دی چه څه مصیبت پرے راشی نو (دَ ژړا فریاد په ځائے) وائی چه مونږ تول
وَاِنَّآ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿١٥٦﴾ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوٰتٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ
او بیشکه مونږ به دَ هغه طرف ته | بیرته ورګرځو | دا هغه خلق دی | په کوم چه | مهربانیانے دی | دَ هغوی دَ رب طرف نه
دَ الله مال یو او مونږ ټول به هغه ته واپس ګرځو۔ هم دا هغه خلق دی په کوم چه به دَ خپل رب دَ طرف نه مهربانۍ
وَرَحْمَةٌ قف وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُوْنَ ﴿١٥٧﴾ اِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ
او رحمت | او هم دوی دی | هدایت موندونکی۔ | بیشکه | صفا | او مروه
او رحمتونه وریږی او هم صرف دا خلق په سمه لاره باندی دی۔ بیشکه صفا او مروه دَ الله (دَ عبادت)
مِنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ
دَ الله تعالیٰ دَ نخښو نه دی | پس څوک چه | حج دَ خانه کعبے کوی | یا عمره کوی | نو نشته ګناه
په نخښو کښې شامل دی پس څوک چه دَ خانه کعبے حج ادا کوی یا عمره کوی نو په هغه څه ګناه
عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ؕ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ
په هغه باندی | چه طواف وکړی | په هغو دواړو کښے | او څوک چه | په خوشحالۍ سره وکړی نیکی | نو بیشکه | الله
نشته چه هغه دَ دے دواړو ځایونو په مینځ کښے سعی وکړی او څوک چه په خپله مینه دَ نیکۍ کار وکړی نو الله یقیناً قبلوونکے
شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ﴿١٥٨﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلْنَا
قدر دان | پوهه دے | بیشکه | هغه خلق چه | پټوی | څه څه چه | نازل کړل مونږ
او په هر څه ښه پوهه دے۔ څوک چه زمونږ نازل کړی ښکاره آیتونه او دَ هدایت تعلیم

مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى مِنْۢ بَعْدِ مَا بَيَّنّٰهُ لِلنَّاسِ

له ښکاره دليلونو | او هدايت څخه | پس له هغې نه چه | مونږ بيان کړی ئې هغه | دَ خلقو دَ پاره

پټوی دَ هغې نه پس چه مونږ دَ خلقو دَ (فائدے دَ) پاره په خپل کتاب کښے په ښه شان سره

فِى الْكِتٰبِ ۙ اُولٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللّٰهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللّٰعِنُوْنَ ﴿١٥٩﴾

په کتاب کښے | هم دا (هغه خلق) دی | چه لعنت کوی په هغوی باندے الله | او لعنت کوی په هغوی باندے | لعنت کوونکی

واضح کړی دی ، نو په هغوی باندے الله هم لعنت وروی او ټول لعنت کوونکی پرے هم لعنت وائی ۔

اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْ

مگر | هغه خلق | چه توبه ئے وُکړه | او خپل عمل ئے سم کړو | او ظاهر ئے کړو (حق) | پس هم دا خلق دی | چه زهٔ توبه قبلوم | دَ هغوی

ليکن بيشکه څوک چه توبه وُباسی او خپل عمل سم کړی (او کوم تعليم چه ئے پټولو هغه) څرګند کړی نو زهٔ به هغوی

وَاَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿١٦٠﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ

او زهٔ یم | توبه قبلوونکے | مهربانه | يقينًا | کوم خلق چه | انکار کوی | او مړهٔ شول | په دے حال کښے

معاف کړم، او زهٔ توبه قبلوونکے مهربان يم ۔ بيشکه کوم خلقو چه انکار وُکړو او دَ انکار په دے حالت

كُفَّارٌ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ

چه هغوی کافران وُو | دا (هغه خلق) دی | په کوم چه | لعنت دے | دَ الله | او دَ فرښتو | او دَ خلقو

کښے مړهٔ شول نو په هغوی دَ الله تعالىٰ او دَ فرښتو او دَ ټولو بنيادمو لعنتونه

اَجْمَعِيْنَ ﴿١٦١﴾ ۙ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ

ټولو | هميشه به وی هغوی | په دغه لعنت کښے | سپک به نهٔ کړے شی | له هغوی نه | عذاب

وريږی شی ، هغوی به په دغه لعنت کښے هميشه وی ، نهٔ به دَ هغوی نه عذاب کمولے شی ۔

وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿١٦٢﴾ وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

او نهٔ به هغوی ته | مهلت ورکولے شی | او معبود ستاسو | خدائے يو دے | نشته هيڅ معبود بے دَ هغهٔ نه

او نهٔ به هغوی ته (څهٔ قدرے) مهلت ورکولے شی ۔ او (اے خلقو!) ستاسو معبود هم يو معبود دے دَ هغهٔ نه سوا بل څوک

ع ١١ ١٩ ٢ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿١٦٣﴾ اِنَّ فِىْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

بخښونکے | مهربان دے | بيشکه | په پيدا کولو کښے | دَ اسمانونو | او زمکے

معبود نشته ، ډير بخښونکے مهربان دے ۔ بيشکه دَ اسمانونو او دَ زمکے په پيدا کولو کښے

وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِىْ تَجْرِىْ فِى الْبَحْرِ

او په تلو راتلو | دَ شپے | او ورځے کښے | او په هغه کشتئ کښے | چه روانه وی | په دريا بکښے

او دَ شپے او دَ ورځے په پوله پسے تګ راتګ (او لوئيدو وړيدو) کښے، او په هغه کشتيو کښے چه په دريابونو کښے دَ خلقو

بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ

په هغه څيزونو سره | چه نفع ورکوی | خلقو ته | او په هغے کښے | چه نازل کړے | الله | له اسمان نه | اوبهٔ

دَ فائدے سامانونه اوړی راوړی ، او په هغے اوبو کښے چه الله تعالىٰ ئے دَ پورته نه راوروی

فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ

بیا ژوندئ ئې کړله | په هغې سره | زمکه | پس د مرګ (وچیدو) د هغې نه | او خوارهٔ ئې کړل | په دې کښې | د هر قسم
او د دے په ذریعے مړه (یعنی اوچه) زمکه ژوندئ کړه او په دے کښې ئے هر قسم خناور

دَابَّةٍ وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ

خناور | او په ګرځولو | د هواګانو کښې | او په وریځو کښې | چه په قابو کښې دی | په مینځ | د اسمان
خوارهٔ کړل او د ښیلو بادونو په چورلولو کښې او په هغه وریځو کښې چه د زمکے او اسمان په مینځ کښې زورتړے

وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ

او زمکه کښې | خامخا نخښې دی | هغه خلقو د پاره | چه عقل لری | او له خلقو نه | هغه څوک دی | چه جوړوی
دلاړے وی په دے ټولو کښې د هغه خلقو د پاره نخښې دی کوم چه عقلمند دی۔ او په خلقو کښې څنے داسے هم دی چه د الله نه

مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ ۖ وَالَّذِينَ

بې له خدائے نه | شریکان | محبت کوی هغوی سره | په شان د محبت د الله | او هغه خلق چه
سوا نور څیزونه هغه سره په برابرئ نیسی او د هغوی سره داسے محبت ساتی څنګه چه د الله سره محبت کول پکار دی او

آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلَّهِ ۗ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا

ایمان والا دی | هغوی خو د ټولو نه زیات محبت الله سره لری | او کاش چه کتلے | هغه خلقو | چه ظالمان دی
کوم خلق چه په الله ایمان لری هغوی ته هم د الله محبت د ټولو نه زیات وی او کاش چه ظالمانو ته د دے حالت اندازه کیدے

إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ۙ وَأَنَّ اللَّهَ

هرکله چه به ووینی | عذاب | چه قوت الله د پاره دے ټول | او دا چه | الله
هرکله چه هغوی عذاب ووینی او ومنی چه ټول قوت او طاقت صرف هم الله ته حاصل دے او دا چه الله تعالیٰ

شَدِيدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾ إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ

سخت | عذاب ورکوونکے دے | هرکله چه ویزاره شی | هغه خلق | د کوم چه پیروی شوے وه | د هغو خلقو نه
په عذاب ورکولو کښې هم ډیر سخت دے۔ هغه وخت (لږ یاد کړئ) هرکله چه هغه خلق د چا پیروی چه شوے وه د خپلو

اتَّبَعُوا وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿١٦٦﴾

چا چه پیروی کړے وه | او هغوی به ووینی | عذاب | او غوڅ به شی | د هغوی | تعلقات
پیروی کوونکو نه د ویزارئ اظهار وکړی او هرکله چه هغوی عذاب په خپلو سترګو ووینی او د هغوی ټول رشتے او وسیلے

وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ

او وبه وائی | هغه څوک چه پیروی ئے کړے وه | چه کاش مونږ له | دوباره (تګ وے) | پس چه ویزاره شو مونږ | د هغوی نه
پرې کړے شی او چا چه په دنیا کښې د هغوی پیروی کوله وبه وائی، کاش! که مونږ ته د واپس تللو یو موقع راکړے شی

كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا ۗ كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ

څنګه چه | ویزاره شول هغوئ | له مونږ نه | دغه شان | وبه ښائی هغوئ ته | الله | عملونه د هغوئ | پښیمانتیا
نو مونږ به هم ترے داسے ویزاره شو لکه چه مونږ نه ویزاره شوی دی دغه شان به الله هغوی ته د هغوی ناکاره عملونه د حسرت

عَلَيْهِمْ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ﴿١٦٧﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ

په هغوئ | او نه دي هغوئ | بهرنه وتونكي | دَ دوزخ نه | اے خلقو!

دَ پښيمانئ دَ پاره وړاندِ کوی۔ او په هيڅ چل به دَ اور نه بهر وتلے نه شی۔ اے خلقو!

كُلُوْا مِمَّا فِى الْاَرْضِ حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ

خورئ | له هغه څه نه | چه په زمکه کښے دی | حلال پاکيزه | او پيروی مه کوئ | دَ قدمونو

دَ زمکے په سر چه کوم حلال او پاکيزه څيزونه موجود دی هغه خورئ او دَ شيطان په جوړه کړے لارے پسے

الشَّيْطٰنِ ۭ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿١٦٨﴾ اِنَّمَا يَاْمُرُكُمْ

دَ شيطٰن | بيشکه هغه | ستاسو | ښکاره دُښمن دے | بيشکه چه هغه حکم کوی تاسو ته

مه ځئ۔ بيشکه هغه ستاسو څرګند دښمن دے۔ هغه خو به تاسو ته دَ بدئ او

بِالسُّوْۗءِ وَالْفَحْشَاۗءِ وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا

دَ بدکارئ | او دَ بے حيايئ | او دا چه | (له ځانه) وايئ | په الله باندِ | هغه خبرے

دَ بے حيايئ دَ کارونو حکم درکوی او (دا به درته ښائی) چه دَ الله په نوم داسے (دروغ) خبرے جوړے کړئ چه دَ هغے

لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿١٦٩﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ

چه تاسو پرے نه پوهيږئ | او هر کله چه ووئيلے شی | هغوی ته | چه پيروی وکړئ دَ هغه څه | چه نازل کړی دی | الله

نه تاسو په خپله هم خبر نه يئ۔ او هر کله چه هغوی ته ووئيلے شی چه الله څه نازل کړی دی دَ هغے پيروی وکړئ

قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَاۤ اَلْفَيْنَا عَلَيْهِ اٰبَاۤءَنَا ۭ اَوَلَوْ كَانَ

نو وو ئيل هغوی | بلکه مونږ خو به پيروی کوُو | دَ هغه څه | چه موندلی دی مونږ | په هغے | خپل پلار نيکهٔ | آيا اګر که وی

نو وائی چه مونږ خو به په هغه لار چليږو په کومه چه مونږ خپل مشران روان موندلی دی اګر که دَ هغوی

اٰبَاۤؤُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ شَيْــــًٔـا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿١٧٠﴾ وَمَثَلُ

دَ هغوی پلار نيکهٔ | چه نهٔ پوهيدل | په هيڅ څيز | او نهٔ يې سمه لار موندله | او مثال

پلار نيکهٔ په هيڅ څيز نهٔ پوهيږی او سمه لار ئے موندلے نهٔ وی (نو بيا به هم دَ هغوی په لار روان وئ؟) او دَ کافرانو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا كَمَثَلِ الَّذِىْ يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ

دَ هغو چه | کافران دی | په شان | دَ هغه چا دے | چه آواز کوی | هغه څيز ته | چه نهٔ اوری

مثال دَ هغه چا په شان دے چه بو داسے څيز پسے چغے وهی چه سوا دَ بلنے او آواز

اِلَّا دُعَاۤءً وَّنِدَاۤءً ۭ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿١٧١﴾

مګر بلنه | او چغه | کاڼهٔ دی | ګونګيان دی | ړاندهٔ دی | پس هغوی | په هيڅ نهٔ پوهيږی

نه نور هيڅ نهٔ اوری، دا خلق کاڼهٔ، ګونګيان او ړاندهٔ دی، نو دوی په هيڅ نهٔ پوهيږی۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ

اے | دَ ايمان خاوندانو! | خورئ | دَ پاکيزه څيزونو نه | چه درکړی دی مونږ تاسو ته

اے ايماندارو! زمونږ درکړے پاکيزه (حلال) روزی خورئ۔

وَاشْكُرُوا لِلّٰهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿١٧٢﴾ إِنَّمَا
او شکر کوئ | دَ الله | که چرے تاسو | هم دَ هغهٔ | عبادت کوئ۔ | بیشکه
او دَ الله شکر کوئ که تاسو په رښتیا یوازے دَ هغهٔ عبادت کوئ۔ بیشکه الله
حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا
هغهٔ خو حرامه کړے دَه په تاسو | مرداره | او وینه | او غوښه | دَ خنزیر | او هغه خاروی
په تاسو باندِ مرداره ، وینه ، دَ خنزیر غوښه او داسے حلال چه دَ الله نه بغیر
أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللّٰهِ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ
په کوم چه دُ ذبح شی (نوم) | دَ غیر الله | پس څوک چه | مجبوره شی | نهٔ سرکشی کوونکے وی | او نهٔ دَ حد نه تیریدونکے
دَ بل چا نوم پرے اخستے شوے وی حرام کړی دی پس څوک چه نافرمانی کوونکے او دَ حد نه تیریدونکے نهٔ وی
فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٧٣﴾ إِنَّ
پس نشته گناه | په هغهٔ | بیشکه الله | بخښونکے | مهربان دے | یقینًا
(په حالت دَ مجبورئ کښے که چرے دَ دِے استعمال وُکړی) نو په هغهٔ څهٔ گناه نشته۔ بیشکه الله بخښونکے مهربان دے۔ کوم خلق چه
الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَشْتَرُونَ
کوم خلق چه | پټوی | هغه څهٔ چه | نازل کړی دی | الله | له کتاب نه | او اخلی
هغه حکمونه کوم چه الله تعالیٰ په خپل کتاب کښے نازل کړی دی، پټوی او دَ دِے په بدله کښے
بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُولٰٓئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ
په بدله دَ هغے کښے | قیمت | لږ | دغه خلق | نهٔ خوری | په خیټو خپلو کښے
دَ دُنیا معمولی فائدے حاصلوی ، هغوی په حقیقت کښے نور څهٔ نهٔ کوی خو خپلے گیډے
إِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ ۚ
مگر اور | او نهٔ به کوی خبرے دَ هغوی سره | الله | په ورځ | دَ قیامت | او نهٔ به پاک کړی هغوی
په اور ډکوی او الله تعالیٰ به ورسره دَ قیامت په ورځ (دَ قهرنه) خبرے نهٔ کوی او نهٔ به ئے (دَ گناه نه) پاک
وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ
او دَ هغوی دَ پاره | عذاب دے | دردناک | هم دا هغه (خلق) دی | کوم چه | واخستله | گمراهی
کړی او دَ هغوی دَ پاره به دردناک عذاب وی۔ دا هغه خلق دی چا چه دَ هدایت په بدل کښے گمراهی
بِالْهُدٰى وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾
په بدله دَ هدایت کښے | او عذاب | په بدله دَ بخښنه کښے | پس څومره | لوئے صبر دے هغوی ته | په دوزخ
او دَ بخښنے په بدل کښے عذاب په بیعه اخستے دے نو څهٔ عجیبه حوصله لری چه دَ دوزخ په اور باندِ راضی دی
ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ
دا | دِے دَ پاره چه الله | نازل کړو | کتاب | په رښتیا سره | او بیشکه | کومو (خلقو)
دا حکم چه الله تعالیٰ خپل کتاب په حقه رالیږلے دے او کومو خلقو چه دَ (الله دَ) کتاب

اخْتَلَفُوْا فِي الْكِتٰبِ لَفِيْ شِقَاقٍۢ بَعِيْدٍ ﴿١٧٦﴾ لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا

اختلاف وکړو | په کتاب کښې | خامخا پر یوتل په ضد کښې | ډیر لرے | نهٔ دهٔ | نیکی | دا چه تاسو وګرځوئ

مسئلو کښې اختلاف وکړو هغوی په جګړو کښې تر ډیر لرے لاړل - نیکی دِ ے نه نهٔ شی و ډیلے چه تاسو

وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ

خپل مخونه | مشرق او مغرب طرف ته | لیکن نیکی (خو دادهٔ) | چه ایمان راوړی

خپل مخونه مشرق ته وګرځول کهٔ مغرب ته بلکه نیکی دِ ے ته وډیلے شی چه بنده په

بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ

په الله | او په ورځ | دَ قیامت | او په فرښتو | او په کتابونو | او په پیغمبرانو

الله تعالیٰ ، په ورځ دآخرت ، په فرښتو په کتابونو او په پیغمبرانو باندې پوخ یقین وساتی

وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ

او ورکوی | مال | دَ هغهٔ په محبت کښې | خپلو خپلوانو ته | او یتیمانو ته | او مسکینانو ته

او چه خپل مال دَ الله تعالیٰ په محبت کښې په خپلو نزدے رشته دارانو، یتیمانو، مسکینانو

وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِى الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ

او مسافرو ته | او سوال کوونکو ته | او په (خلاصولو دَ) ستونو کښې | او ودروی | مونځ

مسافرو، سوال کوونکو او دَ غلامانو په ازادولو کښې خرڅ کړو ، او چه دَ مونځ پابندی کوی

وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ

او ورکوی | زکوٰة | او چه پوره کوونکی ی | دَ خپلو وعدو | هر کله چه هغوی څهٔ وعدهٔ وکړی | او صبر کوونکی دی

او زکوٰة ورکوی او کوم (خلق) چه وعدهٔ وکړی نو هغه په ښهٔ شان سره پوره کوی او په تنګ دستئ او

فِى الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ

په تنګ دستئ | او په سختئ کښې | او په وخت دَ جنګ کښې | هم داخلق دی | رښتونی

تکلیف کښې او (دَ حق او باطل) په جنګ کښې صابره وُسیږی هم داخلق رښتونی (نیکان) دی -

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿١٧٧﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ

او هم دا دی | پرهیزګاران - | اے | مؤمنانو ! | فرض شوے دے | په تاسو باندِ

او هم داخلق پرهیزګاره دی - اے مؤمنانو ! تاسو دَ پاره دَ وژلی شوکسانو

الْقِصَاصُ فِى الْقَتْلٰى ؕ اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ

قصاص | په وژلو شوو کښې | ازاد | په بدله دَ ازاد کښې | او غلام | په بدله دَ غلام کښې

په حقله دَ قصاص حکم لیکلے شوے دے دا سے چه دَ ازاد په بدل کښې ازاد، دَ غلام په بدل کښې (یو قاتل) غلام

وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ؕ فَمَنْ عُفِىَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَىْءٌ

او ښځه | په بدله دَ ښځه کښې | پس چا ته چه معافی وکړے شی | دَ هغهٔ دَ ورور دَ طرف نه | دَ څهٔ څیز

او دَ ښځے په بدل کښې (یوه قاتله) ښځه ، بیا کهٔ چرے قاتل ته دَ دهٔ (مقتول) ورور (دَ وارثانو) دَ طرف نه څهٔ قدرے معافی

فَاتِّبَاعٌۢ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ ۗ ذَٰلِكَ تَخْفِيفٌ

مِّن رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ۗ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ

عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٨﴾ وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٧٩﴾ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

إِن تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ ۖ

حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿١٨٠﴾ فَمَن بَدَّلَهُ بَعْدَمَا سَمِعَهُ فَإِنَّمَا إِثْمُهُ

عَلَى الَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٨١﴾ فَمَنْ خَافَ

مِن مُّوصٍ جَنَفًا أَوْ إِثْمًا فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٨٢﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ

الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٨٣﴾

اَیَّامًا مَّعۡدُوۡدٰتٍ ؕ فَمَنۡ کَانَ مِنۡکُمۡ مَّرِیۡضًا اَوۡ عَلٰی سَفَرٍ

څو ورځې | دَ شمیر | پس څوک چه وی | په تاسو کښې | بیمار | یا | په سفر باندې

روژې دَ شمیر یو څو ورځې دی ، نو که په تاسو کښې څوک بیمار وی یا په سفر (روان) وی

فَعِدَّۃٌ مِّنۡ اَیَّامٍ اُخَرَ ؕ وَعَلَی الَّذِیۡنَ یُطِیۡقُوۡنَہٗ فِدۡیَۃٌ

نو شمیر (پوره کړی) | دَ ورځو | نورو نه | او په هغه خلقو | چه په تکلیف سره روژه نیسی | فدیه ده

نو هغه دِ په نورو ورځو کښې دَ غه شمیر پوره کړی او څوک چه ډیر په تکلیف سره روژه نیسی (لکه بوډا ګان) نو هغه دِ فدیه

طَعَامُ مِسۡکِیۡنٍ ؕ فَمَنۡ تَطَوَّعَ خَیۡرًا فَہُوَ خَیۡرٌ لَّہٗ ؕ

خوراک | دَ یو مسکین | بیا څوک چه | په خوشحالئ کوی | نیکی | نو هغه غوره ده | دَ هغه دپاره

ورکوی (دَ یوې روژې په بدل کښې) دَ یو مسکین (په مړه ګیډه) خوراک، او څوک چه په خپله خوښه زیات خیرات ورکړی نو هغه دَ هغه

وَاَنۡ تَصُوۡمُوۡا خَیۡرٌ لَّکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۸۴﴾ شَہۡرُ رَمَضَانَ

او چه | روژه ونسائی | غوره ده | تاسو دپاره | که چرې تاسو پوهیږئ ؟ | میاشت دَ رمضان

دپاره غوره ده او روژه ساتل تاسو دَ پاره ډیر غوره دی په شرط دَ دې که تاسو پوهیږئ ـ رمضان هغه (مبارکه) میاشت ده

الَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ فِیۡہِ الۡقُرۡاٰنُ ہُدًی لِّلنَّاسِ وَبَیِّنٰتٍ مِّنَ الۡہُدٰی

هغه ده چه نازل کړې شو په هغې کښې | قرآن | چه هدایت دې | دَ خلقو دَپاره | او ښکاره روښانه | له هدایت نه

چه په کښې قرآن نازل کړې شو کوم چه دَ خلقو دَ پاره رهنمائی، هدایت او په حق او باطل کښې دَ فرق کولو

وَالۡفُرۡقَانِ ۚ فَمَنۡ شَہِدَ مِنۡکُمُ الشَّہۡرَ فَلۡیَصُمۡہُ ؕ وَمَنۡ کَانَ

او فرق کونکې دې | پس هر هغه کس چه | بیا مومی | په تاسو کښې | دا میاشت | نو دَ دِې روژې دِ ساتی | او څوک چه وی

ذریعه ده ـ پس څوک چه دا مبارکه میاشت بیا مومی هغه له پکار دی چه هغه دَ دِې روژې ونیسی ـ او څوک چه

مَرِیۡضًا اَوۡ عَلٰی سَفَرٍ فَعِدَّۃٌ مِّنۡ اَیَّامٍ اُخَرَ ؕ یُرِیۡدُ اللّٰہُ

بیمار | یا په سفر کښې | نو شمیر (دِ پوره کړی) | له نورو ورځو نه | غواړی | الله

ناروغه وی یا په سفر کښې وی نو هغه دِ په نورو ورځو کښې (دَ دې روژو) شمیر پوره کړی ـ الله تاسو سره نرمی کول

بِکُمُ الۡیُسۡرَ وَلَا یُرِیۡدُ بِکُمُ الۡعُسۡرَ ۫ وَلِتُکۡمِلُوا الۡعِدَّۃَ

په تاسو | آسانی | او نه غواړی | په تاسو | تنګی | او دِ دپاره چه پوره کړئ | شمیر

غواړی او سختی کول نه غواړی (او دا چل د دې حکمه بنائی) چه تاسو دَ روژو شمیر پوره کړئ

وَلِتُکَبِّرُوا اللّٰہَ عَلٰی مَا ہَدٰىکُمۡ وَلَعَلَّکُمۡ تَشۡکُرُوۡنَ ﴿۱۸۵﴾ وَاِذَا

او په لویئ یاد کړئ | الله | په دې چه هدایت وکړو هغه تاسو ته | او چه تاسو | شکر وکړئ | او هر کله چه

او په دې هدایت باندې دَ الله لوئی بیانوئ او چه د هغه شکر ادا کوئ ـ او (اې پیغمبره!) هر کله

سَاَلَکَ عِبَادِیۡ عَنِّیۡ فَاِنِّیۡ قَرِیۡبٌ ؕ اُجِیۡبُ دَعۡوَۃَ الدَّاعِ

سوال وکړی تا نه | بندګان زما | زما په حقله | پس بیشکه زه | نږدې یم | قبلوم | دُعا | دَ دُعا کوونکی

چه زما بندګان زما په حقله تا نه تپوس وکړی (نو ورته ووایه چه) زه (هغوی ته) ډیر نږدې یم او غوښتنه کوونکې د خپلې غوښتنې ځواب ورکوم [illegible]

إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ١٨٦

کوم دخت چه هغه ما ته آواز کوي | نو پکار دي چه حکم ومني زما | او ایمان راوړي په ما | چه هغوی | لار بیا مومي۔
کوم دخت چه هغه ما ته اواز کوي نو پکار دي چه هغوئ زما حکمونه قبول کړي او ما باندې یقین وکړي چه هغوی سمه لار بیا مومي.
زه هغه قبلوم نو پکار دي چه هغوئ خواست وکړي

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ

حلال کړے شو | تاسو د پاره | په شپه | د روژه کښې | کور والے | د خپلو ښځو سره | هغوی پرده ده
تاسو ته په روژه کښې د شپې خپلو ښځو ته نزدیکت مباح کړے شوے دے۔ هغوی ستاسو پرده دی

لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ

تاسو د پاره | او تاسو | پرده یئ | د هغوئ د پاره | الله ته معلومه ده | چه تاسو | کولو خیانت
او تاسو د هغوئ پرده یئ۔ الله ته معلومه ده چه تاسو د خپلو ځانونو سره (پټ پټ)

أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ

د خپلو ځانونو سره | پس توبه قبوله کړه | ستاسو | او معاف ئے کړئ | تاسو | نو اوس | کور والے کوئ د هغوی سره
خیانت کولو۔ نو هغه ستاسو توبه قبوله کړه او تاسو ئے معاف کړئ نو اوس ورسره (په روژه کښې د شپې) کور والے کوے

وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ

او غواړئ | څه چه لیکلی دی | الله | تاسو د پاره | او خورئ | او څښئ | تر دے چه
شئ او کوم (اولاد) چه الله تاسو د پاره مقرر کړے دے د هغے خواهشمند وسیږئ (د دے نه علاوه) د شپې خوراک او څښاک هم

يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ

صفا ظاهر شی | تاسو د پاره | تار | سپین | له تار تور نه | د صبا
کوئ، تر دے چه د صبا سپین تار د رته د شپې د تور تار نه راښکاره شي او صبا راوخیژی۔

ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ

بیا | پوره کړئ | روژه | تر شپې پورے | او مه ورنزدے کیږئ ښځو ته | هر کله چه تاسو معتکف یئ
نو بیا تر ماښامه روژه کوئ او (بله دا چه) ښځو ته مه ورنزدے کیږئ کله چه تاسو په جماتونو کښې

فِي الْمَسَاجِدِ ۗ تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ

په جماتونو کښې | دا | حدونه دی د الله | پس مه ورنزدے کیږئ هغے ته | دغه شان | بیانوی
معتکف یئ۔ دا د الله مقرر کړی حدونه دی ورنزدے ته نزدے هم مه ورځئ، الله دغه شان په وضاحت

اللَّهُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ١٨٧ وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم

الله | خپل ایتونه | خلقو د پاره | چه هغوی | پرهیزګاره شي | او مه خورئ | خپل مالونه | په خپل مینځ کښې
سره خپل ایتونه خلقو د پاره بیانوی چه هغوئ د غلطو کارونو نه بچ شي۔ او په خپل مینځ کښې په ناحقه د یو بل

بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا

په ناحقه | او مه رسوئ | هغه (مالونه) | حاکمانو ته | د پاره د دے چه وخورئ | څه حصه
مال مه خورئ او مه مال حاکمانو ته په دے نیت رسوئ چه د خلقو د مال نه څه حصه په ناجائز

٢٣ ع ٧ مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٨﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ؕ

دَ خلقو دَ مالونو | په ظلم سره | حال دا دے چه تاسو پوهه یئ | پوښتنه کوی دوی له تانه | دَ میاشتو پاره کښے
طریقو سره وُخورئ حال دا دے چه تاسو پوهیږئ ـ (اے نبیؐ!) خلق تانه دَ سپوږمئ (دَ نوئیدو دیدلو)

قُلْ هِیَ مَوَاقِیْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ؕ وَلَیْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا

وُوایه | دا | اندازے دی دَ وخت | دَ خلقو دَ پاره | او دَ حج دَ پاره | او نهٔ ده | نیکی | (دا) چه راشئ تاسو
په حقله تپوس کوی، ورته وُوایه چه دا دَ خلقو دَ پاره دَ تاریخ پیژندلو او دَ حج دَ وخت معلوملو نخښه دی او دا خبره نیکی نهٔ ده چه تاسو

الْبُیُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰی ۚ وَاْتُوا الْبُیُوْتَ

کورونو ته | دَ هغے دَ شا کانو دَ طرف نه | لیکن نیکی (خودا) ده | څوک چه پرهیزګاری وُکړی | او راځئ تاسو کورونو ته
خپلو کورونو ته دَ شا دَ طرف نه ورننوځئ، بلکه نیکی دا ده چه بنده ځان دَ حرامو نه بچ کړی نو تاسو کورونو ته نیغ په

مِنْ اَبْوَابِهَا ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿١٨٩﴾ وَقَاتِلُوْا

دَ هغے دَ دروازو نه | او ویریږئ | دَ الله نه | دَ پاره دَ دے چه تاسو | خلاصے بیا مومئ | او جنګ وُکړئ
دروازو ورننوځئ او دَ خدائے نه ویره کوئ چه کامیاب شئ. او دَ الله په لاره

فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ الَّذِیْنَ یُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ

دَ الله په لاره کښے | دَ هغو خلقو سره | چه جنګ کوی تاسو سره | او زیاتے مهٔ کوئ | بیشکه الله | نه خوښوی
کښے هغو خلقو سره جنګ کوئ څوک چه تاسو سره جنګ کوی، خو زیاتے مهٔ کوئ، زیاتی کوونکی خلق دَ الله

الْمُعْتَدِیْنَ ﴿١٩٠﴾ وَاقْتُلُوْهُمْ حَیْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَیْثُ

زیاتے کوونکی | او قتل کړئ هغوئ | کوم ځائے چه | بیا مومئ هغوی | او وُباسئ هغوی | کوم ځائے نه
خوښ نهٔ وی. او دُښمنان کوم ځائے چه بیا مومئ وژنئ ئے. او بهر ئے وُباسئ دَ کوم ځائے نه

اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ

چه ویستلی ئې هغوی تاسو | او فتنه | زیاته سخت ده دَ قتل نه | او جنګ مهٔ کوئ دَ هغوی سره
نه چه ئے تاسو ویستلی یئ. او دَ کفر فتنه دَ قتل نه زیاته سخته ده او دَ مسجد حرام (کعبے) په خوا کښے دَ هغوی سره

عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰی یُقٰتِلُوْكُمْ فِیْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ

نزدے مسجد حرام نه | تر دے چه | جنګ وکړی هغوی تاسو سره | په هغے کښے | پس که چرے | جنګ کوی هغوی تاسو سره
تر هغے جنګ مهٔ کوی، تر څو چه هغوی در سره جنګ نهٔ کوی (او که چرے هغوئ (په حرم کښے) هم تاسو

فَاقْتُلُوْهُمْ ؕ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِیْنَ ﴿١٩١﴾ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

پس وُوژنئ هغوی | هم دغه شان | سزا ده | دَ کافرانو | پس که چرے هغوی منع شول | نو بیشکه | الله
سره جنګیږی نو تاسو ئے هم وژنئ، دَ منکرانو هم دغه سزا ده ـ بیا که هغوی (دَ جنګ نه) لاس په سر شی نو الله

غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿١٩٢﴾ وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰی لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّیَكُوْنَ

بخښونکے | مهربان دے | او جنګ کوئ هغوی سره | تر دے چه | باقی نهٔ شی | فتنه | او شی (قائم)
بخښونکے مهربان دے. او تاسو ورسره تر هغے پورے جنګیږئ چه فتنه باقی نهٔ شی او دَ الله تعالیٰ دین

الدِّيْنُ لِلّٰهِ ؕ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ۝

دین | دَ الله | پس که چرې | هغوی منع شول | نو نشته سختي | مګر | په ظالمانو

قائم شي پس که چرې هغوی منع شي نو دَ ظالمانو نه سوا په بل چا سختي مهٔ کوئ.

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ؕ

میاشت | حرامه | په بدله دَ میاشتې | حرامې کښې دَه | او په ټولو حرمتونو کښې | قصاص دے

دَ حرامې (یا حرمت) میاشتې بدل حرامه میاشت دَه او دَ ټولو محترمو څیزونو لحاظ به برابر سلتے شي.

فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى

بیا څوک چه | زیاتے وُکړی | په تاسو | تاسو هم زیاتے وُکړئ | په هغه | په شان | دَ زیاتي کولو دَ هغهٔ

نو څوک چه په تاسو باندِ زیاتے وُکړی، تاسو هم دَ هغهٔ دَ زیاتي جواب ورکړئ څنګه چه هغهٔ په تاسو زیاتے

عَلَيْكُمْ ۠ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ۝۱۹۴

په تاسو باندِ | او ووېرېږئ | دَ الله نه | او پوهه شئ | چه الله | دَ پرهېزګارانو سره دے

وُکړو. او (په هرحال کښې) دَ الله نه وېرېږئ او یقین ساتئ چه الله دَ پرهېزګارانو سره دے.

وَاَنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَيْدِيْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۛ

او خرچ کوئ | دَ الله په لاره کښې | او مهٔ غورزوئ (ځانونه) | دَ خپله لاسه | په هلاکت کښې

او دَ الله په لاره کښې (مال) خرچ کړئ او په خپلو لاسونو ځان هلاکت ته مهٔ غورزوئ.

مع ۱ وَاَحْسِنُوْا ۛ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝۱۹۵ وَاَتِمُّوا الْحَجَّ

او نیکي کوئ | بیشکه | الله | دوست لري | نیکي کوونکي | او پوره کړئ | حج

او نیکي کوئ، یقینًا الله تعالیٰ هغه خلق خوښوی کوم چه نیکوکار دي

وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ

او حج او عمره دَ الله دَ رضا

او عمره | الله دَ پاره | پس که چرې | رامنع کړے شوئ تاسو | نو لازم دے هغه څیز چه اسان وی | له قربانئ نه

دَ پاره پوره کوئ. او که چرے (په لاره کښې) حصار کړے شئ نو هرڅهٔ قرباني چه موندے شئ هغه وکړئ

وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ؕ

او مهٔ خرایئ | خپل سرونه | تردے چه | ورسیږی | قرباني | خپل ځائے ته

او خپل سرونه تر هغې مهٔ خرایئ ترڅو چه قرباني خپل ځائے ته ونهٔ رسي.

فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖٓ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْيَةٌ

بیا څوک چه وی | له تاسو نه | بیمار | یا هغهٔ ته څهٔ تکلیف وی | دَ سر | نو فدیه

پس تاسو کښې که چرے څوک بیمار وی یا دَ هغهٔ په سر کښې څهٔ تکلیف وی (او سر خرئیل غواړی) نو دَ

مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ ۫ فَمَنْ تَمَتَّعَ

دَ روژو نه | یا | صدقے نه | یا قربانئ نه | بیا چه هرکله تاسو په امن شئ | پس څوک چه فائده واخلی

فدیې په طور دِ روژے ونیسی یا دِ خیرات ورکړی یا قرباني دِ وُکړی بیا چه کله به امن شئ نو څوک چه عمره دَ

بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ

عمرے نه | حج پورے | پس لازم دے هغه څیز چه اسان وی | له قربانئ نه | بیا څوک چه | بیا نهٔ مومی (قربانی)

حج سره یو ځائے کړی (او فائده حاصلول غواړی)، نو دَ خپل وس مطابق قربانی دِ وُکړی او چا نه چه (دَ قربانئ څناور)

فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِى الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ۭ تِلْكَ

پس روژے دِ وُنیسی | درے | دَ حج په ورځو کښے | او اوهٔ ورځے | کوم وخت چه راوُګرځئ تاسو | دا

ملاؤ نهٔ شی نو هغه دِ دَ حج په ورځو کښے درے روژے وُنیسی او اوهٔ روژے دِ په واپسئ وُنیسی دا پوره

عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ۭ ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِى

لس | پوره شوے | دا (حکم) | دَ هغه چا دَ پاره دے | چه نهٔ وی | کورنئ دَ هغهٔ | خواؤشا

لس (روژے) شوے ، دا حکم هغه چا دَ پاره دے دَ کوم کورنئ چه دَ مسجد حرام په خواؤشا

الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ

دَ مسجد حرام | او وُویریږئ دَ الله نه | او پوهه شئ | چه بیشکه الله | سخت

کښے نهٔ وُسیږی. او دَ الله نه وویریږئ او ښهٔ پوهه شئ چه الله تعالیٰ په عذاب ورکولو کښے

الْعِقَابِ ١٩٦ اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ

عذاب ورکوونکے دے | دَ حج | یو څو میاشتے دی | معلومے | پس چا چه | لازم کړو په ځان باندِ | په دِ میاشتو کښے

ډیر سخت دے. دَ حج میاشتے (ټولو ته) معلومے دی. پس څوک چه په دے میاشتو کښے دَ

الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ ۙ وَلَا جِدَالَ فِى الْحَجِّ ۭ وَمَا تَفْعَلُوْا

حج | نو نهٔ دے جائز کوروالے ښځو سره | او نهٔ ګناه کول | او نهٔ جنګ جګړے | (د) حج (په ورځو) کښے | او څهٔ چه کوئ تاسو

حج اراده وُکړی نو (هغه دِ خبر شی چه) دَ حج په ورځو کښے کوروالے، ګناهونه او جګړے (خاص طور سره) منع دی او هر څه نیک کار

مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۡ

له نیکئ نه | نو پوهه دے په هغے باندِ الله | او توښه دَ ځان سره واخلئ | پس بیشکه غوره | فائده دَ توښے | پرهیزګاری ده.

چه تاسو کوئ هغه الله ته معلوم دے ، او ځان سره توښه اخلئ بیشکه چه دَ ټولو نه ښهٔ توښه تقویٰ ده.

وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِى الْاَلْبَابِ ١٩٧ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا

او وویریږئ له ما نه | اے دَ عقل خاوندانو! | نشته دے | په تاسو | څهٔ ګناه | چه وُلټوئ

او اے عقلمندو! صرف هم ما نه وویریږئ، په دے خبره کښے په تاسو څهٔ ګناه نشته که (دَ حج په ورځو کښے) دَ الله فضل

فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ۭ فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

فضل | دَ خپل رب | پس هر کله چه وُخوځئ تاسو | دَ عرفات نه | نو یاد کړئ | الله

(یعنی مال او دولت په ذریعه دَ تجارت) غواړئ نو هر کله چه دَ عرفات نه راوګرځئ نو دَ مشعر حرام (مزدلفے) سره

عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۠ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ

په نزد | دَ مشعر حرام | او یاد کړئ هغه | لکه چه هغهٔ هدایت در کړو تاسو ته | او اګرچه وئ تاسو

نزدے دَ الله ذکر کوئ. او په هغه شان دَ الله ذکر کوئ څنګه نے چه درته چل ښودے دے او دَ دے نه وړاندِ



وقف النبی صلی الله علیه وسلم

مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿١٩٨﴾ ثُمَّ اَفِيْضُوْا

له دے نه دړاندې | له هېروونکو نه | بيا | واپس شئ

تاسو خلق يقيناً بے خبره وئ - بيا كوم ځائے (ميدان دَ عرفات) نه چه

مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ

كوم ځائے نه چه | واپس شول | خلق | او .بخښنه غواړئ | دَ الله نه | .بيشكه

خلق راګرځي تاسو هم (اے قريشو!) هم دَ هغه ځائے نه واپس شئ او دَ الله نه .بخښنه غواړئ .بيشكه

اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٩٩﴾ فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ

الله | .بخښونكے | مهربان دے | پس هر كله چه | تاسو ادا كړئ | اركان دَ حج خپل

الله .بخښونكے مهربان دے. بيا چه دَ حج كارونه پوره كړئ

فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ۭ

نو ياد كړئ | الله | لكه چه تاسو به يادَول | خپل پلار نيكهٔ | بلكه له دې نه ډير زيات ياد

نو څنګه چه خپل پلار نيكهٔ يادوئ نو دغه رنګ الله هم (په منئ كښې) يادوئ بلكه دا ذكر دَ دې نه هم زيات (جذبے سره)

فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا

بيا دَ خلقو نه | هغه څوك دي چه وائي | اے زمونږه ربه! | راكړه مونږ ته | په دُنيا كښې

دِ وى. بيا ځنے خلق وائي چه اے زمونږه ربه! مونږ له هم په دُنيا كښې راكړه (څه چه راكوے)

وَمَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿٢٠٠﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ

او نشته دے هغهٔ دَ پاره | په آخرت كښې | څهٔ برخه | او په دوى كښې (ځنې) هغهٔ

داسے بنده دَ پاره په آخرت كښې هيڅ برخه نشته او ځنې هغه دي چه

يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِى الْاٰخِرَةِ

چه وائي | اے زمونږه ربه! | راكړه مونږ ته | په دنيا كښې | ښيګړه | او په آخرت كښې

وائي اے زمونږه ربه! مونږ له په دُنيا كښې هم ښهٔ ژوند راكړه او په آخرت كښې هم ښهٔ

حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿٢٠١﴾ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ

(هم) ښيګړه | او بچ كړه مونږه | دَ دوزخ دَ عذاب نه | هم دا دي | كوم دَ پاره چه | برخه ده

اجر راكړه ، او مونږ دَ دوزخ عذاب نه وُساته. دغه خلق به دَ خپلو عملونو په وجه (په دواړه

مِّمَّا كَسَبُوْا ۭ وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿٢٠٢﴾ وَاذْكُرُوا

دَ هغې نه | كومه چه وُګټله دوى | او الله | زر حساب اخستونكے دے | او ذكر كوئ

جهانو كښې) برخه واخلي. او الله ډير زر حساب اخستونكے دے

اللّٰهَ فِىْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ۭ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِىْ يَوْمَيْنِ

دَ الله | په څو ورځو | شمېرلے شوُو كښې | پس څوك چه تلوار وُكړي | په دوؤ ورځو كښې

او دَ شمير په دغو ورځو كښې الله .يادوئ. نو څوك چه په دوه ورځو كښې وراتلل واپس شي

النصف

فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ

پس نشته دے | گناه | په هغهٔ | او څوک چه | وروستو پاتے شی | پس نشته دے گناه | په هغهٔ

نو په هغهٔ هیڅ گناه نشته او څوک چه (یوه ورځ) زیاته ډُلگوی په هغهٔ هم گناه نشته

لِمَنِ اتَّقٰى ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ

کوم چه ویریږی (دَ الله نه) | او وُویریږئ | دَ الله نه | او پوهه شئ | چه تاسو | دَ هغهٔ طرف ته

داهغه سړی دَ پاره دے چه دَ الله دَ نافرمانئ نه ویریږی او هم دَ الله نه وُویریږئ او یقین ساتئ چه تاسو له هم دَ هغهٔ

تُحْشَرُوْنَ ﴿٢٠٣﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ

به جمع کولے شئ۔ | او ځنے له خلقو نه | هغه څوک دی | چه خوشحالوی تا | خبره دَ هغهٔ

سره جمع کیدل دی۔ او ځنے خلق داسے دی چه دَ دُنیا په حقله دَ هغهٔ خبرے په تاسو ښے او

فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِىْ قَلْبِهٖ ۙ

دَ دُنیا په ژوند کښے | او گواه کوی | الله | په هغه څهٔ چه | دَ هغهٔ په زړهٔ کښے دی

خوږے لگی او هغه په خپله نیک نیتئ باندِ بیا بیا الله گواه نیسی، خو

وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿٢٠٤﴾ وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ

حال دا دے چه هغه سخت جگړه مار دے | او هر کله چه واپس شی | نومنډے وهی | په زمکه کښے

په حقیقت کښے هغه په جگړه کښے ډیر سخت دے او هر کله چه مرتبه بیا مومی نو په وطن کښے دَ ډے کوشش کوی

لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ؕ وَاللّٰهُ

چه تباهی راولی | په دے کښے | او تباه کړی | فصل | او جاندار | او الله

چه فساد خوره کړی ، او فصلونه کوبنمال کړی او دَ بنیاد مونسل هلاک کړی او الله

لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿٢٠٥﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ

نهٔ خوښوی | فساد | او هر کله چه ووئیلے شی | هغهٔ ته | چه وُویریږه | دَ الله نه | نو تیاروی هغهٔ

فساد (خورَوونکی) هیچرے نه خوښوی او هر کله چه ورته وُوئیلے شی چه دَ الله نه وُویریږه نو په غرور کښے

الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ؕ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿٢٠٦﴾

غرور | په گناه باندِ | پس هغهٔ دَ پاره کافی دے | دوزخ | او خامخا هغه بد | ځائے دے۔

راشی او نوره گناه کوی نو داسے کس له دوزخ بس دے۔ او هغه ډیر خراب ځائے دے۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ؕ

او له خلقو نه ځنے | هغه څوک دی | چه خرڅوی | خپل ځانونه | دَ پاره دَ حاصلولو دَ رضامندئ | دَ الله

او ځنے هغه خلق هم دی چه دَ الله دَ رضا دَ حاصلولو دَ پاره خپل سرونه ورکوی، او

وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠٧﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى السِّلْمِ

او الله | ډیر مهربان دے | په بندگانو خپلو | اے ایمان والوٴ! | داخل شئ | په اسلام کښے

الله په خپلو (نیکو) بندگانو ډیر مهربان دے۔ اے مؤمنانو! په اسلام کښے پوره پوره

كَآفَّةً ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۭ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٢٠٨﴾

تول پوره | او پيروي مهٔ کوی | دَ قدمونو | دَ شيطان | بيشکه هغه ستاسو | ښکاره دُښمن دے

درننوځئ۔ او دَ شيطان په جوړه کړے لار مهٔ ځئ، هغه يقيناً ستاسو ښکاره دُښمن دے

فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا

پس که چرے وُښوېدلئ | پس له هغے نه | چه راغلل تاسو ته | دلائل ښکاره | پس پوهه شئ

نو که چرے دَ دے ښکاره دليلونو دَ راتلو نه پس هم تاسو وُښوېدئ نو ياد لرئ چه الله

اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٠٩﴾ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ

چه الله | غالب | دانا دے | ايا هغوی انتظار کوی | صرف | دَ دے | چه راشی هغوی ته

په هرڅه باندِ غالب او ډېر دانا دے۔ (که دوئ او س هم نهٔ منی) نو ايا دوی په دِے انتظار کښے

اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ

الله | په ښېړونو | دَ وريځو کښے | او (راشی) فرښتے | او انجام ته ورسولے شی

ناست دی چه الله ورته په خپله دَ وريځے دَ ښېر لاندِ دَ فرښتو په مينځ کښے راشی او تول خبره

الْاَمْرُ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿٢١٠﴾ ع سَلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ع ٢٥

کار | او هم الله طرف ته | بيرته ګرځولے شی | (ټول) کارونه | پوښتنه وُکړه | دَ بنی اسرائيلو نه

خلاصه شی۔ او (آخر به) ټول معاملے هسے هم هغهٔ ته پيش کيږی۔ دَ بنی اسرائيلو نه تپوس وُکړه چه مونږ

كَمْ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ اٰيَةٍۭ بَيِّنَةٍ ۭ وَمَنْ يُّبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ

چه څومره ورکړے مونږ هغوی ته | نخښے | روښانه | او څوک چه | بدل کړی | نعمت | دَ الله

هغوی ته څومره څرګندے نخښے رالېږلی دی۔ او څوک چه دَ الله نعمت دَ ملاويدو

مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٢١١﴾ زُيِّنَ

پس له هغے نه | چه راغے دهٔ ته | پس بيشکه الله | سخت | عذاب ورکوونکے دے | ښائسته ګرځولے شوے

نه پس دا بدل کړی نو (ياد ساتئ) چه الله سخت عذاب ورکوونکے دے۔ او کافرانو

وقف لازم

لِلَّذِيْنَ كَفَرُوا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

کافرانو ته | ژوند | دَ دُنيا | او ټوقے کوی | هغو خلقو پورے | کوم چه ايمان راؤړ

دَ دُنيا ژوند ښائسته ښکاری او نن ورځ هغوئ مؤمنانو پورے ټوقے کوی۔

وَالَّذِيْنَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ

او هغه خلق چه | پرهيزګار دی | دَ پاسه دَ هغوی به وی | دَ قيامت په ورځ | او الله | روزی ورکوی

او دَ قيامت په ورځ به دغه پرهيزګاران دَ هغوی دَ پاسه وی، او (په دنيا کښے هم) الله چه

مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٢﴾ كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً

چا ته چه | غواړی | بے حسابه۔ | وُو | ټول خلق | په يو دين باندِ

غواړی نو بے حسابه روزی ورکوی (دَ مومن او کافر فرق نهٔ کوی) اول اول خلق په يو دين باندِ وُو (بيا هر کله چه

فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ وَاَنْزَلَ

پس راولیږل الله | پیغمبران | زیرے ورکوونکی | او ویروونکی | او نازل ئے کړو

اختلاف پیدا شو) نو الله تعالیٰ نبیان راولیږل چه (نیکانو ته) زیرے ورکوونکی او (بدانو) ویروونکی ؤو ۔ او د هغوی سره

مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا

د هغوی سره | کتاب | برحق | چه فیصله وکړی | په خلقو کښې | په دے خبره کښې

ئے برحق کتابونه نازل کړل ، چه د اختلافاتو په حقله د خلقو ترمینځه فیصلے

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۭ وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ

په کومه کښې چه په هغوی اختلاف کولو | او اختلاف ئے ونه کړو | په دے کښې | مګر هغه خلقو | چاته چه ورکړے شوے ؤو هغه (کتاب)

وکړی ۔ او دا اختلاف کوونکی صرف هم هغه خلق ؤو چاته چه (کتاب) ورکړے شوے ؤو

مِنْ بَعْدِ مَا جَاۗءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ۚ فَهَدَى

پس د هغے نه چه | راغلی ؤو هغوی ته | (دروښانه) دلیلونه | په خپل مینځ کښې د ضد په وجه | بیا هدایت وکړو

او د څرګندو دلیلونو راتلو نه پس (حکم) ئے شروع کړے ؤو چه ضد بازی ئے کوله ، نو چاچه ایمان راوړے

اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ

الله | هغو خلقو ته | چه ایمان دار دی | په کوم کښې چه هغوی اختلاف کولو | د هغے (حق خبرے) | په خپل حکم

ؤو هغوی ته الله تعالیٰ په خپل اذن سره په اختلافی خبرو کښې سمه لار وښودله ، او د هر چا

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ٢١٣ اَمْ حَسِبْتُمْ

او الله | هدایت کوی | هغه چاته چه وغواړی | د سمے لارے | ایا تاسو خیال کوئ

په حقله چه د خدائے رضا شی نو هغوی په سمه لار روان کړی ، ستاسو ګنی دا خیال دے

اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَاْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا

چه | داخل به شئ | جنت ته | او حال دا دے چه نۀ دے راغلے تاسو ته | حالت د هغه کسانو | چه تیر شوی دی

چه (هیڅ بے هیڅه) به جنت ته داخل شئ؟ او هغه شان سختے درباندے تیرے شوی نۀ دی لکه

مِنْ قَبْلِكُمْ ۭ مَسَّتْهُمُ الْبَاْسَاۗءُ وَالضَّرَّاۗءُ وَزُلْزِلُوْا حَتّٰى

له تاسو نه وړاندې | رسیدلے وه هغوی ته | تنګی | او سختی | او وجړولے شوی ؤو | تر دے چه

په پخوانو خلقو چه تیرے شوے وے په هغوی دومره سختی او داسے مصیبتونه راغلل او دومره وجړولے

يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ۭ

وئیل | رسول | او کومو خلقو چه ایمان راوړے وو | د هغه سره چه کله به وی | مدد | د الله

شول چه د (هغه وخت) پیغمبر او د هغۀ ایماندارو ملګرو چغے کړے چه د خدائے امداد به کله راځی؟ (هغوی ته

اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ ٢١٤ يَسْــَٔـلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ڛ

واورئ | بیشکه | امداد | د الله | نزدے دے | پوښتنه کوی دوی له تانه | چه څه خرڅ وکړی

تسلی ورکړے شوه چه) خبر شئ د خدائے امداد نزدے دے (اے پیغمبره!) تا نه خلق تپوس کوی چه څۀ خیرات کوی

قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ

ووایه | څه څیز چه خرچ کوئ | دَ مال نه (هغه) دَ مور پلار | او خپلو خپلوانو

ورته ووایه هر څه چه (دَ توفیق مطابق) په خیرات کښې ورکوئ نو مور پلار، خپلو خپلوانو

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۗ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ

او یتیمانو | او مسکینانو | او دَ مسافرو (حق) دے | او څۀ چه کوئ تاسو | له نیکئ نه

یتیمانو، مسکینانو او مسافرو ته ئے ورکوئ او تاسو چه دَ نیکئ په خاطر هر څۀ ورکړئ

فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢١٥﴾ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ

پس بیشکه | الله | په هغې | ښۀ پوهه دے | فرض کړے شوے دے | په تاسو باندې | جهاد | او هغه ګران دے تاسو ته

نو هغه الله ته معلوم وی - تاسو ته دَ جهاد حکم درکړے شوے دے او هغه ستاسو ناخوښه دے

وَعَسٰۤى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰۤى اَنْ تُحِبُّوْا

او ممکنه دَه | چه ناخوښه به ګڼړئ تاسو یو څیز | او هغه غوره وی | تاسو دَ پاره | او ممکنه دَه چه خوښوئ به تاسو

او کله به یو څیز ستاسو ناخوښه وی خو هغه به تاسو دَ پاره غوره وی او کله به یو څیز ستاسو خوښ

شَيْئًا وَّهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ۗ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٢١٦﴾ ع ٢٦ ٦ ١٠

یو څیز | او هغه به | بد وی | تاسو دَ پاره | او هم الله پوهیږی | او تاسو نۀ پوهیږئ -

وی خو هغه به تاسو دَ پاره بد وی - او دَ هرے خبرے حقیقی علم الله ته دے او تاسو ته هیڅ علم نشته -

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ۗ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ

تپوس کوی دوی له تانه | په میاشت عزتمنده کښې | دَ جنګ په حقله | ووایه | جنګ کول | په دے کښې

(اے رسوله!) تانه خلق تپوس کوی چه دَ حرمت په میاشتو کښې جنګ کول څنګه دی؟ ورته ووایه چه په دے میاشتو کښې جنګ

كَبِيْرٌ ۗ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۗ

لویه (ګناه) دَه | او منع کول | دَ الله دَ لارے نه | او دَ دے نه انکار کول | او مسجد حرام نه (منع کول)

کول ډیر غټ جرم دے خو دَ خدائے دَ لارے نه خلق منع کول او دَ خدائے نه انکار کول او دَ مسجد حرام (کعبے) لار بندول او دَ

وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ

او ویستل دَ دے اوسیدونکی | دَ دے نه | دَ دے نه هم زیاته (ګناه) دَه | دَ الله په نزد | او فتنه (پورته کول)

هغه ځائے خلق (دَ ملک نه) شړل دَ خدائے په نزد دَ جنګ نه هم ډیر لوئے جرم دے او فتنه دَ

اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ۗ وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ

دَ قتل نه هم لوئے جرم دے | او هغوی همیشه | به جنګ کوی تاسو سره | تر دے چه واړوی تاسو

قتل نه لوئے جرم دے او دوی خو به در سره برابر تر هغه وخته پورے جنګیږی چه کۀ وس ئے بر شی نو چه دَ

عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا ۗ وَمَنْ يَّرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ

ستاسو دَ دین نه | کۀ چرے دَ دوی وس وُشی | او څوک چه واپس وګرځی | له ستاسو نه | دَ خپل دین نه

(اسلام دَ) دین نه مو بیرته وګرځوی او یاد ساتئ چه په تاسو کښې څوک خپل دین نه وګرځی،

فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا
بیا مړ شي | او هغه کافر وي | پس هم دا هغه خلق دي (چه) ضائع شول | دَ هغوی عملونه | په دُنیا کښې
او بیا کافر مړ شي ، نو دَ هغوی عملونه په دُنیا او آخرت دواړو کښې عبث

وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢١٧﴾
او په آخرت کښې | او هم هغه دي | اُوسیدونکي دَ دوزخ | چه هم په دے کښې به همیشه وي.
لاړل - او هم دغه خلق دوزخیان دي ، او تل به په دوزخ کښې پراته وي .

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ
بیشکه کوم خلق چه | ایمان راوړه | او کوم چه | هجرت وُکړو | او جهاد ئے وُکړو | دَ الله په لاره کښې
بیشکه چا چه ایمان راوړے دے او چا چه دَ الله په لاره کښې کلے وطن پرېښودے او جهاد ئے کړے دے .

أُولَٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٢١٨﴾
هم هغه دي | اُمیدوار | دَ الله دَ رحمت | او الله | بخښونکے | مهربان دے.
هم هغوئ دَ الله دَ رحمت اُمیدوار دي او الله بخښونکے مهربان دے (په هغوی به رحمتونه وروي)

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ۖ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ
تپوس کوي دوئ له تانه | دَ شرابو | او جوارئ (په حقله) | وُوایه | په دے دواړو کښې | ګناه ده | لویه
(اے پیغمبره!) دوی تا نه دَ شرابو او دَ جوارئ په حقله تپوس کوي ورته وُوایه چه په دے دواړو کښې ډیرے خرابئ دي

وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِنْ نَفْعِهِمَا ۗ
او فائدے دي | خلقو دَ پاره | او ګناه دَ دے دواړو | ډیره لویه ده | دَ دے دَ فائدے نه
او خلقو دَ پاره فائدے هم دي ، خو دَ دے دواړو نقصانونه دَ فائدے نه ډیر زیات دي .

وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ ۖ قُلِ الْعَفْوَ ۗ كَذَٰلِكَ
او تپوس کوي دوی له تانه | چه څهٔ خرڅ کړي (دَ الله په لاره کښې) | وُوایه | کوم چه ورنه زیات وي | هم دغه شان
او خلق تانه تپوس کوي چه دَ الله په لاره کښې څهٔ خرڅ کړي، وُوایه چه (څومره ستاسو) دَ ضرورتونو نه زیات وي ،

يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢١٩﴾
بیانوي | الله | تاسو دَ پاره | آیتونه | دَ پاره دَ دے چه تاسو | فکر وُکړئ.
دغه شان الله تاسو ته صفا صفا حکمونه اَوروي ، چه تاسو دَ غور او فکر نه کار واخلئ

فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۗ وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَىٰ ۖ قُلْ
دَ دُنیا او دَ آخرت په باره کښې | او تپوس کوي دوئ له تانه | دَ یتیمانو په حقله | وُوایه
دَ دُنیا او دَ آخرت دواړو په معاملو کښې غور او فکر وُکړئ - او خلق تانه دَ یتیمانو په حقله تپوس کوي ، وُوایه

إِصْلَاحٌ لَهُمْ خَيْرٌ ۖ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ ۚ
دَ هغوی اصلاح کول | غوره دي | او که چرے | شریک کیږئ دَ هغوی سره | نو هغوی ستاسو ورونړه دي
چه دَ هغوی سره نیکي کول غوره دي او که تاسو دَ هغوی خرڅ شریک وساتئ نو (خیر دے) هغوی ستاسو ورونړه دي

الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ
وَاللّٰهُ يَعْلَمُ | اوالله پيژنی | تباه کار | دَ اصلاح کوونکی نه | او که چرے | الله غوښتلے
او الله ته معلوم دی چه څوک خرابی پيدا کوی او څوک اصلاح کوونکی دی او که چرے الله غوښتلے
لَاَعْنَتَكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٢٠﴾ وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ
نو په تکليف کښے به ئے اچولیٔ تاسو | بيشکه الله | غالب | دَ حکمت خاوند دے | او مهٔ | اخلیٔ په نکاح | مشرکانے ښځے
نو تاسو ته به ئے دا معامله سخته کړے وه بيشکه الله دَ اختيار او حکمت خاوند دے او مشرکو ښځو سره تر هغے نکاح مهٔ کوئ
حَتّٰى يُؤْمِنَّ ۭ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكَةٍ
ترڅو | چه ايمان راؤړی | او خامخا وينځه | مؤمنه | ډيره ښهٔ ده | دَ مُشرکے ښځے نه
ترڅو چه ايمان رانهٔ وړی او مؤمنه وينځه ښهٔ ده دَ مشرکے نه اگرکه هغه (دَ مال يا دَ جمال
وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ ۚ وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ۭ
اگرکه هغه خوښے وی ستاسو | او په نکاح مهٔ ورکوئ (ښځے) | مشرکانو سره تر | ترڅو چه هغوی ايمان راوړی
په وجه) ستاسو خوښه وی او مؤمنانے ښځے دَ مشرکانو سره په نکاح کښے مهٔ ورکوئ ترڅو چه هغوی ايمان رانهٔ وړی
وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ ۭ اُولٰۗىِٕكَ يَدْعُوْنَ
او خامخا مؤمن غلام | غوره دے | له مشرک نه | اگرچه | هغه تاسو ته ښهٔ ښکاری | دا خلق | بلنه ورکوی
او ياد ساتئ چه يو غلام مؤمن دَ آزاد مشرک نه ډير غوره دے اگرچه به څهٔ وجه ستاسو خوښ وی، دا (مشرکان) خو
اِلَى النَّارِ ښ وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ ۚ
دوزخ طرف ته | او الله | بلنه ورکوی | جنت | او بخښنے طرف ته | په خپل حکم سره
دوزخ طرف ته بلنه ورکوی۔ او الله په خپل حکم سره جنت او مغفرت طرف ته بلنه کوی،
وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٢١﴾ ع وَيَسْــَٔـلُوْنَكَ ع ٢٧ ٥ ١١
او بيانوی | آيتونه | دَ خلقو دَ پاره | چه هغوی | نصيحت حاصل کړی | او تپوس کوی دَ وله تا نه
او هغهٔ خلقو ته حکمونه ښکاره بنائی چه هغوی ترے نه سبق واخلی ۔ او (اے نبی!) خلق تا نه تپوس
عَنِ الْمَحِيْضِ ۭ قُلْ هُوَ اَذًى ۙ فَاعْتَزِلُوا النِّسَاۗءَ فِي الْمَحِيْضِ ۙ
دَ حيض په حقله | دُوايه | دا پليتی ده | پس جدا ئے ته شئ | له ښځونه | په حالت دَ حيض کښے
کوی چه دَ حيض په حقله څهٔ حکم دے؟ ورته ووايه چه دا پليتی ده، په دے ورځو کښے دَ ښځو نه بيل وسئ
وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ ۚ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ فَاْتُوْهُنَّ
او مهٔ نزدے کيږئ هغوی ته | ترڅو چه هغوی پاکے شی | بيا چه کله هغوی پاکے شی | پس نزدے کيږئ هغوی ته
او هغوی ته نزدے مهٔ ځئ ترڅو چه هغوی پاکے شی نو هر کله چه ښے پاکے شی نو بيا ورته هغه شان
مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ
دَ کوم ځائے نه چه | حکم درکړے دے تاسو ته الله | بيشکه | الله | خوښوی
نزديکت کوئ لکه څنګه چه الله تاسو ته حکم درکړے دے ۔ بيشکه الله هغه خلق خوښوی

التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴿۲۲۲﴾ نِسَآؤُكُمْ
توبه کوونکی | او خوښوی | ځان پاک لرونکی | ستاسو ښځې
چه توبه کوونکی او پاک پاکیزه اوسیدونکی وی۔
ستاسو ښځې
حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ وَقَدِّمُوا
ستاسو پټی دی | پس راځئ تاسو | خپلو پټو ته | څنګه چه | غواړئ تاسو | او وړاندې ولیږئ
ستاسو پټی دی نو خپلو پټو ته چه څنګه غواړئ هغسې ورتلې شئ
او د خپل ځان د پاره
لِأَنفُسِكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ وَبَشِّرِ
د خپلو ځانونو د پاره | او ویریږئ | د الله نه | او پوهه شئ | چه بیشکه تاسو | د هغهٔ سره ملاقات کوونکی یئ | او زیرې ورکړه
تو بنه وړاندې ولیږئ او د الله نه ډیره ساتنې او یاد لرئ چه هغهٔ ته به خامخا پیش کیږئ او (اے نبی!)
الْمُؤْمِنِينَ ﴿۲۲۳﴾ وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ
مؤمنانو ته | او مهٔ جوړوئ | الله | نخښنه | د خپلو سوګندونو
مؤمنانو ته (د نجات) زیرې ورکړه ۔ او د خدائے نوم د خپلو قسمونو د پاره بهانه مهٔ کړه وئ
أَن تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ ۗ وَاللَّهُ
چه نیکی د وکړئ | او پرهیزګاری دِ بنکاره کړئ | او اصلاح دِ وکړئ | د خلقو په مینځ کښې | او الله
چه د نیکئ ، تقوی او د خلقو تر مینځه د دوغې راوستلو نه پرے ځان منع کړئ او الله
سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۲۴﴾ لَّا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ
اورېدونکے | دانا دے | نهٔ نیسی تاسو | الله | په لغوه سره | په سوګندونو ستاسو کښے
هر څهٔ اوری او په هر څهٔ پوهه دے۔ الله تاسو په لغوه (بے ارادے) قسمونو بانډې نهٔ نیسی ۔
وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ
لیکن | نیسی تاسو | په هغه څهٔ چه اراده کړی وی هغے ته | زړونو ستاسو | او الله | بخښونکے
لیکن ستاسو په هغو قسمونو به موضرور نیسی چه ستاسو د زړهٔ د ارادے نه وی او الله ډیر معاف کوونکے
حَلِيمٌ ﴿۲۲۵﴾ لِّلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَائِهِمْ تَرَبُّصُ
بردبار دے | هغو د پاره | کوم چه قسم خوری | د خپلو ښځو نه | مهلت (دے)
بردبار دے کوم خلق چه خپلو ښځو نه د تلو نه قسم وخوری ، هغوی ته د څلورو
أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ ۖ فَإِن فَاءُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۲۲۶﴾
د څلورو میاشتو | بیا که چرے | هغوی رجوع وکړی | نو بیشکه | الله | بخښونکے | مهربان دے ۔
میاشتو مهلت دے. که (په دے مینځ کښے) رجوع وکړی نو الله معاف کوونکے مهربان دے ۔
وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۲۷﴾
او که چرے | هغوی پخه اراده وکړه | د طلاق | نو بیشکه | الله | اورېدونکے | دانا دے
او که چرے هغوی د طلاق ورکولو پخه اراده وکړی نو بیشکه الله هر څهٔ اوری او په هر څهٔ پوهه دے ۔

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ

او طلاق شوے ښځے | به انتظار کوی | په ځانونو خپلو | د دریو | حیضو | او نه دی روا

او هغه ښځے کومو ته چه طلاق شوے وی هغوی د درے حیضه (یا درے طهره پورے) انتظار کوی او هغوی له دا جائز

لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ

د هغوی پاره | چه پټ کړی | کوم چه پیدا کړی دی الله | د هغوی په ګیډو کښے | که چرے هغوی

نه دی چه هغوی هغه څیز کوم چه الله د هغوی په ګیډه کښے پیدا کړے دے، پټ کړی که هغوی په

يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ

ایمان راوړی | په الله | او په ورځ | د اخرت | او د هغوی خاوندان | زیات حقدار دی | په بیرته راوستلو د

الله او په ورځ د اخرت باندے ایمان لری او په دے میعاد (عدت) کښے دننه دننه د هغوی خاوندان د واپس

فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا ؕ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ

په دے موده کښے | که چرے اراده لری دوی | د اصلاح | او ښځو لره حقونه دی | په شان | د هغے چه

اخستلو زیات حق لری که دوی خپل کور روغ جوړ ساتل غواړی، او د ښځو هم د دستور مطابق هغسے حقونه دی

عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۪ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ؕ وَاللّٰهُ

په دے ښځو دی | په ښه طریقه | او سړو له دے | په دوی باندے | اوچتوالے | او الله

لکه چه د سړو په هغوی باندے حقونه دی البته سړو ته په ښځو باندے لږ تفضیلت حاصل دے۔ او الله

عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾ اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۪ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ ٢٨ ع ١٢

غالب | او حکمت خاوند دے | طلاق (رجعی) دوه کرته دے | بیا ځان سره ساتل دی | په ښه خوئی سره

غالب او حکمت خاوند دے۔ طلاق دوه ځله دی ← بیا یا خو په روغ زړه ساتل دی او یا

اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ

یائے پریښودل دی | په ښیګړے سره | او حلال نه دی | تاسو د پاره | چه واخلئ تاسو | د هغه څه نه

په ښه طریقه رخصتول دی۔ او تاسو له روا نه دی چه څه (مهر وغیره) مو هغوی ته ورکړے وی د

اٰتَيْتُمُوْهُنَّ شَيْئًا اِلَّآ اَنْ يَّخَافَآ اَلَّا يُقِيْمَا

کوم چه ورکړی دی تاسو هغوی ته | څه شے | مګر (په دے صورت کښے) | چه دواړه ویریږی | چه قائم به نه شی ساتلے

هغے نه څه برخه واپس واخلئ، هو (یو صورت دے) که دواړه په دے ویریږی چه د الله په مقرر کړه

حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا يُقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۙ

د الله حدونه | بیا که چرے | تاسو ته ویره وی | چه هغه دواړه به قائم و نه ساتلے شی | حدونه | د الله

حدونو به قائم پاتے نه شی، نو که تاسو سره دا ویره پیدا شی چه هغه دواړه (ښځه خاوند) به د الله په حدونو

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ

نو نشته (څه) ګناه | په هغه دواړو | په هغے کښے | چه ښځه معاوضه ورکړی (او ځان خلاص کړی) | دا حدونه دی

قائم پاتے نه شی نو په دے کښے هیڅ حرج نشته که ښځه څه عوضانه ورکړی (او ځان خلاص کړی) دا د الله مقرر د

اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ

دَ الله | پس تیر مه وځئ له دې نه | او څوک چه تیر و وتلو | دَ حدونو دَ الله نه | پس هم دغه دي

کړي حدونه دي پس دَ دې نه تیر مه ځئ او څوک چه دَ خدائے دَ حدونو نه وړاندې تیر شي نو هم دغه

هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٢٢٩﴾ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ

ظالمان | پس که چرې (دریم) طلاق ئے ورکړو دې ته | نو هغه به حلاله نه وي | دَ هغه دَ پاره | دَ هغې نه پس

کسان ظالمان دي ـ نو که چرې خاوند ښځې له (دریم) طلاق هم ورکړو نو بیا دغه ښځه هغه ته نه حلالیږي ترڅو چه

حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ؕ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ

ترڅو چه هغه نکاح وُ (نهٔ) کړي | بل خاوند سره | بیا که چرې هغه هم دې له طلاق ورکړي | نو نشته ګناه | په هغه دواړو

دَ بل خاوند سره نکاح وُنهٔ کړي ـ بیا که هغه (دویم خاوند هم) ورله طلاق ورکړي نو هیڅ باک نشته

اَنْ يَّتَرَاجَعَآ اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ؕ

چه په خپل مینځ کښې رجوع وُکړي | که هغوی ته یقین وي | چه هغوی دواړه به قائم وُساتلے شي | حدونه | دَ الله

که دواړه (دوهمی ښځه خاوند) بیا یو ځائے شي که دَ دواړو دا ګمان وي چه دَ خدائے په مقرر کړیو حدونو به (او س)

وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿٢٣٠﴾

او دا | حدونه دي | دَ الله | هغه بیانوي دا | دَ هغه خلقو دَ پاره | چه پوهیږي

قائم پاتے شي او دا دَ خدائے مقرر کړي حدونه دي چه دَ پوهه خاوندانو ته ئے صفا صفا بیانوي ـ

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ

او هر کله چه | طلاق ورکړئ تاسو | ښځو ته | بیا هغوی ورسي | خپل عدت ته | نو او ساتئ هغوی

او هر کله چه تاسو ښځو ته طلاق ورکړئ او هغوی خپلے نیټے دَ عدت ته نزدې شي، نو هغوئ په عزت

بِمَعْرُوْفٍ اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ ۪ وَلَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَارًا

په نیکئ سره | یا پرېږدئ هغوی | دَ دستور مطابق | او مهٔ حصاروئ هغوی | دَ تکلیف رسولو دَ پاره

سره حصار ے کړئ او یائے په ښهٔ طریقه رخصتے کړئ اودَ تنګولو په خاطر ئے مهٔ حصاروئ ـ

لِّتَعْتَدُوْا ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا

چه تاسو سختي وُکړئ | او څوک چه | وُکړي | دا سے | نو بیشکه هغه ظلم وُکړو | په خپل ځان | او مهٔ نیسئ تاسو

دا زیاتے دے او څوک چه دا سے کار وُکړي هغه به په خپل ځان ظلم کوي او دَ الله دَ

اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ؗ وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ

ایتونه | دَ الله | په ټوقو | او یاد کړئ | نعمت دَ الله | په خپلو ځانونو | او هغه څهٔ

ایتونو ته لوبے مهٔ جوړوئ او دَ الله نعمتونه یاد ساتئ کوم چه هغهٔ په تاسو کړي دي ـ او دا هم یاد

اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ

چه نازل ئے کړل په تاسو | له کتاب نه | او له علم نه | چه نصیحت وُکړي تاسو ته | په هغې

لرئ) چه هغهٔ ستاسو دَ نصیحت دَ پاره کتاب او حکمت را نازل کړے دے ـ

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٣١﴾
وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ ٢٩ ع ٣ ١٣
او ووېرېږئ د الله نه | او پوهه شئ | چه | الله | په هر څيز باندې | ښه پوهېږي.
او د خدائے نه ويره کوئ او خبر شئ چه الله تعالى په هر څه ډېر ښه پوهه دے.

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ
او هر کله چه طلاق ورکړئ تاسو | ښځو ته | او هغوی ورسېږي | خپلې نېټې (عدت) ته | پس مه منع کوئ هغوی
او هر کله چه تاسو ښځوله طلاق ورکړئ او هغوی خپل عدت پوره کړي نو د خپلو خاوندانو

اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ ذٰلِكَ
د نکاح کولو نه | خپلو (کېدونکو) خاوندانو سره | کله چه راضي شي هغوی | په خپل مينځ کښې | په ښه طريقه | په دے سره
سره د بيا نکاح ترلو نه ئے مه منع کوئ کله چرے هغوی د دستور مطابق په خپل مينځ کښے راضي شي

يُوْعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ
نصيحت کولے شي | هغه چا ته | کوم چه وي | په تاسو کښے | ايمان لرونکي | په الله | او په ورځ د آخرت
په دے خبرو تاسو نه هغه چا ته نصيحت کولے شي چه هغه په الله او په آخرت باندې ايمان لري.

ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٣٢﴾
دا تاسو د پاره پاکيزګي ده | او صفائي | او الله | پوهېږي | او تاسو | نه پوهېږئ.
دا تاسو د پاره ډېره غوره او پاکيزه طريقه ده، او الله په هر څه ښه پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ.

وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ
او ميندے | بکار دي چه پئ ورکړي | خپل اولاد ته | دوه کاله | پوره | دا حکم هغه چا ده
او (طلاقې شوے) ميندے دِ خپل اولاد ته پوره دوه کاله تے ورکوي. کوم (پلاران)

اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ۭ وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ
چه غواړي | پوره کول | د پيو (د څښولو) موده | او په پلار باندې ده | د هغوی خوراک
چه د (اولاد د) تی موده پوره کول غواړي او د ماشوم په پلار باندې د دغو ښځو

وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ
او جامه د هغوی | په ښه طريقه | تکليف نه شي ورکولے | چا ته | مګر | د هغه د وس مطابق
ډوډئ او جامه د رواج مطابق مقرر دي، هيچا له دِ د خپل وس نه زيات تکليف نه شي ورکولے

لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌ ۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ق
تکليف دِ نه شي ورکولے | مور ته | د هغے د بچي په وجه | او نه پلار ته | د هغه د بچي په وجه
نه دِ مور ته ضرر رسولے شي چه دا ستا خوئے دے (او نه ئے ساتنه) او نه پلار ته چه دا ستا خوئے دے (او ته ئے ذمه وار ئې)

وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا
او په وارث باندې (هم) | په شان د دے (نان نفقه) ده | بيا که چرے | وغواړي مور او پلار | تی نه خلاصول | د دواړو په رضامندئ
او هم دا حکم د ماشوم او په وارثانو باندې هم عائد کېږي بيا که چرے په خپل مينځ کښے په رضامندئ او

وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا

او په مشوره سره | نو (څه) ګناه نشته | په هغو دواړو | او که چېرې غواړئ تاسو | چه دائي د ونیسئ

او مشورې سره (د وخت نه وړاندې) د تي نه خلاصول غواړي نو هیڅ حرج نشته او که تاسو خپل اولاد له بله دائي

أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم

د خپل اولاد د پاره | پس نشته دے هیڅ ګناه | په تاسو | هر کله چه | وسپارئ تاسو | هغه څه چه ورکول مقرر کړي دي تاسو

(مرضعه) بیول غواړئ نو په دے کښې هم څه ګناه نشته شرط دا دے چه تاسو څه ورکول مقرر کړي دي هغه

بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ

د دستور مطابق | او ووېرېږئ | د الله نه | او پوهه شئ | چه | الله هغه څه نه چه تاسو کوئ

د دستور مطابق هغوی له ورکوئ او د الله نه وېره ساتئ او خبر شئ چه الله ستاسو کارونه وینی

بَصِيرٌ ﴿٢٣٣﴾ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا

ښه ګوري | او کوم خلق چه | مړه شي | له تاسو نه | او پرېږدي | ښځې

ګوري ـ او په تاسو کښې چه څوک مړه شي او ښځې ترے نه پاتې شي

يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ۖ فَإِذَا بَلَغْنَ

پکار دی چه انتظار وکړي | خپلو ځانونو ته | څلور | میاشتې | او لس ورځې | بیا هر کله چه | ورسېږي

هغوی د څلور میاشتې او لس ورځې انتظار کوی ـ نو هر کله چه نیټه

أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ

خپلې نیټې ته | نو (څه) ګناه نشته | په تاسو | په هغه څه کښې چه وکړل هغوی | په خپل حق کښې

پوره کړي، نو په تاسو هیڅ ذمه واری نشته که هغوی د خپلو ځانونو په حقله په مناسب شرعی

بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

د دستور مطابق | او الله | د هغه څه نه | چه تاسو کوئ | ښه خبردار دے | او نشته ګناه | په تاسو

طریقه څه وکړل، او الله ستاسو د هر کار نه خبر دے ـ او په دے کښې هم په تاسو څه ګناه

فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ أَوْ أَكْنَنتُمْ

په هغې کښې | چه اشاره وکړه تاسو | په هغې سره | د نکاح | د هغو ښځو نه | یا پټ کړئ تاسو هغه

نشته که چېرے تاسو (د عدت دننه) داسې ښځو ته اشارةً د نکاح خیال ظاهر کړئ، یا په خپل زړه

فِي أَنفُسِكُمْ ۚ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِن

په خپلو زړونو کښې | الله ته علم دے | چه تاسو | به ضرور ذکر کوئ د هغې | لیکن

کښې (د نکاح خواهش) پټ وساتئ الله ته معلومه ده چه تاسو ته به د هغوی خیال ضرور راځي

لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۚ وَلَا تَعْزِمُوا

مه کوئ وعده (د نکاح) د هغوی سره پټه | مګر | دا چه وکړئ | خبره | غوره | او اراده مه کوئ

لیکن پټې وعدے ورسره مه کوئ، که څه خبره ورسره کوئ نو په سمه طریقه کولے شئ او تر هغې د نکاح

عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ

دَ عقد | دَ نکاح | ترهغه چه | ورسیږی | عدت | مقرره وخت پورے | او پوهه شئ | چه

ترلو اراده مه کوئ، ترڅو چه عدت پوره شوے نه وی، او پوهه شئ چه

اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ

الله | پوهیږی | په هغه څه چه ستاسو په زړونو کښے دی | نو د هغه نه وېرېږئ | او پوهه شئ | چه الله

الله ستاسو د زړونو په حال خبر دے ، نو د هغه نه وېره کوئ - او خبر شئ چه الله

غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿٢٣٥﴾ لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا

بخښونکے | بردبار دے | نشته (څه) ګناه | په تاسو | که چرے تاسو طلاق ورکړئ | ښځو ته | هر کله چه

بخښونکے بردبار دے ، په تاسو څه ګناه نشته که چرے تاسو ښځو ته د لاس وروړلو

لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۖۚ وَّمَتِّعُوْهُنَّ

تاسو هغوی ته لاس هم نه وی لګولے | او (نه) مو مقرر کړے وی | د هغوی د پاره | څه مهر | او هغوی ته څه سامان ورکړئ

یا د هغوئ مهر مقررولو نه وړاندې طلاق ورکړئ (په داسے صورت کښے) څه نا څه مال متاع ورکړئ

عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًا

په مالدار باندې | د خپل طاقت مطابق | او په تنګ دسته باندې | د خپل حیثیت مطابق | څه سامان

مالدار دِ د خپل حیثیت مطابق ورکړی او غریب دِ د خپل حیثیت مطابق په مناسب طریقه

بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٢٣٦﴾ وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ

د دستور مطابق | لازم دی | په نیکانو باندې | او که چرے | طلاق ورکړئ تاسو هغوی ته

مال متاع ورکړئ نیکانو خلقو له داسے ضروری دی. او که د لاس وروړلو نه وړاندې

مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ

وړاندې له دے نه | چه لاس وراوړے وی تاسو هغوی ته | او مقرر کړے وی تاسو | هغوی د پاره | مهر | نو نیمه

مو ښځے له طلاق ورکړو ، او حق مهر مو ورله مقرر کړے وی نو نیم مهر

مَا فَرَضْتُمْ اِلَّآ اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِيْ بِيَدِهٖ

د هغے څه چه مقرر کړے وی تاسو | مګر | دا چه وُ بخښی ښځے | یا معاف کړی | هغه سړے چه | په لاس د هغه کښے

ادا کړئ ، دا بیله خبره ده چه ښځه بخښنه وکړی (او مهر نه اخلی) یا د کوم سړی په لاس کښے چه د نکاح غوټه ده

عُقْدَةُ النِّكَاحِ ؕ وَاَنْ تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ؕ وَلَا تَنْسَوُا

عقد | د نکاح دے | او چه بخښنه وکړئ تاسو | نو زیات نزدے ده | پرهیزګارئ ته | او مه هیروئ

هغه بخښنه وکړی (او زیات مال ورکړی) او که تاسو ناربینه بخښنه وکړئ نو دا خبره تقویٰ ته زیاته نزدے ده او په خپل مینځ کښے

الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٣٧﴾ حٰفِظُوْا

احسان کول | په خپل مینځ کښے | بیشکه | الله | هغه څه ته | چه تاسو کوئ | ښه ګوری | حفاظت کوئ | د

احسان کول مه هیروئ، بیشکه الله ستاسو هر کار وینی ګوری - مونځونو

عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴿۲۳۸﴾

دَ ټولو مونځونو | او دَ مينځني مونځ | او ودريږئ | الله ته | په عاجزئ سره

حفاظت او پابندي کوي او خصوصًا دَ مينځني مونځ او الله ته په ډير ادب ودريږئ۔

فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ

بيا که چرې | ويريږئ | پس مونځ وکړئ پياده | يا سواره | بيا چه کله | په امن شئ | نو ياد کړئ | الله

بيا که چرې تاسو (دَ دښمن) ويره وي (نو مونځ وکړئ) پياده وي که په سورلئ۔ بيا هر کله چه تاسو امن حاصل شي نو

كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۹﴾ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ

لکه څنګه چه | ښودلي دي تاسو ته | هغه څه چه | تاسو پرې پوهه نه وئ | او هغه خلق چه | مړه شي

الله ياد کړئ څنګه ئې چه تاسو ته چل ښودلے دے په کوم چه تاسو مخکښې نه پوهيدئ۔ او کوم خلق چه له تاسو مړه

مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۚۖ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا

له تاسو نه | او پريږدي | ښځې | (هغوي دِ) وصيت کوي | خپلو ښځو دَ پاره | (دَ) خرڅ

کيږي او ښځې ترے نه (کنډې) پاتې کيږي، نو دَ خپلو ښځو په حقله دِ وصيت وکړي چه يو کال دِ ورته خرڅ

اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

يو کال پورې | بغير (کور نه دَ) ويستلو | بيا که چرې هغوي خپله ووځي | نو نشته ګناه | په تاسو

اخراجات ورکيدې شي او دَ کوره دِ نه شي ويستلے۔ که هغوي په خپله بهر ووځي نو دَ خپل ځان په حقله چه هغوي

فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ۗ وَاللّٰهُ

په هغې کښې | چه هغوي وکړي | په خپل حق کښې | په مناسبه طريقه | او الله

په سمه شرعي طريقه هر څه کوي دَ هغې ذمه واري په تاسو نشته۔ او الله دَ اختيار خاوند دے

عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۴۰﴾ وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌ ۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ حَقًّا

غالب | خاوند دَ حکمت دے | او طلاق شوو ښځو ته | خرڅ (ورکول پکار دي) | دَ دستور مطابق | (دا) حق دے

او په هر حکم کښې حکمت لري۔ او طلاق شوو ښځو له په خپل مناسب څه ناڅه ورکول په نيکانو باندې

عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۴۱﴾ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ

په پرهيزګارانو | دغه شان | بيانوي | الله | تاسو دَ پاره | ايتونه خپل | چه تاسو

مقرر شوے حق دے۔ دغه شان الله تعالىٰ تاسو ته خپل حکمونه صفا صفا بيانوي اُميد دے چه تاسو به دَ

ع ٣١ / ٧ ١٥ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲۴۲﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ

پوهه شئ | ايا نه دي کتلي تا | هغو خلقو ته | چه وتلي وُو | دَ خپلو کورونو نه

عقل فکر نه کار واخلئ۔ (اے پيغمبره!) تا دَ هغه خلقو په حال غور فکر کړے دے چه د زرګونو په تعداد کښې دَ خپلو

وَهُمْ اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ ۠ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۫ ثُمَّ

او هغوي په زرګونو وُو | دَ مرګ له ويرے نه | پس ووئيل | هغوي ته | الله | مړه شئ؟ | بيا

کورونو نه ووتل ځکه چه دَ مرګ نه ويريدل۔ نو خدائے هغوي ته حکم وکړو چه مړه شئ (نو هغوي مړه شو)

أَحْيَاهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ

ئې راژوندي کړل | بېشکه | الله | د فضل خاوند دے | په خلقو | او لیکن | اکثر

ئې راژوندي کړل ، بېشکه الله په خلقو ډیر مهربان دے ، و لے اکثر خلق

النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٢٤٣﴾ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا

خلق | شکر نهٔ کوی | او جهاد وکړئ | د الله په لاره کښے | او پوهه شئ

د هغهٔ شکر نهٔ ادا کوی . او ( اے مسلمانانو! ) تاسو د الله په لاره کښے جهاد کوئ او دا یاد لرئ چه

أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٤﴾ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا

چه | الله | اورېدونکے | پوهه دے | څوک دے | هغه کس چه | قرض ورکړی الله ته | قرض | ښهٔ

الله هر څهٔ اوری او په هر څهٔ پوهه دے . څوک دی چه الله له قرض حسنه ورکړی ،

فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ۚ وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ

چه زیات کړی الله هغه هغهٔ ته | په غبرګونو | ډېرو سره | او الله (روزی) تنګوی | او فراخوی | او د هغهٔ طرف ته

الله به ورله په څو چنده د هغے بدله واپس ورکړی . او الله د چا روزی تنګوی او د چا زیاتوی او هغهٔ ته به

تُرْجَعُونَ ﴿٢٤٥﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَىٰ

به ورګرځولے شی | آیا تا نهٔ دی کتلی | یو ټولی ته | له بنی اسرائیلو نه | پس له موسیٰ نه

تاسو ځانی واپس کولے شئ . او تا په هغه واقعے هم غور فکر کړے دے چه د موسیٰؑ نه پس د بنی اسرائیلو یو ټولی ته پېښه شوے وه

إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ

هر کله چه هغوی ووئیل | خپل پیغمبر ته | چه مقرر کړه | مونږ د پاره | یو بادشاه چه جنګ وکړو | په لاره د الله کښے

هر کله چه هغوی خپل نبی ته ووئیل چه مونږ له یو بادشاه مقرر کړه چه د الله په لاره کښے جهاد وکړو

قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا ۖ قَالُوا

و فرمائیل | آیا | نزدے یئ تاسو | دے ته چه که چرے فرض کړے شی په تاسو باند | جنګ | نو جنګ به و نهٔ کړئ | ووئیل هغوی

نبی ورته ووئیل چرته داسے و نهٔ شی چه جهاد در باندِ فرض شی او بیا تاسو ئے و نهٔ کړے شئ هغوی ووئیل

وَمَا لَنَا أَلَّا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا

څهٔ شوی دی په مونږ | چه جنګ به و نهٔ کړو | د الله په لاره کښے | حال دا دے چه | مونږ ویستلے شوی یو | د خپلو کورونو نه

داځنګه کیدے شی چه مونږ به د الله په لاره کښے جهاد نهٔ کوو سره د دے چه مونږ د خپلو کورونو نه ویستلے شوی او د اولاد

وَأَبْنَائِنَا ۖ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ ۗ

او د خپلو ځامنو نه | بیا هر کله چه فرض کړے شو | په هغوی باندِ | جهاد | نو ټو ټو مخ واړولو | سوا د لږو وکسانو | د هغوی نه

نه جُدا کړے شو . خو چه جهاد پرے فرض کړے شو نو د یو څو کسانو نه سوا نور ټو ټو ورته شا کړه او وتښتېدل

وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٢٤٦﴾ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ

او الله | ښهٔ پوهه دے | په ظالمانو | او ووئیل | هغوی ته | د هغوی نبی | بېشکه الله | مقرر کړے دے | تاسو د پاره

او الله هم نافرمانه ښهٔ پېژنی . او هغوی ته د هغوی نبی ووئیل ، چه الله طالوت ستاسو بادشاه

وقف لازم

طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوٓا اَنّٰى يَكُوْنُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ اَحَقُّ

طالوت | بادشاه ، هغوی ووئیل | څنګه کیدے شی | دَ ده | بادشاهی | په مونږه | او مونږ | زیات حقدار یو

مقرر کړے دے ، دوی ووے (هغوی داغه واٸے ؟) هغه کله په مونږ بادشاهی کولے شی ؟ دَ هغه نه خو مونږ زیات

بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ۚ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىهُ

دَ بادشاهئ | له ده نه | او نه ده ورکړے شوے ده ته | فراخی | له مال نه | وفرمائیل | بیشکه الله | غوره کړے دے

دَ بادشاهئ حقدار یو او هغه خو څه ډیر مالدار سړے هم نه دے . پیغمبر ورته وفرمائیل چه الله هغه ستاسو په

عَلَيْكُمْ وَزَادَهٗ بَسْطَةً فِى الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ۚ وَاللّٰهُ يُؤْتِىْ مُلْكَهٗ

په تاسو باندِ | او زیاته ئے ورکړے ده ده ته | فراخی | به علم کښے | او په بدن کښے | او الله | ورکوی | خپله بادشاهی

مقابله کښے غوره کړے دے او په علم او بدن دواړو کښے ئے بر کړے دے . او دَ الله اختیار دے چه خپل حکومت

مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٤٧﴾ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ

چا ته چه غواړی | او الله | خاوند دَ فراخه فضل دے | پوهه دے | او ووئیل | دوی ته | پیغمبر دَ دوی | بیشکه

چا ته غواړی هغه ته ئے سپارِی هغه دَ وسعتونو مالک او پوهه دے . او دَ هغوی پیغمبر هغوی ته ووئیل چه دَ (طالوت د)

اٰيَةَ مُلْكِهٖٓ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ التَّابُوْتُ فِيْهِ سَكِيْنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

نخښه | دَ هغه دَ حکومت | دا ده چه رابه شی تاسو ته | هغه صندوق | چه په هغے کښے | تسلی ده | ستاسو دَ رب طرف نه

حکومت نخښه دا ده چه هغه صندوق به درته (واپس) راشی چه په هغے کښے دَ الله له طرفه ستاسو دَ اطمینان سامان

وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ اٰلُ مُوْسٰى وَاٰلُ هٰرُوْنَ تَحْمِلُهُ

او باقی پاتے شوی څیزونه | په هغے کښے | کوم چه پریښودی وو | دَ موسیٰ اولاد | او دَ هارون اولاد | چه راپورته کوی به هغه

پروت دے او په کښے دَ موسیٰ او هارون علیهما السلام دَ اولاد پاتی شوی تبرکات پراته دی ، چه راوړی

الْمَلٰٓئِكَةُ ۚ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٢٤٨﴾ فَلَمَّا

فرښتے | بیشکه | په دے کښے | (کافی) نخښه ده تاسو دَ پاره | که چرے یئی تاسو | باور کوونکی | پس هرکله چه

به ئے فرښتے ، دا ستاسو دَ پاره (دَ طالوت دَ بادشاهئ) بوه څرګنده نخښه ده که تاسو په ربښتیا مؤمنان یئی ، بیا هرکله چه

فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ ۙ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ۚ

جدا شو | طالوت | دَ لښکرو سره | (نو) ووئیل | بیشکه | الله | آزمیښت کوونکے دے په تاسو | په یو دریاب سره

چه طالوت دَ لښکرو سره روان شو ، نو اعلان ئے وکړو چه الله دَ یو دریاب په ذریعه ستاسو ازمیښت کول غواړی

فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّىْ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ فَاِنَّهٗ مِنِّىْٓ

پس کوم سړے چه وڅښی | له دے نه | پس هغه نه دے له ما نه | او څوک چه | ونه څکی هغه | پس بیشکه هغه له ما نه دے

څوک چه دَ هغے دریاب نه اوبه وڅښی هغه زما ملګرے نه دے . او څوک چه دغه اوبه ونه څکی نو هغه زما ملګرے دے

اِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهٖ ۚ فَشَرِبُوْا مِنْهُ اِلَّا قَلِيْلًا

مګر | څوک چه | راواخلی | یو چوڼګ | په خپل لاس | پس وڅښلے هغوی | له هغے نه | مګر | لږ و کسانو

او که یو چوڼګ اوبه په لاس کښے راواخلی (او وڅښی نو خیر دے) نو دَ یو څو کسانو نه بغیر نورو ټولو ترے نه اوبه

مِّنْهُمْ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ

له هغوی نه | بیا هر کله چه | تیر شول هغه دریاب نه | هغه (طالوت) | او مؤمنان | | د هغهٔ سره

بیا هر کله چه طالوت او د هغهٔ ایماندار ملګری د دریاب نه تیر شول، نو هغوی د خپلې

قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالَ الَّذِينَ

وو وئیل هغوی | نشته دے | طاقت | زمونږ | نن ورځ | د مقابلے د جالوت | او د هغهٔ د لښکرو | و وئیل هغو خلقو

و وئیل نن خو مونږ کښے د جالوت او د هغهٔ د لښکرو سره د مقابلے کولو طاقت نشته خو خوک چه په دے خبره

يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً

د کوم چه خیال ؤ | چه بیشکه هغوی | ملاقات کوونکی دی د الله سره | چه ډیر ځلے واړهٔ ټولی | غالب شوی دی | په لویو ټولو باندِ

پوهه ؤ چه خدائے سره به مخامخ کیږو هغوی و وئیل چه ډیر ځله وړه ډله د الله په حکم سره په لویه

بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٢٤٩﴾ وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ

په حکم د الله | او الله | سره دے | د صابرانو | او هر کله چه | هغوی مخامخ شول | جالوت | او د هغوی لښکرو ته

ډله باندِ غالبه شوے ده او الله د صابرانو ملګرے دے. او هر کله چه هغوی د جالوت او د هغهٔ د لښکرو مقابلے ته

قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانصُرْنَا

نو وُئے وئیل | اے زمونږه ربه | واچوه | زمونږ په زړونو کښے | صبر | او محکم کړه | قدمونه زمونږ | او غلبه راکړه مونږ ته

راووتل نو دُعائے وُغوښتله چه اے زمونږه ربه! مونږ له ډیر صبر راکړه او زمونږ ښپے کلکے کړه او د کافرانو په مقابله

عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٢٥٠﴾ فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ اللَّهِ وَقَتَلَ

په | قوم | د کافرانو. | بیا شکست ورکړو هغوی کافرانو ته | په حکم د الله | او قتل کړو

کښے زمونږ امداد وُکړه. نو هغوی د الله په حکم سره هغوی ته شکست ورکړو او داؤد علیه السلام

دَاوُودُ جَالُوتَ وَآتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ

داؤد | جالوت لره | او ورکړه هغهٔ ته الله | بادشاهي | او دانائی | او وُښودل هغهٔ ته | له هغهٔ څه نه | چه هغهٔ غوښتل

جالوت لره قتل کړو او الله داؤد علیه السلام له بادشاهي او حکمت ورکړو او څهٔ چه ئے مناسب ګڼړل هغه ئے ورته ښودل

وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ

او که چرته وے دفع کول د الله | د خلقو | د یو بل نه | نو خامخا به تباه شوے وه | زمکه | لیکن

او که الله خلق د یو بل په لاس نهٔ منع کولے، نو د زمکے انتظام به خراب شوے ؤ لیکن

اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٢٥١﴾ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ

الله | فضل کوونکے دے | په عالمو باندِ | دا | آیتونه دی | د الله

الله په ټول مخلوق ډیر مهربان دے (چه د امن انتظام ورله کوی) دا د الله آیتونه دی چه مونږ

نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٢٥٢﴾

چه تلاوت کوؤ مونږ ئے | تا ته | په رښتیا | او بیشکه تهٔ | له رسولانو نه یئے.

ئے تا ته په حقه سره بیانوؤ او بیشکه تهٔ د رسولانو نه یئے.

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ مِنْهُمْ

دا | (نقول) رسولان | فضيلت ورکړے دے موږ | ځنوته له هغوی نه | په ځنوبانډِ | ځنے له هغوی نه

دا پیغمبران داسے دی چه موږ هغوئی له یو دَ بل نه اُوچتے مرتبے ورکړے دی په هغوی کښے الله

مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَاٰتَيْنَا

هغه څوک دی چاسره چه خبرے کړے وے الله | او اُوچت کړل الله | ځنے د هغوی | په درجو کښے | او ورکړے موږ

چاسره خبرے کړی دی او چا لره (په بل شان) اُوچتے مرتبے ورکړی دی او عیسیٰ ځوئے دَ مریم

عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

عیسیٰ ځوئے دَ مریمے ته | معجزے | او مدد وُکړو موږ دَ هغهٔ | په روح القدس سره | او که چرے غوښتلے الله

ته موږ (په آخر کښے) څرګندے نخښے ورکړے او دَ جبرائیل په ذریعه مو هغه مضبوط کړو۔ او که الله ته منظوره وے

مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِهِمْ مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ

نو په خپل مینځ کښے به نهٔ جنګیدل هغه خلق | چه دَ هغوی نه پس وُو | پس له هغے نه چه | راغلل به هغوی ته

نو دَ هغوی نه پس خلقو به دَ داسے څرګندو نخښو دَ راتلو نه پس په کور کښے جنګونه نهٔ کول (خو الله په چا

الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ؕ

(روښانه) دلیلونه | لیکن | اختلاف وُکړو هغوی | پس ځنے له هغوی نه هغه خلق دی چه | ایمان ئے راوړو | او ځنے له هغوی نه هغه کسان دی | چه کفر ئے وکړو

جبیر نهٔ کوی) نو هغوی جدا جدا شول، په هغوی کښے ځنے خو په ایمان قائم پاتے شول او ځنو کفر اختیار کړو

٣٣ ع ٥ ١ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۗ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿٢٥٣﴾

او که چرے غوښتلے | الله | نو په خپل مینځ کښے به نهٔ جنګیدل | لیکن | الله | کوی | څهٔ چه غواړی۔

او که چرے الله غوښتلے نو (دا خلق به) دَ یو بل سره نهٔ جنګیدل مګر الله چه څهٔ کول غواړی هغه کوی۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ

اے مؤمنانو ! | خرچ کړئ (دَ الله په لاره کښے) | دَ هغه مال نه چه | درکړے دے موږ تاسو ته | وړاندِ دَ هغے نه

اے مؤمنانو ! موږ چه کوم مال متاع درکړے دے دَ هغے نه خیراتونه ورکړئ وړاندِ دَ دے

اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ وَّلَا شَفَاعَةٌ ؕ

چه راشی | (هغه) ورځ | چه نه به خرڅول او اخستل وی | په هغے کښے | او نهٔ دوستی | او نهٔ سفارش

نه چه هغه ورځ راشی چه نهٔ به په کښے دَ مال بیعه کیږی، نهٔ به دوستی پاللے کیږی او نهٔ به سفارش چلیږی۔

وَالْكٰفِرُوْنَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿٢٥٤﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْحَيُّ

او | کافران | هم دوی | ظالمان دی | الله | نشته دے هیڅ معبود | مګر هم هغه دے | ژوندے دے

او ظالمان هم هغه خلق دی چه کفر ئے غوره کړے دے۔ (اے خلقو!) الله هغه ذات دے دکوم نه سوا چه بل معبود نشته

الْقَيُّوْمُ ۚ لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

دَ ټولو قائموونکے دے | نهٔ نیسی هغه | پرکالی | او نهٔ | خوب | هم دَ هغهٔ دی | څهٔ چه | په اسمانونو کښے دی

هغه تل ژوندے او قائم پاتے کیدونکے دے۔ نهٔ په هغهٔ پرکالی راځی او نهٔ خوب۔ دَ اسمانونو او دَ زمکے ټول خیزونه

وَمَا فِى الْاَرْضِ ۗ مَنْ ذَا الَّذِىْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ
او څهٔ چه په زمکه کښې دی | څوک دے | هغه چه | سفارش وُکړی | هغهٔ ته | مګر | دَ هغهٔ په اجازت
دَ هغهٔ (ملکيت) دے ، څوک دی ؟ چه دَ هغهٔ په دلبار کښې به بے اجازته (دَ چا) سفارش وُکړی
يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَىْءٍ
هغه پوهيږی | په هغه څهٔ چه دَ هغوی دَ وړاندې دی | او څهٔ چه دَ هغوی وروستو دی | او هغوی احاطه نهٔ شی کولے | دَ څهٔ څيز
پوهه دے په هغه خبرو چه دَ خلقو دَ وړاندې دی او په هغې چه دَ خلقو (دَ نظره) شاته دی او هغوی دَ هغهٔ دَ معلوماتو نهٔ په هيڅ
مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ
دَ هغهٔ دَ علم نه | مګر څهٔ چه هغه وُغواړی | راګير کړی دی | کرسئ دَ هغهٔ | آسمانونه | او زمکه
څيز باندې احاطه نهٔ شی کولے مګر په هغې چه الله وُغواړی ، دَ هغهٔ حکومت په آسمانونو او زمکه باندې خور دے
وَلَا يَـُٔوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِىُّ الْعَظِيْمُ ﴿٢٥٥﴾ لَاۤ اِكْرَاهَ فِى الدِّيْنِ ۙ
او نهٔ ستړے کوی هغه | حفاظت دَ دې دواړو | او هغه دے | دَ اوُچتے درجې خاوند | ډير لوئے | نشته دے زبردستی | په دين کښې
او دَ دې دواړو په ساتنه هغه هيڅ کله نهٔ ستړے کيږی او هغه اوُچت او لوئے ذات دے۔ په دين (قبلولو) کښې هيڅ قسم له
قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَىِّ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْۢ
بيشکه ښکاره شوے دے | هدايت | دَ ګمراهئ نه | نو څوک چه | وُنهٔ منی | دَ شيطان | او ايمان راوُړی
زور زياتے نشته ، سمے خبرې دَ غلطونه جُدا او ښکاره پرتے دی ، نو څوک چه دَ شيطان نه منکر شی او په الله ايمان
بِاللّٰهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ۗ لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللّٰهُ
په الله | نو بيشکه | هغهٔ ونيولے ده | کړئ | مضبوطه | چه نشته دے ماتيدل دَ هغې | او الله
راوُړی ، نو هغهٔ په حقيقت کښې يو داسے مضبوطے کړئ ته لاس واچولو چه هيڅ کله دَ هغې ماتيدل نشته او الله
سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٥٦﴾ اَللّٰهُ وَلِىُّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۙ يُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ
اوُريدونکے | پوهه دے | الله | دوست دے | دَ هغو خلقو | چه ايمان راوُړی | راوباسی هغوی | دَ تيارو نه
هر څهٔ اوُری او په هر څهٔ پوهه دے۔ الله دَ مؤمنانو ملګرے دے چه دَ (کفر دَ) تيارو نه ئے (دَ ايمان) رڼا
اِلَى النُّوْرِ ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ ۙ يُخْرِجُوْنَهُمْ
رڼا ته | او کوم چه | کافران دی | دَ هغوی دوستان | شيطانان دی | هغه هغوی راوُباسی
ته راوُباسی ، او دَ کافرانو دوستان هغه شيطانان دی چه دَ (ايمان) رڼا نه ئے دَ (کفر)
مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا
دَ رڼا نه | تيارو طرف ته | هم دا خلق | اوُسيدونکی | دَ اور دی | هم هغوی | په دے کښې
تيارو ته وُباسی ، هم دغه خلق دوزخيان دی ، او تل به په دوزخ کښې
خٰلِدُوْنَ ﴿٢٥٧﴾ ع اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِىْ حَآجَّ اِبْرٰهٖمَ فِىْ رَبِّهٖۤ ٣٤ ع ٢
هميشه وی | آيا نهٔ دی کتلی تا | هغه کس ته کوم چه | جګړه کړے وه | ابراهيم سره | دَ هغهٔ دَ رب په حقله
پراته وی ۔ (اے پيغمبره!) تا دَ هغه چا په قصه غور نهٔ دے کړے چه دَ ابراهيم سره دَ خدائے په حقله بحث کړے وو

أَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ ۘ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَ

ځکه چه ورکړے وو هغهٔ ته الله | حکومت | هرکله چه ووئیل | ابراهیمؑ | زما ربّ | هغه دے چه | ژوندی کوی | او

ځکه چه الله هغهٔ له بادشاهی ورکړے وه هرکله چه حضرت ابراهیمؑ ورته ووئیل چه زما رب داسے دے چه ژوندی

يُمِيْتُ ۙ قَالَ اَنَا اُحْيٖ وَاُمِيْتُ ؕ قَالَ اِبْرٰهٖمُ فَاِنَّ اللّٰهَ

مړهٔ کوی | نو هغهٔ ووئیل | زهٔ هم ژوندی کوم | او مړهٔ کوم | وفرمائیل | ابراهیمؑ | پس بیشکه | الله

کول او مړهٔ کول کوی هغهٔ ووئیل چه ژوندی کول او مړهٔ کول خوزهٔ هم کوم، ابراهیمؑ ورته ووئیل چه الله هغه ذات

يَاْتِيْ بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَاْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ

راخیژوی | نُور | دَ مشرق نه | پس راوخیژوه هغه | دَ مغرب نه | نو حیران شو

دے چه نُور دَ مشرق دَ طرف نه راخیژوی نو (بنده) ته ئے دَ مغرب دَ طرف نه راوخیژوه نو (په دے خبره)

الَّذِيْ كَفَرَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٥٨﴾ اَوْ كَالَّذِيْ مَرَّ

هغه | کافر | او الله | لارښوونه نهٔ کوی | هغه خلقو ته | (چه) ظالمان دی | یا لکه هغه سړے چه | تیر شو

هغه کافر حیران پاتے شو او الله ظالمانو ته دَ سمے لار هدایت نهٔ کوی۔ یا (تا) دَ هغه سړی په واقعه غور نهٔ دے

عَلٰى قَرْيَةٍ وَّهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا ۚ قَالَ اَنّٰى يُحْيٖ هٰذِهِ

په یو کلی باندې | او هغه پریوتے وُو | په چتونو خپلو | هغهٔ ووئیل | څنګه به ژوندے کړی | دا

کړے) چه په یو (تباه شوی) کلی باندې تیر شو چه چتونه ئے پرمخے راپریوتی وُو نو ئے ووئیل چه الله تعالیٰ به دا دِ تباه شوی

اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ ؕ

الله | پس له مرګ کیدلو دَدے نه | بیا هغهٔ له مرګ ورکړو الله | سل کاله | بیا دوباره ئے ژوندے کړو هغه

کلی (مړی) دَ دوی دَ مرګ نه پس بیا څنګه ژوندی کوی پس الله تعالیٰ هغهٔ له سلو کالو د پاره مرګ ورکړو، بیا ئے ژوندے کړو۔

قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ؕ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ قَالَ بَلْ

ووئیل الله | څومره موده تیره کړه تا؟ | هغهٔ ووئیل | ما موده تیره کړه | یوه ورځ | یا څهٔ حصه | دَ ورځے | وفرمائیل الله | بلکه

ورته ووئیل چه څومره موده په دے حالت کښے دے؟ هغهٔ ووئیل یوه ورځ قدر به پروت وُم یا دَ دے نه څهٔ قدرے کم۔ الله ورته وفرمائیل

لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ اِلٰى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۚ

تا موده تیره کړه | سل | کاله | پس وګوره | خپل خوراک ته | او خپلو څښلو ته | چه نهٔ دی خراب شوی

(چه تا) بلکه ته سل کاله پروت وے۔ اوس دَ خپل خوراک څښاک سامان ته وګوره چه خراب شوے نهٔ دے

وَانْظُرْ اِلٰى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَانْظُرْ

او وګوره | خپل خر ته | او چه مونږ جوړه کړو تا | نخښه | خلقو دَ پاره | او وګوره

او خپل (دَ سورلئ) خر ته وګوره (چه څنګه خاورے شوے دے) او چه مونږه تا دَ خلقو دَ پاره نخښه وګرځوو او دَ خر دے هډو وګوره

اِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوْهَا لَحْمًا ؕ فَلَمَّا

هډو وکو ته | څنګه | یو ځائے کوو هغه | بیا | اغوندوو هغے ته | غوښه | پس هرکله چه

وګوره، چه څنګه ئے یو ځائے کوو (او) بیا څنګه ورته غوښه اغوندوو نو هرکله چه ترل

تَبَيَّنَ لَهٗ ۙ قَالَ اَعْلَمُ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿٢٥٩﴾

واضحه شوه | هغهٔ ته | نو ووے وئیل | زهٔ پوهه یم | چه الله | په هر څیز باندے | قادر دے.

حقیقت ورته ښکاره شو، نو ووئے وئیل زهٔ اوس ډیر ښهٔ پوهه شوم چه الله په هر څهٔ قدرت لری

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِیْ كَیْفَ تُحْیِ الْمَوْتٰی ؕ قَالَ

او هر کله چه ووئیل | ابراهیم | اے زما ربه | وښایه ماته | چه څنګه به ژوندی کوے ته | مړی | ووئیل (الله)

او (هغه واقعه هم یاده لره) چه ابراهیم ووئیل اے زما ربه! ماته وښایه چه ته مړی څنګه ژوندی کوے، الله وفرمائیل

اَوَلَمْ تُؤْمِنْ ؕ قَالَ بَلٰی وَلٰكِنْ لِّیَطْمَىِٕنَّ قَلْبِیْ ؕ قَالَ فَخُذْ

آیا ستا یقین نشته ؟ | ووئیل | ولے نه ! | لیکن | دپاره د دے چه زما د زړهٔ تسلی وشی | وفرمائیل | نو ونیسه

ولے ستا باور نشته ؟ هغهٔ ووئیل باور م شته خو د زړهٔ اطمینان غواړم - الله ورته وفرمائیل (ښه ده) نو

اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّیْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَیْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰی كُلِّ جَبَلٍ

څلور | له مارغانو نه | پس بلد کړه هغوی | د ځان سره | بیا کیږده | په هر غر باندے

څلور مارغان راونیسه او د ځان سره ئے بلد کړه بیا (هغه ذبح کړه او) د هغوئی یوه یوه ټوټه په هر

مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ یَاْتِیْنَكَ سَعْیًا ؕ وَاعْلَمْ اَنَّ

د هغوی نه | یوه برخه | بیا | آواز وکړه هغوی ته | نو رابه شی هغوی تاته | په منډه | او پوهه شه | چه

غر باندے کیږده ، بیائے ځان ته راوبله نو په منډه به درله راشی، او پوهه شه چه الله

اللّٰهَ عَزِیْزٌ حَكِیْمٌ ﴿٢٦٠﴾ مَثَلُ الَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ ع ٣٥

الله | غالب | د حکمت خاوند دے | مثال | د هغو خلقو | کوم چه خرڅ کوی | مالونه خپل | په لاره کښے

اختیار او د حکمت خاوند دے. د هغو خلقو مثال چه خپل مالونه د الله په لاره کښے خیرات

اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِیْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ

د الله | (داسے دے) لکه چه | یوه دانه | زرغون کړی | اووهٔ | وږی | په هر وږی کښے

کوی ، د هغه دانے په شان دے چه اووهٔ وږی زرغون کړی ، په هر وږی کښے سل

مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَاللّٰهُ یُضٰعِفُ لِمَنْ یَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِیْمٌ ﴿٢٦١﴾

سل | دانے دی | او الله | زیاتوی | چاد پاره چه غواړی | او الله | فراخئی والا | دانا دے

دانے وی. دغسے الله چه چاله غواړی نو لږ عمل ورله په څو څو چنده کوی او الله وسعتونو والا او لوئے علم

اَلَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا یُتْبِعُوْنَ

کوم خلق چه | لګوی | خپل مالونه | په لاره کښے | د الله | بیا | نهٔ رسوی (تکلیف)

دے. څوک چه خپل مالونه د الله په لاره کښے خیرات کوی ، بیا په خپله نفقه پسے یادګیرنه

مَآ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًی ۙ لَّهُمْ اَجْرُهُمْ

د لګولو (نه پس) | په احسان کولو | او نهٔ ضرر (رسوی) | د هغوی د پاره دے | د هغوی ثواب

نهٔ کوی او نهٔ آزار رسوی ، د هغوی اجر خپل خدائے سره

عِندَ رَبِّهِمۡ ۚ وَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ﴿٢٦٢﴾ قَوۡلٌ
دَ هغوی دَ رب سره | او نهٔ به څهٔ ویره وی | په هغوی | او نهٔ به هغوی | غمژن وی | خبره
مقرر دے او نهٔ هغوی له څهٔ خطره شته او نهٔ به چرے غمژن وی. (فقیرته) خوږه
مَّعۡرُوفٌ وَمَغۡفِرَةٌ خَيۡرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتۡبَعُهَآ أَذًى ۗ وَٱللَّهُ
نرمه کول | او معافی کول | ښهٔ دی | دَ هغه خیرات نه | چه دَ هغے نه پس وی | خفه کول | او الله
خبره کول (او په نامناسبه خبره) معاف کول دَ هغے صدقے نه ښهٔ دی چه وروستو (دَ یادګیرنے) ازاردی او الله
غَنِيٌّ حَلِيمٌ ﴿٢٦٣﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبۡطِلُواْ صَدَقَـٰتِكُم
بے نیازه | بُرد بار دے | اے | مؤمنانو ! | مهٔ ضائع کوئی | خپلے صدقے
بے حاجته او صابره دے. اے مؤمنانو ! تاسو خپلے صدقے په زباتولو او تکلیف رسولو
بِٱلۡمَنِّ وَٱلۡأَذَىٰ كَٱلَّذِي يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ
په یادګیرنے | او تکلیف رسولو باندِ | په شان دَ هغه چا | چه خرچ کوی | مال خپل | دَ پاره دَ ښودلو | خلقو ته
باندِ مهٔ خرابوئی. لکه دَ هغه چا په شان چه خپل مالونه دَ نوم دَ پاره لګوی.
وَلَا يُؤۡمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ ۖ فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ صَفۡوَانٍ
او ایمان نهٔ لری | په الله | او په ورځ | دَ آخرت | پس دَ هغهٔ مثال (داسے دے) لکه چه | صفا کاڼړے
او نهٔ په خدائے ایمان لری او نهٔ په ورځ دَ آخرت. دَ هغهٔ (دَ خیرات) مثال دَ هغے هوار کاڼړ دے.
عَلَيۡهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُۥ وَابِلٌ فَتَرَكَهُۥ صَلۡدًا ۖ
چه په هغے باندِ (پرته) وی | خاوره | بیا ؤوریږی په هغے باندِ | تیز باران | پس پریږدی هغه | بالکل صفا
چه دَ پاسه پرے خاوره پرته وی ، دَ تیز باران شیبه پرے راشی ، او هوار صفائے پریږدی.
لَّا يَقۡدِرُونَ عَلَىٰ شَيۡءٍ مِّمَّا كَسَبُواْ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ
نهٔ شی حاصلولے هغه | څهٔ (ثواب) | دَ هغه څهٔ | چه هغهٔ ؤکړو | او الله | هدایت نهٔ کوی | قوم
(دغه شان) هغوئ به دَ هغوی دَ ګټے نه هیڅ په لاس نهٔ وړځی ، او الله ناشکری کوونکو ته هدایت
ٱلۡكَـٰفِرِينَ ﴿٢٦٤﴾ وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُمُ ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ
دَ کافرانو ته | او مثال | دَ هغو خلقو چه | خرچ کوی | خپل مالونه | دَ پاره دَ طلب | دَ رضامندئ
نهٔ کوی. او دَ هغو خلقو مثال چه خپل مالونه دَ الله دَ رضا حاصلولو او زړه ونو ته
ٱللَّهِ وَتَثۡبِيتًا مِّنۡ أَنفُسِهِمۡ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبۡوَةٍ أَصَابَهَا
دَ الله | او دَ پاره دَ پخولو | دَ خپلو زړونو | (داسے دے) لکه چه | یو باغ (دے) | په اوچته زمکه | چه ؤرسیلی هغے ته
دَ تقویت رسولو دَ پاره خرچ کوی، دَ هغه باغ په شان دے چه په یوه لوړه زمکه لګیدلے وی
وَابِلٌ فَـَٔاتَتۡ أُكُلَهَا ضِعۡفَيۡنِ فَإِن لَّمۡ يُصِبۡهَا وَابِلٌ
تیز باران | پس ؤئے نیولے میوے | غبرګے | پس که چرے | ؤنهٔ رسیدو هغے ته | تیز باران
دَ شیبو باران پرے ؤشی نو دوه چنده میوه ورکړی او که چرے دَ شیبو باران پرے ؤنهٔ شی

فَطَلٌّ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۶۵﴾ اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ

نو پونه (کافی ده) | او الله | څه چه | کوئ تاسو | ګوری | ایا خوښوی | په تاسو کښے څوک

نو کم نه کم پرښه خوږے پربوځی او الله ستاسو کارونه وینی ګوری . ایا په تاسو کښے به د چا دا خوښه شی

اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا

دا چه وی | د هغهٔ یو باغ | د قجورو | او د انګورو | چه بهیږی | د هغے نه لاندې

چه د هغهٔ یو باغ وی د قجورو او د انګورو چه د هغے لاندې نهرونه

الْاَنْهٰرُ ۙ لَهٗ فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۙ وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ

نهرونه | د هغهٔ د پاره وی په هغے کښے | هر قسم | میوے | او رسیدلے دی هغهٔ ته | بوډا والے | او د هغهٔ اولاد وی

بهیږی ، او هر قسم میوے ئے پیدا وی ، او دے پخپله بوډا وی او د دهٔ واړه ماشوم

ضُعَفَآءُ ۖ فَاَصَابَهَآ اِعْصَارٌ فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ

کمزوری | پس ورسیده هغے ته | سیلئ | چه په هغے کښے وی | اور | پس هغه وسوزی | دغه شان | بیانوی

ځامن ئے وی بیا (ناڅاپه) تیزه هوا وچلیږی چه په هغے کښے اور وی او (د هغهٔ) باغ وسوزی لا بره شی دغه شان

اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۶۶﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا ۳۶ ع ۴

الله | تاسو د پاره | ایتونه | د پاره د دے چه تاسو | فکر وکړئ | اے | مؤمنانو!

الله تاسو ته خپل قدرتونه ښائی چه تاسو په کښے فکر وکړئ . اے مومنانو!

اَنْفِقُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ اَخْرَجْنَا لَكُمْ

خرچ کړئ | د پاکیزه څیزونو نه | چه ګټلی دی تاسو | او د هغے نه چه | را ویستلی دی مونږ | تاسو د پاره

(د الله په لار کښے) د خپلے حلالے ګټے نه او د هغه (حلالو) څیزونو نه کوم چه مونږ تاسو د پاره د زمکے نه

مِّنَ الْاَرْضِ ۗ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيْثَ مِنْهُ تُنْفِقُوْنَ وَلَسْتُمْ

له زمکے نه | او اراده مهٔ کوئ | د ردی څیز | (چه) د هغے نه | خرچ کړئ | او نهٔ یئ تاسو

پیدا کړی دی خرچ کړئ او دا سے مهٔ کوئ چه د ناکاره مال نه خیراتی برخه وباسئ حالانکه تاسو پخپله

بِاٰخِذِيْهِ اِلَّآ اَنْ تُغْمِضُوْا فِيْهِ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ

اخستونکی د هغے | مګر | دا چه | تاسو سترګے پټے کړئ | په هغے کښے | او پوهه شئ | چه | الله | بے نیازه

د هغے اخستو ته تیار نهٔ یئ مګر هله چه سترګے پرے پټے کړئ او پوهه شئ چه الله بے نیازه او په هر

حَمِيْدٌ ﴿۲۶۷﴾ اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَاْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَآءِ ۚ

د تعریف لائق دے | شیطان | وعده کوی تاسو سره | د لاس تنګسیا | او حکم کوی تاسو ته | د بے حیائی

صفت ستائیلے شوے دے . شیطان تاسو د نیستئ نه ویروی او د ناکاره کارونو حکم درته کوی

وَاللّٰهُ يَعِدُكُمْ مَّغْفِرَةً مِّنْهُ وَفَضْلًا ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ

او الله | وعده کوی تاسو سره | د خپلے بخښنے | او د فضل | او الله | د فراخئ خاوند

او الله درسره د بخښنے او مهربانئ وعده کوی ، او هغه د فراخئ مالک دے

عَلِيمٌ ﴿٢٦٨﴾ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّؤْتَ الْحِكْمَةَ

پوهه دے | ورکوی | پوهه | چاته چه وُغواړی | او چاته چه | ورکړے شی | دانائی

او پوهه دے، چاته چه غواړی نو هغهٔ ته حکمت ورکوی ، او چا ته چه حکمت ورکړے شی

فَقَدْ اُوْتِيَ خَيْرًا كَثِيْرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾

بیشکه ورکړے شو هغه ته | خیر | ډیر | او نصیحت نهٔ قبلوی | مګر | عقلمند خلق

نو هغهٔ ته ډیر لوئے خیر ورکړے شو ـ او فقط دَ عقل خاوندان دَدِے خبرونه سبق اخلی ـ

وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ نَّفَقَةٍ اَوْ نَذَرْتُمْ مِّنْ نَّذْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُهٗ ۗ

او هغه څهٔ چه ورکړئ تاسو | له څهٔ خیرات نه | یا وُمنئ تاسو | څهٔ نذر | نو بیشکه | اللّٰه | پوهه دے په هغے

او هر څهٔ خیرات چه تاسو کوئ یا هر څهٔ منخته چه تاسو کوئ نو هغه اللّٰه ته معلومه ده.

وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٢٧٠﴾ اِنْ تُبْدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۚ

او نشته دے دَ ظالمانو | څوک مددګار | که چرے تاسو په ښکاره ورکوئ | خیرات | نو (هم) ښه خبره ده

او دَ ظالمانو هیڅوک مددګار نشته ، که تاسو خپلے صدقے څرګندے ورکوئ نو دا هم ښهٔ خبره ده

وَاِنْ تُخْفُوْهَا وَتُؤْتُوْهَا الْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۗ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ

او که چرے تاسو هغه پټوئ | او ورکوئ ئے | فقیرانو ته | نو هغه | غوره دے تاسو دپاره | او لرے به کړی | تاسو نه

او که پټ په پرده کښے ئے فقیرانو له ورکوئ ، نو درله بهتره ده او اللّٰه به ستاسو ډیر

مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿٢٧١﴾ لَيْسَ عَلَيْكَ

څخه ګناهونه ستاسو | او اللّٰه | دَ هغے نه چه تاسو کوئ | ښهٔ خبردار دے | نشته دے | ستا په ذمه

ګناهونه معاف کړی او اللّٰه ستاسو په عملونو ښهٔ پوهه دے ـ خلقو ته دَ هدایت ورکول

هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْا

دَ هغوی په لاره راوستل | لیکن | اللّٰه | هدایت کوی | چا ته چه وُغواړی | او هغه څهٔ چه | ورکوئ ئے تاسو

ذمه داری په تا نهٔ ده، بلکه اللّٰه چه چا ته غواړی هغهٔ ته هدایت کوی ـ او تاسو هر څهٔ چه خیرات

مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ۗ وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ اللّٰهِ ۗ

دَ مال نه | (هغه) هم دَ خپل ځان دَپاره (کوئ) | او نهٔ خرڅ کوئ تاسو | مګر | دَ غوښتلو دَپاره | دَ اللّٰه رضا

کوئ، نو دَ خپلے ښیګړے دَپاره ئے کوئ ـ او دا خیرات نو تاسو ځکه کوئ چه اللّٰه تعالیٰ درنه راضی شی

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تُظْلَمُوْنَ ﴿٢٧٢﴾

او څهٔ چه | تاسو خرڅ کوئ | دَ مال نه | پوره به درکړے شی | تاسو ته | او په تاسو باندِ ظلم وُنهٔ کړے شی ـ

او څهٔ چه تاسو خیرات کوئ هغه به درته (په دُنیا او اخرت کښے) پوره پوره واپس درکړے شی او په تاسو به ظلم نهٔ شی کو

لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

(دَ اخیرات) دَ هغه فقیرانو دَپاره دے کوم چه | بند کړے شوی وی | په لاره کښے | دَ اللّٰه

دا (خیراتونه) دَ هغے فقیرانو حق دے چه دَ اللّٰه تعالیٰ په لاره کښے ګیر شوی دی

لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِى الْاَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ

طاقت نهٔ لری | دَ سفر کولو | په زمکه کښې | گمان کوی په هغوی باندې | ناواقف | مالدار

(دَ کاروبار دَ پاره) چرته تلے راتلے نهٔ شی. ناخبره سړے دَ سوال نه کولو په وجه دَ مالدارو

مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْــَٔلُوْنَ النَّاسَ

دَ سوال نه دَ بچ کیدو په وجه | ته پیژندے شے هغوی | دَ هغوی دَ مخونو نه | هغوی سوال نهٔ کوی | دَ خلقو نه

گمان کوی ، ته دَ دوی دَ بشرے نه اصلی حال معلومولے شے دَ خلقو نه په رانښتلو سره سوال نه

اِلْحَافًا ؕ وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿٢٧٣﴾ اَلَّذِيْنَ

په نښتو سره | او څهٔ چه ورکوئ تاسو | دَ مال نه | پس بیشکه | الله | په هغې باندې | پوهه دے | هغه خلق چه

نهٔ کوی ، او تاسو چه هر څهٔ مال خیرات کوئ نو الله په هغې باندې ښهٔ خبر دے۔ خوک چه

يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً فَلَهُمْ

خرڅ کوی | خپل مالونه | دَ شپے | او ورځے | په پټه | او په ښکاره | پس هغوی دَ پاره

خپل مالونه دَ شپے او ورځے پټ او ښکاره خیرات کوی ، نو دَ هغوی

اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٢٧٤﴾

دَ هغوی اجر دے | دَ هغوی دَ رب سره | او نشته دے ویره | په هغوی باندې | او نه به هغوی غمژن شی.

اجر دَ هغوی دَ رب سره مقرر دے او نه په یرے چرے ویره راځی او نهٔ به غمژن کیږی.

اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِىْ

هغه خلق چه | خوری | سود | هغوی به راپانهٔ ځی | مګر | لکه څنګه | چه راپاځی | هغه کس

څوک چه سود خوری هغوی به نهٔ پاسی خو دَ هغه چا په شان چه شیطان په

يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا

چه لیونے کړے وی هغه | شیطان | لاس لګولو سره | دا | په دے وجه چه | دوئیل هغوی | بیشکه چه

لاس لګولو سره لیونے کړی وی۔ دا څکه چه هغوی وائی چه بیعه (خو هم) دَ

الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ؕ

سوداګری | په شان | دَ سود دی | او حالانکه حلاله کړه | الله | سوداګری | او حرام کړے لے دے | سود

سود په شان ده او دا عجیبه ده چه الله بیعه حلاله کړے ده او سود ئے حرام کړے دے

فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا

بیا چا ته چه ورسیدو | نصیحت | دَ خپل رب دَ طرف نه | پس هغه منع شو | نو هغهٔ دَ پاره دی | کوم چه

نو چا ته چه دَ خپل رب دَ طرف نه نصیحت راغلو او هغهٔ (دَ سود اخستلو نه) لاس واخستو نو پخوا

سَلَفَ ؕ وَاَمْرُهٗٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ

تیر شول | او دَ هغهٔ معامله | سپارلے شوے ده الله ته | او څوک چه | بیا (سود واخلی) | نو هم هغه دی

(سود) ورته معاف شو، او دَ هغهٔ معامله الله ته وسپارلے شوه او چا چه بیا سودی لین دین شروع کړو نو هم هغه



الربع ٥

وقف منزل

وقف لازم

أَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ (٢٧٥) يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي
دوزخیان | چه هغوی کښې به همیشه وی | بربادوی الله | سود لره | او ډیروی
دوزخیان دی چه همیشه به په کښې پراته وی الله سود بربادوی او صدقې

الصَّدَقٰتِ ۗ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ (٢٧٦) إِنَّ الَّذِينَ اٰمَنُوا
صدقې | او الله | نه خوښوی | هر ناشکره | ګناهکار | بیشکه | هغو خلقو چه ایمان راوړو
زیاتوی او الله هیڅ ناشکره او بدعمله بنده نه خوښوی. هغه خلق چه ایمان راوړی

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَأَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ لَهُمْ
او عملونه ئې وکړل | نیک | او قائم ئې کړو | مونځ | او ورئې کړو | زکوٰة | د هغوی دپاره ئې
او نیک کارونه کوی، او د مونځ پابندی ساتی، او زکوٰة ورکوی، نو د هغوی

أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ (٢٧٧)
د هغوی اجر | د هغوی د رب سره | او نشته دے | ویره په هغوی | او نه به هغوی غمژن شی.
اجر بیشکه خپل رب سره پروت دے، نه به په هغوی هیڅ قسم له ویره راځی او نه به غمژن وی

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا إِنْ
اے د ایمان خاوندانو! | اُو ویریږئ د الله نه | او پریږدئ څه چه باقی پاتے دی | د سود نه | که چرې
اے مؤمنانو! د الله نه اُو ویریږئ او باقی پاتے سود ونه پریږدئ، که چرې

كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ (٢٧٨) فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللّٰهِ
تاسو یئ | مؤمنان | بیا که چرې | ونه کړو تاسو دا کار | نو تیار شئ | جګړې ته | د الله
تاسو په رښتیا مؤمنان یئ. او که دا سے مو ونه کړل نو خبر شئ چه د الله او د هغه د رسول د اړخ نه

وَرَسُولِهٖ ۚ وَإِنْ تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُونَ
او د هغه د رسول سره | او که چرې تاسو توبه وکړئ | نو تاسو د پاره دی | اصل | مالونه ستاسو | نه به ظلم کوئ تاسو
تاسو ته د جنګ اعلان وشو. او که چرې تاسو (منع شئ او) توبه وباسئ نو خپل اصلی رقم ستاسو حق دے مه ظلم کوئ

وَلَا تُظْلَمُونَ (٢٧٩) وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلٰى مَيْسَرَةٍ ۚ
او نه به ظلم کیږی په تاسو | او که چرې | وی هغه | تنګ لاسے | نو مهلت ورکول پکار دی | ترغنی کیدو پورې
او مه ظلم زغمئ. او که د قرض دار لاس تنګ وی، نو د لاس ارتیدو پورې ورته وګورئ

وَأَنْ تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ (٢٨٠) وَاتَّقُوا
او که چرې صدقه وکړئ | غوره ده | تاسو له | که چرے | یئ تاسو | پوهیدونکی | او ووېریږئ
که چرې قرضه معاف کړئ نو دا تاسو د پاره غوره ده که تاسو پوهیږئ. او د هغې ورځې نه

يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللّٰهِ ۖ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ
د هغې ورځې نه | چه بیرته به وګرځولے شئ | په هغې کښې | الله طرف ته | بیا | به پوره ورکړے شی | هر یو کس ته
ویره وکړئ چه الله ته به واپس (مخامخ) کیږئ. بیا به هر چا ته د خپل کار

ع ٣٨ ٢ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٨١﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم

چه څه هغه کړي وي | او په هغوی به | ظلم نه شي کولے | اے د ایمان خاوندانو! | هر کله چه معامله کوئ د یو بل سره

(بدله) پوره پوره درکولے شي او هيڅ زياتے به پرے نه کيږي۔ اے مؤمنانو! هر کله چه تاسو تر يو مقرر

بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ۚ وَلْيَكْتُب بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ

د قرض | تر ټينې | مقرر وے پورے | نو وليکئ هغه | او پکار دي چه وليکي | ستاسو په مينځ کښے | ليکونکے

نيټے پورے د قرض لين دين کوئ ، نو هغه ليکئ ۔ او ستاسو په مينځ کښے د يو ليکوال په انصاف

بِالْعَدْلِ ۚ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَن يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ

په انصاف سره | او انکار دِ نه کوي | کاتب | د ليکلو نه | لکه څنګه چه | ښودلے دے هغه ته الله | پس پکار دي چه د ليکل

سره ليکل وکړي او ليکونکے دِ د ليکلو نه انکار نه کوي لکه څنګه چه الله ورته ښودنه کړے ده هغسے دِ وليکي

وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ

او املا دِ کوي | هغه بنده | په کوم چه | قرض دے | او وويريږي دِ | د الله نه | چه د هغه رب دے

او عبارت دِ ورته هغه (قرضدار) وائي د چا په ذمه چه قرض (حق) دے او هغه دِ د الله نه ويره وکړي چه د هغه رب دے

وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ

او نه دِ کموي | د هغے نه څه څيز | بيا که چرے وي | هغه څوک | چه پرے | قرض دے

او په معامله کښے دِ هيڅ کے نه کوي ، هو! که چرے هغه څوک د چا په ذمه چه حق (قرض) دے

سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ

بے عقله | يا | کمزورے | يا طاقت نه لري | د املا ويلو | پس املا دِ وائي

نادان يا کمزورے (ماشوم يا بوډا) وي يا ليکوال ته په خپله سم عبارت نه شي ويلے ، نو د هغه واکدار دِ ورته

وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ۚ وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ

واکدار د هغه | په انصاف سره | او ګواهان ونيسئ | دوه ګواهان | له خپلو سړو نه

په انصاف سره ښودنه وکړي۔ او په خپلو سړو کښے پرے دوه تنه (عادل) ګواهان ونيسئ

فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ

بيا که چرے نه وي | دوه سړي | نو يو سړے | او دوه ښځے | له هغه کسانو نه چه | تاسو پرِ رضامند يئ

او که دوه تنه سړي نه وي ، نو يو سړے او دوه ښځے دِ شي کوم چه د ګواهئ د پاره ستاسو

مِنَ الشُّهَدَاءِ أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا

له ګواهانو نه | د پاره د دے که چرے هيره کړي | يوه په هغوی کښے | نو ياده به کړي | يوه د هغوی نه

خوښ وي ، ځکه چه که د يوے ښځے نه (ګواهي) هيره شي ، نو يوه به ئے بلے ته

الْأُخْرَىٰ ۚ وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا ۚ وَلَا تَسْأَمُوا

دويمے ته | او نه دِ انکار کوي | ګواهان | په کوم وخت کښے چه را وبللے شي | او سستي مه کوئ

را ياد وي ۔ او ګواهانو له پکار دي چه (د ګواهئ د پاره) را وبللے شي نو انکار دِ نه کوي ، او معامله که د وړه

اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ ۭ ذٰلِكُمْ

چه وُلیکئ هغه (معامله) وړه وی | یا لویه | دِ دے میعاد پورے | ستاسو دا کار

دی یا لویه دَ دِے مقرر وخت پورے لیکلو کښے سُستی مه کوئ ، دا طریقه

اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَاَدْنٰٓى

ډیر دَ انصاف دے | په نزد دَ الله | او ښه درست ساتونکے دے | شهادت لره | او ډیر نزدے دے

دَ الله په نزد ښه دَ انصاف طریقه ده او شهادت دَ پاره هم ډیره مناسبه ده او دَ شک شُبهے نه بچ

اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا

دے نه چه نه شئ تاسو په شک کښے | مگر | دا چه | دی | تجارت | لاس په لاس | چه اخلئ راخلئ تاسو هغه

کیدو ته زیاته نزدے ده ، خو که لین دین په خپل مینځ کښے لاس په لاس

بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْهَا ۭ وَاَشْهِدُوْٓا

په خپل مینځ کښے | نو نشته | په تاسو | څه گناه | چه وُنه لیکئ تاسو هغه | او گواهان وُنیسئ

کوئ ، نو دَ دِے په نه لیکلو کښے په تاسو څه الزام نشته ، او دَ بیع په وخت

اِذَا تَبَايَعْتُمْ ۠ وَلَا يُضَاۗرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ڛ وَاِنْ تَفْعَلُوْا

کله چه تاسو سودا کوئ | او نه دِ شی ورکولے تکلیف | لیکونکی ته | او نه گواه ته | او که چرے تاسو دا سے وُکړی

کښے څوک نا څوک گواه نیسئ ۔ او نه دِ لیکونکی ته او نه گواه ته تکلیف ورکولے شی ۔ او که دا سے کوئ نو

فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۭ

نو بیشکه دا | گناه ده | په تاسو باندِ | او وُ ویریږئ | دَ الله نه | او زده کوی تاسو ته | الله

دا به ستاسو نافرمانی گڼلے شی ۔ او دَ الله نه ویره کوئ او الله تاسو ته (په خپل مینځ کښے دَ معاملاتو

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٢٨٢﴾ وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰي سَفَرٍ

او الله | په هر څیز باندِ | پوهه دے | او که چرے | تاسو یئ | په سفر باندِ

دَ درستگئ) تعلیم درکوی او الله په هر څه باندِ ښه پوهه دے ۔ او که چرے تاسو بهر په سفر یئ ، او

وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ۭ فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ

او نه بیا مومئ | لیکونکے | نو دَ گانړے څیز | په قبضه کښے ورکړئ | نو هر کله چه اعتبار وُکړی | په تاسو کښے څوک

لیکونکے مو ندے نه شئ نو دَ قبضے سره په گانړه (باندِ معامله) کوئ ، که چرے تاسو کښے څوک په بل باندِ

بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِي اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ

په بل باندِ | نو پکار دی چه ادا کړی | هغه چا سړی چه | امانت ایښودے شوے دے | خپل امانت | او وُدِ ویریږی

اعتبار وُکړی (او لین دین وُکړی) نو په چا چه اعتبار شوے دی هغه له پکار دی چه هغه خپل امانت پوره ادا کوی او الله نه

اللّٰهَ رَبَّهٗ ۭ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۭ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗٓ

دَ الله نه | چه دَ هغه رب دے | او مه پټوئ تاسو | گواهی | او څوک چه | پټه کړی دا | نو بیشکه

ډیره کوی چه دَ هغه رب دے او گواهی هیچرے مه پټوئ ۔ او چا چه گواهی پټه کړه (نو پوهه شه چه)

ع ٣٩ ٧
اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿٢٨٣﴾ لِلّٰهِ مَا

گناهګار دے | زړهٔ دَهغهٔ | او الله | په هغه څهٔ چه | تاسو کوئ | ښهٔ پوهه دے | هم دَ الله دَ | څهٔ چه

دَهغهٔ زړهٔ گناهګار دے او الله ستاسو په کارونو ښهٔ پوهه دے۔ په اسمانونو او په زمکه

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ

په اسمانونو کښے دی | او څهٔ چه | په زمکه کښے دی | او کهٔ ښکاره کوئ تاسو | څهٔ چه ستاسو په زړونو کښے دی

کښے هر څهٔ چه دی ټول دَ الله مال دے۔ او کهٔ تاسو دَ زړهٔ خبرے ښکاره کړئ یا ئے پټے

اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ۖ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ

یا پټ ساتئ هغه | حساب به کوی تاسو سره | په هغے باندے | الله | پس معاف به کړی | هغه څوک | چه وُغواړی

وُساتئ الله به ضرور درسره دَ هغے حساب کوی۔ نو دَ چا په حقله ئے چه خوښه شی هغه به وُبخښی

وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٨٤﴾

او عذاب به ورکړی | چا ته چه وُغواړی | او | الله | په هر څیز باندے | قادر دے۔

او دَ چا په حقله چه وُغواړی نو عذاب به ورکړی او الله تعالیٰ په هر څهٔ باندے قدرت لری۔

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ

ایمان راوړو | رسول | په هغه څهٔ چه | نازل کړے شو | هغهٔ ته | دَ هغهٔ دَ رب دَ طرف نه

پیغمبر په هغه کتاب باندے ایمان راوړے دے چه هغهٔ ته دَ خپل پروردګار دَ طرف نه راغلے دے

وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۗ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ

او ټولو مؤمنانو (هم) | هر یو | ایمان راوړے دے | په الله | او دَ هغهٔ په فرښتو | او دَ هغهٔ په کتابونو

او مؤمنانو هم۔ دے ټولو په الله، دَ هغهٔ په فرښتو، کتابونو او پیغمبرانو باندے ایمان

وَرُسُلِهٖ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۚ وَقَالُوْا

او دَ هغهٔ په رسولانو | مونږ فرق نهٔ کوو | په یو کښے هم | دَ هغهٔ په رسولانو کښے | او وُوئیل هغوی

راوړے دے (او هغوی وائیل چه) مونږ خو دَ الله په رسولانو کښے څوک یو دَ بل نه جُدا نهٔ ګڼړو۔ او هغوی وُوئیل

سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۫ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿٢٨٥﴾

واوریدل مونږ | او وُمنله مونږ | بخښنه غواړو له تانه | اے زمونږه ربه! | او ستا طرف ته | بیرته در تلل دی

چه مونږ (دَ الله حکمونه) واوریدل او قبول مو کړل۔ اے زمونږه ربه! مونږ تا نه بخښنه غواړو او تا ته به (آخر) در تلو.

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۗ لَهَا

نهٔ | ورکوی تکلیف | الله | هیچ کس ته | مګر | دَ هغهٔ دَ طاقت مطابق | هغهٔ دَ پاره دی

الله تعالیٰ هیچا ته دَ هغهٔ دَ وس نه زیات تکلیف نهٔ ورکوی، چا چه څهٔ نیکی

مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۗ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ

څهٔ نیک عمل ئے چه وُکړو | او هم په هغهٔ باندے | څهٔ خراب عمل ئے چه وُکړو | اے زمونږ ربه! | مهٔ نیسه مونږه

وُکړه دَ هغے ثواب به بیا مومی او چا چه بدی وُکړه دَ هغے سزا به وُخوری۔ (ایمان دالاهم داوائی) اے زمونږه ربه کهٔ

اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا

کہ چرے ہیر کړو مونږ | یا خطا ؤکړو مونږه | اے زمونږ ربه! | او مه ږده | په مونږ | بار دروند

مونږ نه ہیر شي یا مونږ خطا شو نو په دے مونږ نیسه اے زمونږه ربه! په مونږ دومره دروند بار مه اچوه

كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا

څنګه چه | ایښودے وو تا | په هغو خلقو باندې | چه مونږ نه وړاندې وو | اے زمونږ ربه! | او مه ږده په سر زمونږ

لکه زمونږ نه وړاندې چه دې په نورو خلقو اچولے وو، اے زمونږ ربه! داسے دروند بار

مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۥ وَاغْفِرْ لَنَا ۥ

هغه څه چه نشته دے طاقت | زمونږ | د هغه (د اوچتولو) | او عفوه ؤکړه | مونږ ته | او بخښنه ؤکړه | مونږ ته

راته په سر مه ږده چه مونږ ئے د اوچتولو طاقت نه لرو او زمونږ ګناهونه معاف کړه او مونږ ته بخښنه ؤکړه

ع ۴۰ ۸ وَارْحَمْنَا ۥ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝۲۸۶

او رحم ؤکړه په مونږ | هم ته یئے | مالک زمونږ | پس مدد ؤکړه زمونږ | په قوم د کافرانو

او په مونږ رحم ؤکړه، ته زمونږ مالک یئے نو د کافرانو په مقابله کښے مونږ له غلبه راکړه

سُوْرَةُ اٰلِ عِمْرٰنَ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | مِائَتَا اٰيَةٍ وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورة اٰل عمران مدنی دے او په دے | (شروع) د الله په نامه چه لوئے مهربان زیات رحم کوونکے دے | کښے دوه سوه ایتونه او شل رکوع دي

شروع کوم په نامه د الله چه ډیر مهربان ډیر زیات رحم کوونکے دے۔

الٓمّٓ ۝۱ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ ۝۲ نَزَّلَ

الٓمّٓ | هم الله دے | نشته دے بل معبود | سوا | د هغهٔ نه | هغه همیشه ژوندے | د ټولو قائم ساتونکے دے | نازل ئے کړو

اے خلقو! الله هغه (ذات) دے چه د هغهٔ نه سوا بل معبود نشته تل ژوندے دے ټول مخلوق سنبال ساتی، هغه

عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

په تا باندې | کتاب | په حق سره | تصدیق کوونکے دے | د هغه (کتابونو) چه وړاندې د دهٔ نه وو

په تا دا کتاب په حقه نازل کړے دے چه د هغه ټولو کتابونو تصدیق کوی چه د دے نه وړاندې راغلی دی

وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝۳ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ

او نازل کړے ئے دے | تورات | او انجیل | د دے نه وړاندې | هدایت (دے) | خلقو د پاره

او هغهٔ د دے نه وړاندې تورات او انجیل د خلقو د هدایت د پاره نازل کړی دی

وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۥ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

او نازل ئے کړو | (د په حق او باطل کښے) فرق کوونکے | بیشکه | کوم خلق چه | منکر دی | د الله د ایتونو،

او د حق او باطل بیلوونکے کتاب (قرآن) ئے رالیږلے دے نو بیشکه څوک چه (اوس هم) د الله د حکمونو منلو نه انکار

لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۥ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ۝۴ اِنَّ اللّٰهَ

هغوی د پاره | عذاب دے | سخت | او الله | زبردست دے | بدله اخستونکے | بیشکه | الله دے

کوی، هغوی ته به سخت عذاب ورکولے شي، او الله د اختیار خاوند دے او د بدو کارونو بدله ورکوی بیشکه د الله

لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ فِى الْاَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ٥
(چه) پټ نهٔ دے د هغهٔ نه | هيڅ څيز | په زمکه کښے | او نه | په آسمان کښے
نه د زمکے او د آسمان هيڅ څيز هم پټ نهٔ دے

هُوَ الَّذِىْ يُصَوِّرُكُمْ فِى الْاَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ
هم هغه دے | کوم چه | صورت جوړوی ستاسو | په رحمونو کښے | څنګه چه غواړی
الله هغه ذات دے چه ستاسو تصويرونه د مېندو په ګيډو کښے هغسے جوړوی څنګه ئے چه خوښوی

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ٦ هُوَ الَّذِىْٓ
نشته دے بل معبود | سوا د هغهٔ نه | (چه) غالب | د حکمت خاوند دے | هم هغه دے کوم چه
بے د هغهٔ نه بل معبود نشته په هر چا غالب دے د حکمت خاوند دے. هغه خدائے دے چه

اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ
نازل کړو | په تا باندې | (دا) کتاب | د کوم چه ځنے آيتونه | محکم دی | هغه | اصل د کتاب دی
اوس ئے په تا دا کتاب نازل کړے دے چه پکښے (دوه قسمه آيتونه دی) ځنے محکمات چه هغه د کتاب بنيادی آيتونه

وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ۭ فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِىْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ
او ځنے نور | متشابهات دی. | پس هغه خلق چه | په زړونو د هغوئ کښے | کوږ والے دے
دی او نور متشابهات دی نو د چا په زړونو کښے چه کږ ليچ وی نو هغوی

فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ
هغوی خو پيروی کوی | د هغو چه متشابه دی | له دے نه | د پاره د لټولو د فتنے | او د پاره د لټولو
د فتنے جوړولو په کوشش کښے په متشابه آيتونو پسے لټون کوی او هغے نه د معنو ا خستلو

تَاْوِيْلِهٖ ۚ وَمَا يَعْلَمُ تَاْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ۘ وَالرّٰسِخُوْنَ
د مراد د هغے | او نهٔ پوهيږی | په مراد د هغے | مګر | الله | او کوم چه پاخهٔ دی
کوشش کوی او د هغے په سم مطلب خو يوازے الله پوهيږی ، او څوک چه پاخهٔ

وقف النبی صلی الله علیه وسلم

فِى الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ
په علم کښے | هغوی وائی | مونږ ايمان راوړے دے په هغے | دا ټول | زمونږ د رب د طرف نه (دے)
عالمان دی نو هغوی وائی چه مونږ پرے ايمان راوړے دے. دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دی

وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ٧ رَبَّنَا لَا تُزِغْ
او نصيحت نهٔ قبلوی | مګر | خاوندان د عقل | اے ربه زمونږ | کاږهٔ مهٔ کړے
او (د دے خبرے نه خو) بس هوښيار خلق سبق اخلی. (او دا سوال کوئ چه) اے زمونږ ربه! زمونږ زړهٔ نه

قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ
زړونه زمونږه | پس له هغے نه | چه لاره دِ وُښودله مونږ ته | او راکړه مونږ ته | له طرف خپل نه
د هدايت موندلو نه پس په کږ ليچ مهٔ اخته کوه او مونږ ته د خپل طرف نه رحمتونه

رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ⑧ رَبَّنَا إِنَّكَ

رحمت | بیشکه هم ته یې | ډیر عطا کوونکے | اے زمونږه ربه ! | بیشکه ته

ډ بخښنه بیشکه ته ډیر ښه ورکوونکے یې۔ اے زمونږه ربه ! بیشکه ته په هغه ورځ

جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُخْلِفُ

جمع کوونکے د خلقو یې | په هغه ورځ | چه هیڅ شک نشته | په هغې کښې | بیشکه | الله | نه ماتوی

د ټولو خلقو رابوټلے کوونکے یې چه د هغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته۔ الله تعالیٰ هیڅرے د وعدے

الْمِيعَادَ ⑨ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ ع ٩

(خپله) وعده | یقینًا هغه خلق کوم چه | کافران دی | هیڅ کله به په کار رانه شی | د هغوئ | مالونه د هغوئ

خلاف نه کوی۔ چا چه کفر غوره کړے دے هغوی ته به د الله تعالیٰ په مقابله کښې نه

وَلَا أَوْلَادُهُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ⑩

او نه اولاد د هغوی | د الله په وړاندې | هیڅ (هم) | او هم هغوی دی | خشاک | (د) دوزخ

مال څه فائده ورکړی او نه اولاد ، هم دغه خلق به د دوزخ خشاک کیږی۔

كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوا

لکه چه معامله وه | د فرعون د قوم | او د هغو خلقو | چه د هغوی نه وړاندې وو | هغوی دروغ وګنړل

(د هغوی انجام به) د فرعون د ملګرو او د هغوی نه هم د پخوانو نافرمانو خلقو په شان (شی) چه زمونږ

بِآيَاتِنَا ۚ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ ⑪

زمونږ ایتونه | نو ونیول هغوی | الله | په وجه د ګناهونو د هغوی | او الله | سخت | عذاب ورکوونکے دے

ایتونه ئے دروغ وګنړل، نو الله تعالیٰ په خپلو ګناهونو کښې راونیول او الله تعالیٰ په عذاب ورکولو کښې ډیر سخت دے

قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ

ووایه | هغو خلقو ته چه | کافران دی | چه مغلوب به کړے شئ تاسو | او راټول به کړے شئ تاسو

چا چه (ستا نه) انکار کړے دے هغوی ته ووایه چه تاسو به ډیر زر مغلوب شئ او دوزخ ته به راغونډ

إِلَىٰ جَهَنَّمَ ۚ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ⑫ قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ

دوزخ طرف ته | او هغه بد | ځائے دے | بیشکه ده | تاسو د پاره | نخښه

کړے شئ۔ او هغه ډیر خراب ځائے دے۔ تاسو د پاره په هغې دوو ټولو کښې د عبرت

فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ۖ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

په هغه دوو ډلو کښې | چه سره مخامخ شوے دے | یوه ډله | جنګ کولو | په لاره کښې | د الله

سامان پروت وو (چه په بدر کښې) یو بل سره جنګیدلی وو، یو ټولی خو د الله تعالیٰ په لاره کښې جنګ کولو او بله

وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُمْ مِثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ ۚ

او بله (ډله) | (د) کافرانو (وه) | چه لیدل مسلمانانو هغه کافران | دوچند د خپل ځان نه | په لیدلو | د سترګو سره

ټولے د کافرانو وه ، مسلمانانو به په سترګو لیدل چه کافر د هغوی نه یو په دوه وو (خو د نتیجے نه

وَاللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً

او الله | قوت ورکوی | په خپل مدد سره | هغه چا ته چه وغواړی | بیشکه | په دے کښے | عبرت دے

او الله تعالیٰ دَ چا په حقله غواړی نو په خپل امداد سره دَ هغهٔ تائید کوی، په دے واقعه کښے دَ سترګو

ثابته شوه چه) الله تعالیٰ دَ چا په حقله غواړی نو په خپل امداد سره دَ هغهٔ تائید کوی

لِّاُولِى الْاَبْصَارِ ﴿١٣﴾ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ

دَ کتونکو | دَ پاره - | بنائسته کړے شوے دے | خلقو ته | محبت | (دَ) نفسانی خواهشاتو

خاوندانو له دَ عبرت سامان پروت دے ۔ خلقو ته نفسانی خواهشونه بنائسته کړے شوی دی

مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ

لکه ښځے | او ځامن | او خزانے | جمع شوے | (دَ) سرو زرو

لکه ښځے او ځامن (شول) دَ سرو او سپینو ډیری (شول)

وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ؕ ذٰلِكَ

او سپینو زرو | او اسونه | نخښے لګیدلے شوی | او څاروی | او فصل | دا (خو)

څاروی او پټے پټی (شول) اسونه (شول) شوی چوتړ دا دَ دُنیا دَ

مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿١٤﴾ قُلْ

سامان دے | دَ ژوند | دَ دُنیا | او الله | سره دے | ښهٔ ځائے دَ واپس ورتلو | وُوایه

ژوند سازوسامان دے ۔ او (دَ آخرت) ډیر ښهٔ ژوند خو هم دَ الله تعالیٰ سره دے ۔ (اے پیغمبره!)

اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا

آیا خبر درکړم زهٔ تاسو ته | (چه) ډیر ښهٔ (دے) | له دے نه | دَ هغو خلقو دَ پاره کوم چه | پرهیزګار دی

دوی ته وُوایه چه آیا زهٔ تاسو ته دَ دے (مال او اسباب) نه ښهٔ څیزونه وُښایم؟ څوک چه پرهیزګار دی هغوی دَ

عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا

دَ هغوی دَ رب سره | (هغه) باغونه دی | چه بهیږی به | لاندے دَ هغے نه | نهرونه | همیشه اوُسیدونکی به وی | په هغے کښے

پاره دَ خپل رب سره داسے باغونه تیار دی چه دَ هغے لاندے ولے بهیږی، هغوی به په دے کښے همیشه اوُسیږی

وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ

او ښځے (دی) | پاکیزه | او رضامندی | دَ الله | او الله | ښهٔ کوری

او پاکیزه بیبیانے به ئے ملګرے وی او الله تعالیٰ به ترے نه راضی وی او الله تعالیٰ دَ خپلو بندیانو

بِالْعِبَادِ ﴿١٥﴾ اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا

بندګانو (ته) | هغه خلق کوم چه | وائی | اے زمونږه ربه! | بیشکه مونږ | ایمان راوړے دے

عمل وینی کوری ۔ دا هغه خلق دی چه وائی اے زمونږه پاکه ربه! مونږ په تا ایمان راوړے دے

فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾ اَلصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ

پس معاف کړه مونږ ته | ګناهونه زمونږ | او وُساته مونږ | له عذاب دَ اور نه | چه صبر کوونکی | او رښتیا ویونکی

نو مونږ ته زمونږ ګناهونه وُبخښه او دَ اور دَ عذاب نه مو په امان وُساته ۔ دوی صابره (دی)، رښتینی (دی)

وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿١٧﴾
او فرمانبردار | او خرڅ کوونکی | اومعافی غوښتونکی دی | په وختونو دَ سحر کښے
فرمانبردار دی ، خیر خیرات کوی ، او د شپے په وروستی پاروتو کښے دَ بخښنے دُعاغواړی.

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ
ګواهی ورکړه الله | چه | نشته دے بل معبود | سوا دَ هغهٔ نه | او فرښتو | او علم والو (هم)
الله په دے خبره ګواه دے چه بغیر دَ هغهٔ نه بل خدائے نشته او فرښتے او عالمان هم په دے خبره ګواهان دی.

قَآئِمًاۢ بِالْقِسْطِ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٨﴾ؕ
(هغه) قائم (دے) | په انصاف باندِ | نشته بل معبود | سوا دَ هغهٔ نه | (چه) زبردست | دَ حکمت خاوند (دے)
(هم هغه دے کوم چه) په حق و انصاف سره کائنات سنبال کړی دی، بے دَ خدائے نه بل معبود نشته دَ اختیار او دَ حکمت خاوند دے.

اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۟ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِيْنَ
بیشکه دین (خو) | په نزد دَ الله | اسلام دے | او اختلاف ونهٔ کړو | هغو خلقو
بیشکه دَ الله په نزد (مقبول) دین یوازے اسلام دے. او اهلِ کتابو چه دَ علم رارسیدلو

اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ ؕ
کوموته چه ورکړے شوے وو کتاب | مګر | پس له هغے نه چه | راغلو هغوی ته | علم | دَ ضد نه | په مینځ دَ هغوی کښے
نه پس کوم اختلاف کړے دے دَ هغے وجه صرف داوه چه په خپل مینځ کښے ئے ضد بازی وه ،

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾
او څوک چه | انکار وُکړی | دَ الله دَ اَیتونو نه | پس بیشکه الله | زر حساب (اخستونکے دے)
او څوک چه دَ الله دَ حکمونو نه انکار وُکړی (نو هغهٔ ته دِ یاد وی چه) الله ډیر زر حساب اخستونکے دے.

فَاِنْ حَآجُّوْكَ فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ وَمَنِ
پس که چرے | جګړه کوی هغوی تا سره | نو ووایه | سپارلے دے ما | خپل مخ | الله ته | او هغه چا چه
نو کهٔ اوس هم دوی تاسره جګړه کوی نو ورته ووایه چه ما او زما پیروکارو دَ الله حکم ته غاړه

اتَّبَعَنِ ؕ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ؕ
پیروی ئے وُکړه زما | او ووایه | هغو خلقو ته (چا ته چه) | ورکړے شو کتاب | او نالوستونکو ته | آیا اسلام راوړے دے تاسو
ایښے ده. او دَ اهلِ کتابو او دَ امیانو (مشرکانو) نه تپوس وُکړه چه آیا تاسو هم دَ هغهٔ حکمونو ته غاړه ایښے ده؟

فَاِنْ اَسْلَمُوْا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا
پس که چرے | اسلام راوړو هغوی | نو بیشکه | بیا مونده هغوی سم لار | او که چرے | هغوی مخ واړولو | پس بیشکه
نو کهٔ غاړه ئے کیښوده نو سمه لار ئے بیا مونده. او کهٔ چرے نافرمانی ئے وُکړه (نو هغوی پریږده ځکه چه)

عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠﴾ ع اِنَّ الَّذِيْنَ
چه لازم دی په تا | پیغام رسول | او الله | ښهٔ ګوری | بندګانو ته | بیشکه هغه خلق (کوم چه)
په تا باندِ صرف (دَ حکمونو) رَسَوَل فرض دی او الله دَ بندګانو کار ونه وینی ګوری. یقیناً کوم خلق چه

النصف

ع ٢ / ١١ / ١٠

يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّيَقْتُلُوْنَ

انکارکوی | دَالله دَ اٰیتونو | او وژنی | پیغمبران | په ناحقه | او وژنی

دَالله دَحکمونو نه انکارکوی ، او په ناحقه پیغمبران وژنی ، او هر هغه خوک

الَّذِيْنَ يَاْمُرُوْنَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ ۙ فَبَشِّرْهُمْ

هغه خلق چه | حکم کوی | دَ انصاف کولو | له خلقو نه | پس زیرے ورکړه هغوی

وژنی چه د دَ خلقو ترمینځه) دَعدل او انصاف کولو حکم ورکوی ، نو دغه کسانو ته دَدردناک

بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝۲۱ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا

دَعذاب | دردناک | هم دا | هغه خلق دی | چه ضائع شول | عملونه دَ دوی | په دُنیا

عذاب زیرے ورکړه ۔ دا هغه (بد بخت) کسان دی چه په دُنیا او اٰخرت دواړو کښې ئے عملونه

وَالْاٰخِرَةِ ۫ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝۲۲ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ

او اٰخرت کښې | او نۀ به وی دَ دوی | څوک مدد ګار | آیا نۀ دی کتلی تا | هغو خلقو ته چه

عبث لاړل ۔ او دَ هغوی مدد ګاران هیڅوک هم نشته. (اے پیغمبره) آیا تا د دَ هغو خلقو په حال باندې

اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُدْعَوْنَ اِلٰى كِتٰبِ اللّٰهِ

ورکړے شوے دَ هغوی ته | یوه برخه | له کتاب نه | هغوی را بللے شی | دَ الله دَ کتاب طرف ته

غور نۀ دے کړے چا ته چه دَ کتاب (دَعلم) څۀ حصه ورکړے شوے دَه هر کله چه هغوی دَ الله کتاب ته په دے غرض

لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ وَهُمْ مُّعْرِضُوْنَ ۝۲۳

چه فیصله وُکړی هغه | په هغوی کښې | بیا | مخ ګرځوی | یوه ډله | له هغوی نه | او هغوی | مخ ګرځوونکی دی

رابللے شی چه دَ هغوی ترمینځه دَ جګړو فیصله وُکړی نو دَ هغوی یوه ډله تر ئے څنګ وُکړی او هغوئی همیشه دَحق نه مخ

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ

دا | ځکه چه هغوی | وائی | هیڅ کله به نۀ رسیږی مونږ ته | اور | مګر | څو ورځے | دَ شمیر

ګرځولے دے۔ دا ځکه چه دَ هغوئی دا خیال دے چه بغیر دَ شمیر دَ یو څو ورځو نه مونږ ته به هیڅکله دَ دوزخ اور نۀ رانزدے کیږی

وَغَرَّهُمْ فِيْ دِيْنِهِمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝۲۴ فَكَيْفَ اِذَا

او دوکه ورکړه هغوی ته | دَ هغوی په دین کښې | دَ هغوی له ځانه جوړو شوو خبرو | پس څۀ (حال به وی) هر کله چه

او دَ دین په معامله کښې هغوی دَ هغوئی خبرو په دوکه کښې اچولی دی کومے چه هغوی دَ ځانه جوړوی ۔ (غور وُکړئ) دَ هغوی

جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۣ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ

مونږ جمع کړو هغوی | په هغه ورځ | چه هیڅ شک نشته | په هغے کښې | او پوره به ورکړے شی | هر یو کس ته

به څۀ حال وی چه مونږ هغوی دَ قیامت په ورځ راجمع کړو دَ کوم په راتلو کښې په هیڅ شک نشته۔ او هر یو تن ته به دَ خپل عمل

مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝۲۵ قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ

کوم چه هغۀ عمل وُکړو | او (په) هغوی | به ظلم وُنۀ کړے شی | وُوایه | اے الله ! | اے مالکه دَ بادشاهئ

پوره پوره بدله ورکړے شی او په هغوی به بالکل ظلم نۀ کیږی (اے پیغمبره!) تۀ دَ ... به چه اے الله! دَ بادشاهئ واکداره

تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ ۡ
تهٔ ورکوے | حکومت | چاته چه غواړے | او واپس اخلے | حکومت | دَ چاته چه | غواړے
چاله چه غواړے حکومت ورکوے او دَ چانه چه غواړے حکومت اخلے ،

وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ ۭ بِيَدِكَ
او عزت ورکوے | چاته چه غواړے | او ذلت ورکوے | چاته چه غواړے | ستا په لاس کښے (دی)
او چاله چه ؤغواړے نو عزت ورکړے او څوک چه ؤغواړے نو ذلیل ئے کړے ، ټول خیر ستا په

الْخَيْرُ ۭ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٢٦ تُوْلِجُ الَّيْلَ
خیر | بیشکه ته ئے | په ټولو څیزونو | قادر | ته داخلوے | شپه
لاس کښے دے۔ بیشکه چه ته په هر څهٔ قدرت لرے۔ ته شپه په ورځ کښے

فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۡ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ
په ورځ کښے | او داخلوے | ورځ | په شپه کښے | او بهر ته راؤباسے | ژوندے
ننباسے ، او ورځ په شپه کښے ننباسے ، او دَ مړی نه ژوندے

مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ ۡ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ
له مړی نه | او راؤباسے | مړے | دَ ژوندی نه | او ته رزق ورکوے | چاته چه وغواړے
راؤباسے ، او دَ ژوندی نه مړے راؤباسے ، او چاله چه ؤغواړے بے حسابه

بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝٢٧ لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ
بے حسابه | بکار دا چه ؤنهٔ نیسی | مسلمانان | کافرانو لره | دوستان
روزی ورکوے۔ مؤمنان دِ کافران هیچرے خپل ځان له نهٔ دوستان کوی

مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ
بغیر له مؤمنانو نه | او څوک چه ؤکړی | داسے | پس نهٔ دے | دَ الله (دَ طرف نه)
بغیر له مؤمنانو نه ۔ او (یاد ساتئ) چا چه داسے ؤکړل دَ هغهٔ دَ الله سره هیڅ تعلق

فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۭ وَيُحَذِّرُكُمُ
په هیڅ څیز کښے | مګر | (په دے صورت کښے) چه تاسو له بچ کیدل وی دَ هغوی نه | دَ څهٔ ویرے نه | او ویروی تاسو
نشته ، مګر په دے صورت کښے (ظاهری تعلق ساتلے شئ) چه تاسو ته دَ هغوی دَ طرف نه څه ویره وی او (یاد ساتئ)

اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ۝٢٨ قُلْ اِنْ تُخْفُوْا
الله | دَ خپل ذات نه | او خاص دَ الله طرف ته | واپس تلل دی | ؤوایه | که چرے تاسو پټ ساتئ
چه الله تاسو دَ خپل ذات (دَ عظمت) نه ویروی او (اخر) هم الله طرف ته واپس تلل دی۔ (اے پیغمبره!) ورته ؤوایه چه که تاسو

مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭ وَيَعْلَمُ مَا
څهٔ چه | ستاسو په سینو کښے (دی) | یا هغه تاسو ښکاره کړئ | پوهه دے په هغے الله | او هغه پوهه دے | په هغه څهٔ
دَ خپل زړهٔ خبرے پټے ؤساتئ او که څرګندے ئے کړئ خو هغه خدائے ته معلومے دی۔ او په اسمانونو کښے

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ
چه په آسمانونو کښې (دي) | او څه چه | په زمکه کښې (دي) | او الله | په ټولو څيزونو
او په زمکه کښې هر څه چه دي ټول الله ته ښکاره دي ـ او الله په هر څه باندې پوره پوره
قَدِيْرٌ ۝٢٩ يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ
قادر دے | هغه ورځ چه | بيا به مومي | هر يو کس | څه چه | وُکړل هغه | له نيکئ نه
قدرت لرونکے دے ـ هغه ورځ (ياده لرئ) کله چه به هر يو نفس دَ خپلو نيکو کارونو نتيجه موجود
مُّحْضَرًا ۚ وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوْٓءٍ ۚ تَوَدُّ لَوْ
حاضر خپل وړاندې | او هغه څه چه کړي دي هغه | له بدئ نه | خوښوي به هغه | چه کاش (دي)
بيا مومي ـ او دَ خپلو بدو کارونو نتيجه هم ـ آرزو به کوي چه کاش!
اَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهٗٓ اَمَدًاۢ بَعِيْدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ
دَ هغه (بدئ) او دَ هغه ترمينځه | فاصله | اوږده | او وېروي تاسو | الله | له خپل ځان نه
دَ هغه او دَ دے ورځے ترمينځه يو اوږده موده وے ـ او الله تاسو دَ خپل ځان نه ډېروي ـ
وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ۝٣٠ قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ ع
او الله | ډېر مهربان (دے) | په بندګانو | وُوايه | که چرے تاسو | محبت ساتئ | دَ الله سره
او الله دَ خپلو بنديانو ډېر زيات خيرخواه دے ـ (اے پيغمبره!) وُوايه که چرے تاسو په رښتيا دَ الله سره مينه لرئ
فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ
نو زما پيروي وُکړئ | محبت به وُکړي تاسو سره الله | او معاف به کړي تاسو ته | ستاسو ګناهونه | او الله | بخښونکے
نو زما پيروي وُکړئ، الله به تاسو سره مينه وُکړي او ستاسو ګناهونه به وُبخښي، او الله بخښونکے
رَّحِيْمٌ ۝٣١ قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ
مهربان دے | وُوايه | حکم ومنئ | دَ الله | او دَ رسول | پس که چرے | مخ واړوي | پس بيشکه
مهربان دے ـ (دوي ته) وُوايه چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول حکمونه منئ ـ نو که دوي ترے نه په شَا شو
اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ ۝٣٢ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰٓى اٰدَمَ وَنُوْحًا
الله | نه خوښوي | کافران | بيشکه الله | غوره کړل | آدم | او نوح
نو الله دَ نافرمانو خلقو سره هيڅ کله مينه نه کوي ـ الله حضرت آدم او حضرت نوح او دَ
وَّاٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَاٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۝٣٣ ذُرِّيَّةًۢ
او خاندان دَ ابراهيم | او کورنئ دَ عمران | په عالمونو باندې | (چه) اولاد (دُو)
حضرت ابراهيم اولاد او دَ عمران صاحب اولاد دَ نورو ټولو خلقو نه غوره کړي دي ـ دا دَ يو بل
بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝٣٤ اِذْ قَالَتِ
دَ يو بل | او الله | اورېدونکے | پوهه دے | هر کله چه وُوئيل
سلسلے خلق دي او دَ يو بل دَ کورنئ دي او الله هر څه اورې په هر څه پوهه دے ـ (هغه اورېدل) کوم

معانقة ٣

اَمْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّىْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِىْ بَطْنِىْ
ښځې | دَ عمران | اے زما ربه! | بیشکه ما نذر وُمنلو | تا ته | څهٔ چه زما په ګېډه کښې دی
وخت چه دَ عمران ښځې وُوئیل چه اے زما ربه! زهٔ (دَ هغې ماشوم) ستا په نامه منښته کوم چه زما په ګېډه کښې پروت دے
مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّىْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿٣٥﴾
آزاد کړے شوے | پس قبول کړه | له ما نه | بیشکه تهٔ یئے | آورېدونکے | پوهه
هغه به (ستا کار ته) آزاد وی نو زما منښته قبوله کړه، تهٔ هر څهٔ آورې (او زما په نیت) ښهٔ پوهه یئے۔
فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّىْ وَضَعْتُهَآ اُنْثٰى ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ
پس هر کله چه | وُزیږوله دے هغه | نو وُوئیل هغې | اے زما ربه! | بیشکه ما وُزیږوله دا | جینۍ | او الله | پوهه دے
نو هر کله چه دَ هغې جینۍ وُزیږېدله نو وُئے وئیل اے زما ربه! دا خو مې لُور وُشوه۔ او الله ته ښهٔ معلومه ده
بِمَا وَضَعَتْ ؕ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى ۚ وَاِنِّىْ سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ
په هغه څهٔ چه دِے وُزیږېدلو | او نهٔ دے | هلک | پشان دَ جینۍ | او ما دَ هغې نوم کېښودو | مریم
چه دَ هغې څهٔ شوی دُو (هلک که جینۍ) او نارینه دَ زنانه په شان نهٔ وی، او ما په دِے باندې مریم نُوم کېښودو
وَاِنِّىْٓ اُعِيْذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿٣٦﴾
او بیشکه زهٔ | په پناه کښے ورکوم دا | ستا | او دَ دِے اولاد (هم) | له شیطان | مردود نه
او زهٔ دا جینۍ او دَ دِے اولاد دَ لعنتی شیطان دَ حملے نه ستا په پناه کښے ورکوم۔
فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُوْلٍ حَسَنٍ وَّاَنْۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ
پس قبوله کړه دا | رب دَ دِے | په قبلولو | ښو سره | او زرغونه ئے کړه دا | په زرغونولو | ښو سره۔
نو الله هغه جینۍ په ښهٔ شان سره قبوله کړه، او ډیره نیکه ئے لویه کړه۔
وَّكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ۙ
او په حواله ئے کړه دا | زکریا ته | هر کله چه به | داخلیدو | هغې ته | زکریا | په حُجره کښے
او زکریا علیه السلام ئے دَ هغې سرپرست کړو۔ هر کله چه به زکریا علیه السلام دَ هغې (مریم) کوټګۍ ته ورننوتو
وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ؕ
نو موندله به دهٔ | دَ هغې سره | روزی | وُوئیل ده | اے مریم! | له کوم ځائے نه ده تا له | دا (روزی)
نو هلته به ئے دَ هغې سره دَ خوراک څیزونه موندل، دَ هغې نه ئے تپوس وُکړو چه اے مریم! دا در سره دَ کوم ځائے نه
قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ
وُوئیل دے | دا | له طرفه دَ الله نه ده | بیشکه الله | روزی ورکوی | چاته چه وُغواړی
راغلی دی؟ هغې جواب ورکړو چه دا دَ الله دَ طرف نه راغلی دی، بیشکه الله چه چاله وغواړی نو بے حسابه روزی
بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾ هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ
بے حسابه | دغه وخت | دُعا وکړه | زکریا ؑ | دَ خپل رب نه | وُوئیل دهٔ | اے زما ربه!
ورکوی ـ په دغه وخت کښے حضرت زکریا ؑ دَ خپل رب نه سوال وُکړو وُئے وئیل چه اے زما ربه!

هَبْ لِیْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّیَّةً طَیِّبَةً ۚ اِنَّكَ سَمِیْعُ الدُّعَآءِ ۝۳۸

راکړه ماته | دَخپل طرف نه | اولاد | پاک | بیشکه ته یې اَورېدونکے | دَدُعا

ماله دَخپل دَرْ نه پاکیزه اولاد راکړه ، بیشکه ته دَ هرچا دُعا ګانې اَورې ـ

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ یُّصَلِّیْ فِی الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ

پس آواز وُکړو هغهٔ ته | فرښتو | او هغه | ولاړ وو | مونځ یې کولو | په محراب کښې | چه بیشکه | الله

دَدې په جواب کښې فرښتو ورته وُوئیل او هغه په محراب کښې په مونځ باندې ولاړ وو ، چه الله تا له دَ خوشخبرئ

یُبَشِّرُكَ بِیَحْیٰى مُصَدِّقًۢا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَسَیِّدًا

زیرے درکوی تا ته | دَ یحیٰیؑ | چه تصدیق به کوی | دَ یوې کلمې (عیسیٰؑ) | دَ الله | او سردار (به وی)

یحیٰیؑ (دَ پیدا کیدو) زیرے درکوی چه هغه به دَ خدائے دَ یوې کلمې (حضرت عیسیٰؑ) تصدیق کوی او سردار به وی

وَّحَصُوْرًا وَّنَبِیًّا مِّنَ الصّٰلِحِیْنَ ۝۳۹ قَالَ رَبِّ

او (نفس) منع کوونکے | او نبی | دَ نیکانو نه | عرض یې وُکړو | اے زما ربه!

او خپل نفس به په قابو کښې ساتی ، پیغمبر به وی او دَ نیکانو په ټولی کښې به شامل وی ـ (زکریاؑ) ووئیل ، اے الله !

اَنّٰى یَكُوْنُ لِیْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِیَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِیْ عَاقِرٌ ؕ

څنګه به وی | زما | هلک | او رسیدلے دے ماته | بوډاوالے | او زما ښځه | شنړه ده

ماکره به هلک څنګه پیدا شی ؟ زهٔ خو بوډا شوے یم ، او ښځه مې شنړه ده

قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ یَفْعَلُ مَا یَشَآءُ ۝۴۰ قَالَ رَبِّ اجْعَلْ

وُې فرمائیل | هم دغه شان | الله | کوی | څهٔ چه غواړی | وُې وئیل | اے زما ربه! | مقرر کړه

(فرښتې ورته) وُوئیل چه هم دغسې به کیږی ، الله چه څهٔ غواړی هغه کیږی ـ زکریاؑ ووئیل اے زما ربه ! ماله یوه

لِّیْۤ اٰیَةً ؕ قَالَ اٰیَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ

ما دَ پاره | (څهٔ) نخښه | وُې فرمائیل | نخښه ستا دا ده | چه خبرې به نهٔ شې کولے ته | دَ خلقو سره | درې

نخښه مقرره کړه (فرښتې) ووئیل چه تا دَ پاره دا نخښه شوه چه درې ورځې به دَ اشارے نه بغیر چا سره

اَیَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِیْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِیِّ

ورځې | مګر په اشاره | او یاد وه | ربّ خپل | ډیر | او تسبیح وایه | ماښام

خبرې نهٔ شې کولے او (په شکریه کښې) الله ډیر ډیر یاد وه ، او سحر ماښام دَ هغهٔ تسبیح

وَالْاِبْكَارِ ۝۴۱ ع وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ یٰمَرْیَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ ۴ ۱۲

او صبا | او هرکله چه | وُوئیل | فرښتو | اے مریم! | بیشکه الله | غوره کړے ته

بیانوه ـ او (دا هم یاد کړه) هرکله چه فرښتو ووئیل اے مریم ! الله ته غوره کړے یې او ته یې

وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِیْنَ ۝۴۲ یٰمَرْیَمُ اقْنُتِیْ

او پاکه یې کړې ته | او غوره یې کړې ته | په ښځو | دَ عالمونو باندې | اے مریم! | فرمانبرداری کوه

پاکه پاکیزه ساتلې یې او ته یې دَ دُنیا په ټولو ښځو باندې غوره کړې یې ـ اے مریم ! دَ خپل رب

لِرَبِّكِ وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ

دَ خپل رب | او سجده کوه | اورکوع کوه | رکوع کوونکو سره | دا | خبرونه دی

اطاعت کوه، هغه ته سجده کوه او څوک چه الله ته عاجزي کوي هغوی سره ته هم عاجزي کوه. (اے پیغمبره!) دا د غیبو

الْغَيْبِ نُوحِيهِ اِلَيْكَ ؕ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُونَ

دَ غیب | کوم چه مونږ وحي کوو | ستا طرف ته | او ته نهٔ وے | دَ هغوی سره | هرکله چه هغوی غورزول

خبرونه دی چه مونږ ئے تا ته په وحی درکوو او ته هغه وخت حاضر نهٔ وے چه (دَ هیکل) هغی (خادمانو) خپل خپل

اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۪ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ

خپل قلمونه | چه څوک به دَ هغوی نه | سرپرست وی | دَ مریم | او ته نهٔ وے | دَ هغوی سره

قلمونه په دے غرض غورزول چه څوک به دَ مریم سرپرست شی او ته هٔ وې سره هغه وخت موجود وے چه هغوی

اِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴿٤٤﴾ اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ

هغه وخت چه هغوی جګړه کوله | هرکله چه ووئیل | فرښتو | اے مریم! | بیشکه الله | زیرے درکوی تا ته

په خپل مینځ کښے جګړه کوله، څهٔ وخت چه فرښتو ورته ووئیل، اے مریم! الله تاله دَ خپل فرمان

بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ ۖق اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا

دَ خپل یو حکم | چه نوم دَ هغهٔ | مسیح | عیسیٰ | ځوئے دَ مریم دے | دَ مرتبے خاوند (به وی)

زیرے درکوی، دَ هغهٔ نوم به مسیح عیسیٰ ابن مریم وی په دُنیا او آخرت

فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾ وَيُكَلِّمُ النَّاسَ

په دُنیا او آخرت کښے | او له نزدے شوونه به وی الله | او هغه به خبرے کوی | دَ خلقو سره

دواړو کښے به عزتمند وی او الله ته به په نزدے خلقو کښے شمیروی او خلقو سره به په زانګو کښے

فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَّمِنَ الصّٰلِحِينَ ﴿٤٦﴾ قَالَتْ رَبِّ

په زانګو کښے | او په پوخ عمر کښے | او | وی به له نیکانو نه | هغې ووئیل | اے زماربه!

هم خبرے کوی او په زوړ والی کښے هم او دَ نیکو کارو نه به وی. حضرت مریمؑ ووئیل اے زماربه!

اَنّٰى يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ ؕ قَالَ

څنګه | به وی | زما | ځوئے | او | نهٔ دے رارسولے ما ته لاس | چا بنیادم | وُفرمائیل

زما به لا څنګه ځوئے کیږی ما ته خو چا نارینه لاس (تر دله) هم راوړے نهٔ دے. فرښتے وُوئیل

كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُولُ

هم دغه شان | الله | پیدا کوی | څهٔ چه وُغواړی | هرکله چه فیصله کوی | (دَ یو) کار | پس بیشکه چه | وائی

دغسے به کیږی الله چه څهٔ غواړی هغه پیدا کوی، هغه چه دَ یو کار فیصله وُکړی نو وی ته وُوائی. چه

لَهٗ كُنْ فَيَكُونُ ﴿٤٧﴾ وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ

هغه کار ته چه شه | پس هغه شی | او هغه به زده کوی هغهٔ ته | کتاب | او پوهه | او تورات

شه نو هغه کار وُشی. او هغهٔ ته به الله دَ کتاب، دَ حکمت دَ تورات او انجیل

وَالْاِنْجِيْلَ ﴿٤٨﴾ وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۙ۬ اَنِّىْ
او انجیل . | او رجوړ به کړی هغه) رسول | دَ بنی اسرائیلو طرف ته | چه ما
علم ورکړی. او دَ بنی اسرائیلو دَپاره به ئے رسول مقرر کړی (چه ورته به وائی) ما دَ الله
قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ اَنِّىْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ
راوړے دہ تاسو ته | نخښه | ستاسو دَ رب طرف نه | چه زهٔ | جوړوم | تاسو له
طرف نه تاسو ته یوه غټه نخښه راوړے دہ ، چه زهٔ ستاسو په وړاندې دَ خټې نه دَ
مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًاۢ
له خټې نه | په شان دَ شکل دَ مارغهٔ | بیا پُوکے کوم زهٔ | په هغې کښے | نو شی به هغه | مارغهٔ
مارغهٔ په شان یو شکل جوړوم ، بیا پکښے پُوکے ورکوم ، نو هغه به دَ خدائے په حکم
بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ وَاُحْيِ الْمَوْتٰى
په حکم دَ الله | او رغوُمه زهٔ | پیدائشی ړوند | او برگ | او ژوندی کوم | مړی
مارغهٔ شی ، او پیدائشی ړوند او برگ رغوم ، او دَ الله په حکم مړی
بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَاْكُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِىْ بُيُوْتِكُمْ
دَ الله په حکم سره | او خبر درکوم تاسو ته | څهٔ چه | تاسو خورئ | او څهٔ چه تاسو ذخیره کوئ | په خپلو کورونو کښے
ژوندی کوم او دا درته ښودلے شم چه تاسو څهٔ خوړلی دی او څهٔ مو په کورونو کښے ذخیره کړی دی
اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٤٩﴾
بیشکه | په دے کښے | نخښه دہ | تاسو دَپاره | که چرے | یئی تاسو | ایمان راوړونکی .
یقیناً په دے کښے تاسو دَپاره غټ دلیل موجود دے که تاسو پرے یقین کوئ .
وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَىَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَلِاُحِلَّ لَكُمْ
او تصدیق کوونکے | دَ هغه څهٔ چه | زمانه وړاندې دی | له تورات نه | او چه زهٔ حلال کړم | تاسو دَپاره
او (ځکه راغلے یم چه) دَ تورات تصدیق وکړم چه زما نه وړاندې (نازل شوے) وو . او دے دَپاره چه ځنے هغه
بَعْضَ الَّذِىْ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ وَجِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ
ځنے هغه (څیزونه) کوم چه | حرام کړے شوی وو | په تاسو | او ما راوړے دہ تاسو ته | نخښه
څیزونه چه تاسو باندې حرام کړے شوی ؤو حلال کړم او ما تاسو ته ستاسو دَ رب دَ طرف نه نخښه
مِّنْ رَّبِّكُمْ ۣ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿٥٠﴾ اِنَّ اللّٰهَ رَبِّىْ
ستاسو دَ رب دَ طرف نه | پس ووېرېږئ دَ الله نه | او زما حکم ومنئ | بیشکه | الله | زما رب
راوړے دہ ، نو دَ الله نه ووېرېږئ او زما پیروی وکړئ . الله زما هم رب دے
وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ۭ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٥١﴾ فَلَمَّآ اَحَسَّ
او ستاسو رب دے | نو عبادت وکړئ دَ هغهٔ | هم دا دہ | لار دہ | سمه | پس هر کله چه | محسوس کړو
او ستاسو هم رب دے نو دَ هغهٔ عبادت کوئ ، هم دا نیغه لار دہ . نو هر کله چه عیسٰی علیه السلام

عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِیْۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ
عیسیٰ | دَ هغوئ نه | انکار | (نو) وُوئیل | څوک دی زما مددګاران | دَ الله دَ پاره | وُوئیل
محسوس کړه چه بنی اسرائیل (زمانه) انکار کوی، نو هغهٔ ووئیل چه دَ الله په لار کښے څوک زما امداد کوی؟ حواریانو ورته
الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ وَاشْهَدْ بِاَنَّا
حواریانو | مونږ یُو | مددګاران دَ الله | مونږ ایمان راوړو | په الله | او ګواه شه ته | په دے چه مونږ
جواب ورکړو چه مونږ دَ الله (په لار کښے ستا) مددګار یُو، مونږ په الله ایمان راوړے دے او ته په دے خبره ګواه اوسه چه
مُسْلِمُوْنَ ۝٥٢ رَبَّنَاۤ اٰمَنَّا بِمَاۤ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا
فرمانبرداره یُو | اے زمونږ ربه! | مونږه ایمان راوړو | په هغه څهٔ چه | نازل کړو تا | او مونږ پیروی وُکړه
مونږ دَ الله حکمونو ته غاړه ایښے ده. اے الله! څهٔ چه تا نازل کړی دی زمونږ په هغے ایمان دے او مونږ دَ رسول پیروی
الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ۝٥٣ وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ؕ
دَ رسول | پس وُلیکه مونږه | دَ ګواهانو سره | او هغوی پټ تدبیر وُکړو | او الله هم پټ تدبیر وکړو
کړے ده نو مونږ هم دَ ګواهانو په فهرست کښے ځان سره وُلیکه. او بنی اسرائیلو (دَ عیسیٰ خلاف) پټ تدبیرونه وُکړل او
ع ٥ ١٣ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ۝٥٤ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰۤى اِنِّیْ مُتَوَفِّيْكَ
او الله | بهتر دے | له ټولو تدبیر کوونکونه | هرکله چه وُوئیل | الله | اے عیسیٰ! | بیشکه زهٔ ستا پوره پوره اخستونکے یم
الله (دَ هغوی مخالف) تدبیر اختیار کړو او الله د ټولو نه بهترین تدبیر کوونکے دے. (هغه واقعه یاد کړه) کله چه الله وفرمائیل اے عیسیٰ زهٔ به تا
وَرَافِعُكَ اِلَیَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَجَاعِلُ
او ستا اُچتونکے یم | خپل طرف ته | او پاکوونکے یم ستا | له هغه کسانو نه | چه کافر شول | او جوړوم به
واپس واخلم او خپل طرف ته به دِ راوخیژوم او دَ کافرانو (دَ تهمت) نه به دِ پاک کړم ، او ستا پیروی
الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْكَ فَوْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ
هغه خلق (چه) | ستا پیروی کوی | غالب | په هغو باندِ | چه کافر شول | دَ قیامت تر ورځے پورے
کوونکی خلق به تر قیامته پورے دَ منکرانو دَ پاسه کړم ، بیا ستاسو
ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُكُمْ فَاَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيْمَا كُنْتُمْ فِيْهِ
بیا | زما طرف ته | ستاسو واپس راتلل دی | بیا به زهٔ فیصله وُکړم | ستاسو په مینځ کښے | په هغه څهٔ کښے چه تاسو به په هغے کښے
(دَ ټولو) زما طرف ته واپس راتلل دی ، بیا به ستاسو په مینځ کښے دَ هغے خبرے فیصله وُکړم په کومه کښے چه
تَخْتَلِفُوْنَ ۝٥٥ فَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَاُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيْدًا
اختلاف کولو | پس | هغه خلق چه | کافر دی | هغوی له به عذاب ورکړم | عذاب سخت
تاسو دَ یو بل سره اختلاف کولو. نو چا چه کفر غوره کړے دے، هغوی له به په دنیا او آخرت دواړو کښے
فِی الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۫ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝٥٦ وَاَمَّا الَّذِيْنَ
په دُنیا کښے | او آخرت (کښے) | او نشته دے | دَ هغوی | څوک مددګار | لیکن | کوم خلق چه
سخته سزا ورکړم ، او هیڅوک به د هغوی امداد نهٔ کوی. او چا چه ایمان

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ؕ وَاللّٰهُ

ایمان راوړی | او عملونه ئے وکړل نیک | پس پوره به ورکړی (الله) هغوی ته | دَ هغوی اجرونه | او الله

راوړی دی او دَ نیکئ کارونه ئے وکړل نو هغوی له به الله پوره پوره اجرونه ورکړی ۔ او دَ الله

لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٧﴾ ذٰلِكَ نَتْلُوْهُ عَلَيْكَ مِنَ الْاٰيٰتِ

دوست نه لری | ظالمان | دا | مونږ تلاوت کوو | په تا باندې | چه آیتونه دی

بے انصافه خلق خوښ نه دی ۔ (اے پیغمبره!) دا چه مونږ تا ته اوروو ، دا (زمونږ) آیتونه او دَ

وَالذِّكْرِ الْحَكِيْمِ ﴿٥٨﴾ اِنَّ مَثَلَ عِيْسٰى عِنْدَ اللّٰهِ كَمَثَلِ اٰدَمَ ؕ

او ذکر دے | حکمت والا | بیشکه | مثال | دَ عیسیٰ | دَ الله په نزد | په شان دَ مثال دَ آدم دے

حکمت نه ډک نصیحتونه دی ۔ دَ عیسیٰ علیه السلام مثال دَ الله په نزد دَ آدم علیه السلام په شان دے ۔

خَلَقَهٗ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿٥٩﴾

پیدائے کړو هغه | له خاورونه | بیائے | ووئیل | هغه ته | (چه) شه | پس هغه شو ۔

الله هغه دَ خاورے نه پیدا کړو بیائے ورته ووئیل چه ژوندے شه نو هغه ژوندے شو ۔

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿٦٠﴾ فَمَنْ

دا (امر) حق دے | ستا دَ رب دَ طرف نه | پس مه کیږه ته | له شک کوونکو نه | پس څوک چه

دا رښتینے حقیقت دے چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه تا ته بیان شوے نو په دے کښے شک مه کوه ۔ نو څوک چه

حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ

جګړه کوی تا سره | په هغے کښے | پس له هغے نه چه | راغلو تا ته | علم | نو ووایه

تا سره په دے مسئله کښے دَ صحیح علم راتلو نه پس هم جګړه کوی نو ورته ووایه چه

تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ

راشئ | چه مونږ راوبلو | خپل ځامن | او ستاسو ځامن | او خپلے ښځے | او ستاسو ښځے

راځئ چه مونږ خپل ځامن راوبلو تاسو خپل ځامن ، مونږ خپلے ښځے راوبلو او تاسو خپلے ښځے

وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ ۫ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ

او خپل ځانونه | او ستاسو ځانونه | بیا به په زارئ دُعا وکړو | پس وُبه کړو مونږ | لعنت | دَ الله

او مونږ خپله هم موجود یُو او تاسو هم موجود یئ بیا الله ته په عاجزئ سره دا سے دُعا وکړو چه څوک دروغژن وی

عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ﴿٦١﴾ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ

په دروغژنو باندې | بیشکه | هم دا دے | بیان | رښتونے | او نشته دے بل څوک معبود

په هغوئ دِ الله لعنت وورَوی ، دا بالکل رښتینی واقعات دی ، او دَ الله نه سوا بل

اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٦٢﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّ اللّٰهَ

سوا دَ الله نه | او بیشکه الله دے | غالب | خاوند دَ حکمت | پس که چرے هغوی مخ واړولو | نو بیشکه | الله

معبود نشته ۔ او بیشکه چه الله په هر چا غالب دے او په هر کار کښے حکمت لری ۔ نو که دوی (دَ مقابلے نه) مخ وګرځوی نو

عَلِيْمٌۢ بِالْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٣﴾ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ ع ۹ ۱۴

بنهٔ پوهه دے | په تباکارو بانـدې | ووایه | اے اهل کتابو ! | راشئ | د یوے خبرے طرف ته

الله نه فسادیان خلق ډیر ښهٔ معلوم دی ۔ (اے پیغمبره ! دوی ته) ووایه چه اے اهل کتابو ! راشئ چه په یوه خبره

سَوَآءٍۢ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ

چه برابره ده | په مینځ زمونږ کښے | او په مینځ ستاسو کښے | چه عبادت به نهٔ کوو | سوا | دَ الله نه

(متفق شو) چه زمونږ او ستاسو تر مینځه برابره ده داچه مونږ دَ الله نه سوا دَ بل چا عبادت نهٔ کوو، نهٔ

وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ

او شریک به نهٔ جوړوو | دَ هغهٔ | هیڅ څیز | او نهٔ به جوړوی | بعضے زمونږه | نورو بعضے | پروردګاران | سوا دَ الله نه

دَ هغهٔ څوک شریک جوړکړو ، او بے له خدایه به په خپل مینځ کښے یو بل ته رب نهٔ وایو

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿٦٤﴾ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ

پس که چرے هغوی مخ واړوی | نو ووایه | ګواهان اوسئ | په دے چه مونږ مسلمانان یو | اے اهل کتابو !

نو که هغوی ترے نه مخ واړولو نو تاسو ورته ووایئ چه تاسو ګواه وسئ چه مونږ خو فرمانبرداریو ۔ ۴ اهل کتابو !

لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْۤ اِبْرٰهِيْمَ وَمَاۤ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ

ولے جګړه کوئ تاسو | دَ ابراهیم په حقله | او نهٔ دے نازل شوے | تورات | او انجیل

تاسو ولے دَ ابراهیم ؑ په حقله (مونږ سره) جګړے کوئ ؟ او تورات او انجیل دواړه خو دَ هغهٔ نه پس نازل شوی

اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٥﴾ هٰۤاَنْتُمْ هٰۤؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا

مګر | دَ هغهٔ نه پس | آیا نهٔ پوهیږئ تاسو | هله ! تاسو خو | هغه خلق یئ | چه جګړه وکړه تاسو | په هغه خبره کښے

دی ، آیا تاسو (دومره هم) نهٔ پوهیږئ ؟ په هغے مسئلو کښے خو تاسو بے جګړے وکړے په

لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ

دَ کومے چه تاسو ته علم وو | پس ولے جګړه کوئ تاسو | په هغے کښے | چه نشته دے تاسو ته | په هغے | پوهه

کومو چه تاسو (لږ ډیر) پوهیدئ، نو اوس په هغو مسئلو کښے ولے بحثونه کوئ چه تاسو ترے نه هډو څهٔ خبر نهٔ یئ، او

وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٦﴾ مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا

او الله پوهیږی | او تاسو | نهٔ پوهیږئ | نهٔ وُو | ابراهیم ؑ | یهودی

الله ډیر ښهٔ پوهه دے او تاسو نهٔ پوهیږئ ۔ ابراهیم علیه السلام نهٔ خو یهودی وو،

وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَمَا كَانَ

او نهٔ نصرانی | لیکن (هغه خو) وُو | په نیغه لاره | هم دَ الله حکم منونکے | او نه | وُو

او نهٔ نصرانی وُو بلکه هغه حق پرست او فرمانبرداره بنده وُو او هغه دَ

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٦٧﴾ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ

له شرک کوونکو نه | بیشکه | دَ ټولو خلقونه ډیر نزدے | ابراهیم ؑ ته | هغه خلق وو

مشرکانو نه نهٔ وو ۔ بیشکه ابراهیم علیه السلام ته دَ ټولو نه نزدے هغه خلق دی چا چه

اتَّبَعُوهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِينَ آمَنُوا ۗ وَاللّٰهُ

چا چه دَ هغهٔ پیروي کړې وه | او دا نبي (محمد ﷺ) | او هغو چه ایمان راوړی دی | او الله

دَ هغهٔ پیروي وُکړه، او دا پیغمبر او ټول مؤمنان ورته نزدې دي ۔ او الله تعالیٰ

وَلِيُّ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٨﴾ وَدَّتْ طَائِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ

دوست دې دَ مؤمنانو | غواړي | څه خلق | له اهل کتابو نه | چه کاش هغوی تاسو بې لارې کړي

دَ مؤمنانو مددګار دې ۔ دَ اهل کتابو یو ټولې غواړي چه د په څهٔ چل) تاسو ګمراه کړي (حال دا دې چه

وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٩﴾ يٰأَهْلَ الْكِتٰبِ

او نهٔ | بې لارې کوي هغوی | مګر | خپل ځانونه | او هغوی نهٔ پوهیږي | اې اهل کتابو

هغوی دَ غه شان) صرف خپل ځانونه ګمراه کوي او په دې هم نهٔ پوهیږي ۔ اې اهلِ کتابو!

لِمَ تَكْفُرُونَ بِآيٰتِ اللّٰهِ وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٧٠﴾ يٰأَهْلَ الْكِتٰبِ

ولې انکار کوئ تاسو | دَ الله دَ آیتونو نه | او تاسو | ګواه یئ | اې اهل کتابو!

تاسو ولې دَ الله دَ آیتونو نه انکار کوئ سره دَ دې چه تاسو دَ دې په صداقت باندې ګواه یئ اې اهلِ کتابو!

لِمَ تَلْبِسُونَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُونَ الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٧١﴾

ولې ګډوډ کوئ | حق | دَ باطل سره | او پټوئ | حق | او تاسو پوهه یئ ۔

تاسو حق او باطل په خپل مینځ کښې ولې ګډوډ کوئ او سره دَ علمه حق پټوئ ۔

وَقَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ آمِنُوا بِالَّذِي أُنزِلَ

او وُوئیل | یو ډلې | دَ اهل کتابو نه | (چه) ایمان راوړئ | په هغه څهٔ چه | نازل شوی دی

او دَ اهل کتابو یو ټولې وُوئیل ، چه په مسلمانانو باندې کوم (کلام) نازل

عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوا آخِرَهُ لَعَلَّهُمْ

په مسلمانانو | په اول دَ ورځ کښې | او انکار وُکړئ | په آخر دَ ورځ کښې | چه هغوی

شوې دې ، په هغې باندې دَ سحر وخت کښې ایمان راوړئ او ماښام ترې نه بیا انکار وُکړئ ۔ ممکنه ده چه

يَرْجِعُونَ ﴿٧٢﴾ وَلَا تُؤْمِنُوا إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ قُلْ

راوُګرځي | او مهٔ یقین کوئ | مګر دَ هغه چا چه | پیروي کوي | ستاسو دَ دین | وُوایه

(هغه مسلمانان ستاسو په دې چال سره دَ خپل دین نه) واوړي او صرف دَ هغهٔ خبره منئ چه ستاسو دَ دین پیروي کوونکې دی (ته

إِنَّ الْهُدَىٰ هُدَى اللّٰهِ أَن يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِّثْلَ مَا أُوتِيتُمْ

بیشکه | هدایت (خو) | دَ الله هدایت دې | دا چه ورکړې شي | چاته | په شان | دَ هغه څه چه درکړې شوي تاسو

وُوایه چه اصل هدایت خو دَ الله هدایت دې (دا انکار تاسو یهود دَ حسد په وجه کوئ) چه بل چا ته هم هغسې دین

أَوْ يُحَاجُّوكُمْ عِندَ رَبِّكُمْ ۗ قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ

یا هغوی جګړه وُکړي تاسو سره | ستاسو دَ رب په نزد | وُوایه | بیشکه | بزرګي | دَ الله په لاس کښې ده

ورکولې شي څنګه چې تاسو له درکړې شوي یا دا چه (دا مسلمانان) به تاسو دَ الله په وړاندې غالب راشي (ته هم) وُوایه چه فضل خو دَ الله

يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾ يَّخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ

درکوی هغه | چا ته چه وُغواړی | او الله | ډیر وُسعت والا | علم والا دے | مخصوص کوی | په خپل رحمت سره

په لاس کښے دے، چا له چه غواړی درکوی ، او الله لوئے وسعت او لوئے علم والا دے۔ هغه چه د چا په حقله وغواړی نو

مَنْ يَّشَآءُ ۭ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٧٤﴾ وَمِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

څوک چه وُغواړی | او الله | دَ لوئے فضل خاوند دے | او دَ اهلِ کتابونه (ځنې)

خپل رحمت ور پورے خاص کړی او دَ الله فضل ډیر لوئے دے ۔ او په اهلِ کتابو کښے داسے (امانتګر هم)

مَنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُّؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ ۚ وَمِنْهُمْ

دا کس دے چه که چرے امانتګر کړے ئے هغه | په خزانه | (نو) ادا به کړی هغه | تا ته | او ځنې له هغوی نه

شته که ته ورسره دَ مال یو ډیر امانت کیږدے نو هم به ئے درته پوره پوره درکړی او څوک په کښے داسے (بے اعتباره)

مَّنْ اِنْ تَاْمَنْهُ بِدِيْنَارٍ لَّا يُؤَدِّهٖٓ اِلَيْكَ اِلَّا

هغه کس دے چه که چرے امانتګر کړے ته هغه | په یو دینار | نو هغه به ادا نه کړی | تا ته | مګر (دا چه)

دی چه که دَ یو اشرفئ اعتبار پرے وکړے نو تر هغے به ئے نه درکوی ترڅو چه هر وخت ورته

مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَاۗىِٕمًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْا لَيْسَ عَلَيْنَا

ته یې (دَ) هغه (په سر) باندِ | ولاړ | دا | ځکه چه هغوی | وائی | نشته دے | په مونږ باندِ

دَ سر دَ پاسه ولاړ نه یې ـ دا ځکه چه دَ هغوئ دا خیال دے چه دا امیانو (دَ عربو مشرکانو) په حقله په

فِي الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ

دَ امیانو په حقله | (څه) ګناه | او وائی هغوی | په الله باندِ | دروغ | او هغوی

زمونږ نه هیڅ تپوس پوښتنه نه کیږی ، او (په داسے وئیلو) هغوی په الله باندِ غټ دروغ وائی او بنه

يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٥﴾ بَلٰي مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ

پوهه دی | هنه ! | څوک چه | پوره کوی | خپله وعده | او پرهیزګاری کوی | نو بیشکه | الله

پرے پوهیږی ۔ هنه ! هر څوک چه خپله وعده پوره کوی او دَ الله نه ویریږی نو یقین سانئ چه دَ الله

يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿٧٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ

خوښوی | پرهیزګاران | بیشکه | هغه خلق چه | اخلی | دَ الله په وعده او دَ خپلو قسمونو بدله کښے

داسے پرهیزګاران خوښ وی ۔ بیشکه څوک چه دَ الله سره کړے وعدے او خپل قسمونه په لږو پیسو

ثَـمَنًا قَلِيْلًا اُولٰۗىِٕكَ لَا خَلَاقَ لَھُمْ فِي الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُھُمُ

قیمت | لږ | هم دا (خلق) دی | دَ کوم چه په څه برخه نه وی | په اٰخرت کښے | او نه به خبرے کوی هغوی سره

خرڅ کړی، نو دَ هغوی دَ پاره په اٰخرت کښے هیڅ برخه نشته ، او الله تعالیٰ به

اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ۠ وَلَھُمْ

الله | او نه به وګوری | هغوی ته | په ورځ دَ قیامت | او نه به پاک کړی هغوئ | او هغوی دَ پاره دے

دَ قیامت په ورځ ورسره خبرے نه کوی او نه به ورته ګوری او نه به ئے (دَ ګناهونو نه) پاک کړی او دَ هغوئ

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٧٧﴾ وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ

عذاب | دردناک | او بیشکه | دَ هغوی نه | یو تولے دے | چه تاوَدی | ژبے خپلے

دَپاره دردناک عذاب دے۔ او په دوی کښے یوه ډله داسے هم شته چه دَ کتاب لوستلو په وخت کښے پرے ژبه

بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ

دَ کتاب (په لوستلو) | چه تاسو ګڼړئ دَ هغوی وینا | له کتاب نه | او نهٔ ده | هغه (حصه) | دَ کتاب

تاؤ راتاؤ کړی چه تاسو ګمان وُکړئ چه مکنی کتاب وائی ، او هغه دَ کتاب خبره نهٔ وی

وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَيَقُوْلُوْنَ

او وائی | (چه) دا دَ الله دَ طرف نه دے | او نهٔ دے هغه | دَ الله دَ طرف نه | او وائی

او هغوی وائی چه (مونږ څهٔ وایو) هغه دَ الله دَ طرف نه راغلے خبره ده او (په حقیقت کښے) دَ الله دَ طرف نه راغلے نهٔ وی او

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿٧٨﴾ مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ

په الله باندِ | دروغ | او هغوی | پوهیږی | نشته (حق) | دَ یو بشر | چه ورکړی هغهٔ ته | الله

هغوی په الله باندِ سره دَ علمه دروغ تړی۔ دَ هیڅ بنیادم دا کار نهٔ دے چه الله خو ورله دروغ

الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا

کتاب | او حکم | او پیغمبری | بیا هغه وائی | خلقو ته | (چه) شئ

کتاب خپل حکومته او پیغمبری ورکړی او بیا هغه دِ خلقو ته وائی چه تاسو دَ الله په ځلے

عِبَادًا لِّیْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُوْنَ

زما بندګان | سوا دَ الله نه | لیکن (هغه خو به وائی) شئ تاسو خدائی خلق | په سبب دَ هغے چه تاسو زده کولو خلقو

زما بندګان شئ ، بلکه هغه خو به دا وائی چه تول په ریښتیا خدائی خلق شی لکه څنګه چه دا کتاب ښائی کوم

الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ﴿٧٩﴾ وَلَا يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا

کتاب | او په سبب دَ لوستلو ستاسو دَ هغے | او نهٔ به هغه تاسو ته حکم درکوی | چه جوړ کړئ

چه تاسو نورو خلقو ته هم ښایئ او په خپله ئے هم لولئ۔ او هغه به چرے تاسو ته دا نهٔ وائی چه فرښتے

الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا ؕ اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿٨٠﴾ ع ٨/١٦

فرښتے | او نبیان | پروردګاران | آیا حکم به کوی تاسو ته | دَ کفر | پس دَ هغے نه چه | تاسو شوی یئ مسلمانان

او پیغمبران په خدا ئی ومنئ۔ دا کله کیدے شی چه یو پیغمبر دِ تاسو ته دَ اسلام راوړلو نه پس دَ کفر کولو حکم

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ

او هر کله چه واخستلو الله | پخه وعده | دَ نبیانو نه | څهٔ چه ما درکړل تاسو ته | له کتاب نه

درکړی ، او یاد کړه چه الله دَ پیغمبرانو نه وعده اخستے ده ، چه او س ما تاسو ته کتاب او حکمت درکړے

وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ

او حکمت نه | بیا راشی تاسو ته | څوک رسول | چه تصدیق وُکړی | دَ هغه (کتاب) | کوم چه تاسو سره دے

دے۔ نو چه بیا یو بل پیغمبر راشی چه ستاسو دَ تعلیم تصدیق کوی ، نو تاسو

لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ۭ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ

نو خامخا به ایمان راوړئ په هغه باندې | او خامخا به د هغه مدد کوئ | وې فرمایل | آیا تاسو اقرار کړے دے؟ | او قبوله کړه تاسو

به خامخا په هغه ایمان راوړئ او خامخا به د هغه امداد کوئ (بیا) الله تعالیٰ وفرمائیل آیا تاسو اقرار کوئ او زما

عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ ۭ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ۭ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ

په دے باندې | زما وعده | هغوی ووئیل | مونږ اقرار وکړو | وې فرمائیل | نو اوس گواه اوسئ | او زۀ ستاسو سره

دا وعده قبلوئ؟ هغوی ووئیل مونږ اقرار کوؤ الله تعالیٰ وفرمائیل تاسو (ټول د یو بل) گواه اوسئ او

مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٨١﴾ فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰۗىِٕكَ ھُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٨٢﴾

په گواهانو کښے یم | بیا څوک چه | مخ واړوی | د دے نه پس | پس هم دا خلق | نا فرمانه دی۔

زۀ هم تاسو سره په گواهانو کښے یم۔ بیا څوک چه د دے نه پس هم مخ واړوی نو هم دا سے خلق نافرمانه دی

اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗٓ اَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ

بیا آیا د الله د دین نه سوا (بل دین) | دوئ غواړی | او د هغه فرمانبردار دی | څوک چه په آسمانونو

نو آیا د الله تعالیٰ د دین نه سوا دوی څۀ بل لا غواړی، حال دا دے چه د آسمانونو او د مزکو ټول مخلوق

وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿٨٣﴾ قُلْ اٰمَنَّا

او زمکه کښے دی | په خوښه | او نا خوښه | او د هغه طرف ته به | هغه ټول ورگرځولے شی | ووایه | مونږ ایمان راوړو

په خوښئ یا په زور د هغه تابع دی او ټول به آخر هغۀ ته ورگرځی۔ (اے پیغمبره!) ووایه چه مونږ خو

بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ عَلٰٓي اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ

په الله | او په هغه څۀ | چه نازل شوی دی | په مونږ | او په هغے باندې چه نازل شوی دی | په ابراهیمؑ | او اسماعیلؑ

په الله ایمان راوړے دے او کوم چه په مونږ نازل کړے شول په هغے باندې او څۀ چه په ابراهیمؑ، اسماعیلؑ

وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى

او اسحاقؑ | او یعقوبؑ | او د هغۀ په اولاد باندې | او په هغے باندې چه ورکړے شول | موسیٰؑ | او عیسیٰؑ

اسحاقؑ یعقوبؑ او د هغۀ په اولاد باندې نازل شول او څۀ چه موسیٰؑ عیسیٰؑ او

وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۠ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۡ وَنَحْنُ

او ټولو پیغمبرانو ته | د هغوئ د رب د طرف نه | فرق نۀ کوو مونږ | په مینځ د هیڅ یو کس کښے | له هغوئ نه | او مونږ

نورو پیغمبرانو ته د هغوی د رب طرف نه ورکړے شول (مونږ په ټولو باندې ایمان ساتو) مونږ په هغوی کښے یو د بل نه جدا نۀ کړو

لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿٨٤﴾ وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ

هم د هغۀ حکم منونکی یو | او څوک چه غواړی | سوا د اسلام نه | بل دین | پس هیڅ کله به قبول نۀ کړے شی

او د الله هر حکم ته مو غاړه ایښے ده او څوک چه د اسلام نه سوا بل دین اختیاروی نو د هغۀ دغه دین به

مِنْهُ ۚ وَھُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٨٥﴾ كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ

د هغۀ نه | او هغه به | په آخرت کښے | نقصان مونډونکو نه (وی) | څنگه به | هدایت کوی | الله

هیچرے قبول نۀ کړے شی او هغه به په آخرت کښے تاوان ہاتے شی۔ دا څنگه کیدے شی چه الله تعالیٰ به هغو خلقو

قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْٓا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ
داسے خلقوته | چه كافران شول | پس د هغوی د ايمان راوړونه | او هغوی ګواهي وركړه | چه | (دا) رسول | برحق دے
ته هدايت وكړى چا چه د ايمان راوړونه پس بيا كفر اختيار كړو او كومو چه اقرار كړے وو چه رسول برحق دے
وَّ جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٦﴾
او راغلى دى دوى ته | واضح دليلونه | او الله | هدايت نه كوى | قوم | د ظالمانو ته
او څرګند دليلونه وى ته هم راغلل او الله تعالیٰ ظالمانو خلقو ته هدايت نه كوى.
اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ اَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿٨٧﴾
هم د داسے خلقو سزا داده | چه په هغوى دى | لعنت | د الله | او د فرښتو | او د ټولو خلقو
د داسے خلقو سزا هم داده چه په هغوى باندے د الله، فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دى.
خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ ﴿٨٨﴾
هميشه به دى هغوى | په هغے كښے | نه به شى سپكولے | له هغوى نه | عذاب | او نه به هغوى ته مهلت وركړے شى
هم په دے كښے به هغوى هميشه وى او د هغوى به عذاب كښے به هيڅ كے نه دى او نه به ورته مهلت وركولے شى
اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ وَاَصْلَحُوْا ۟ فَاِنَّ
مګر | كومو چه | توبه وكړه | پس له دے نه | او نيك كارونه ئے وكړل | نو بيشكه
هو! كومو خلقو چه د دے نه پس توبه وكړه او د خپل ځان اصلاح ئے وكړه نو الله
اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٨٩﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ
الله | معافى كوونكے | مهربان دے | بيشكه | هغه خلق چه | كافر شول | پس د خپل ايمان راوړونه
بخښونكے مهربان دے. چا چه د ايمان راوړو نه پس كفر خوښ كړو، بيا په كفر
ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّنْ تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ ۚ وَاُولٰٓئِكَ
بيا | زيات شول هغوى | په كفر كښے | هيڅ كله به قبوله نه كړے شى | توبه د هغوى | هم هغه دى
كښے مخ په وړاندے لاړل نو د هغوى توبه به هيڅ كله نه قبليږى. او هم دغه
هُمُ الضَّآلُّوْنَ ﴿٩٠﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ
ګمراهان | بيشكه | كوم خلق چه | كافر شول | او مړه شول | او هغه | هم كافران ؤ
كسان ګمراهان دى يقينًا چا چه كفر اختيار كړو او د كفر په حالت كښے مړه شول.
فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْ اَحَدِهِمْ مِّلْءُ الْاَرْضِ ذَهَبًا وَّلَوِ افْتَدٰى
نو هيڅ كله به قبول نه كړے شى | له هيڅ يو كس د هغوى نه | په مقدار د ډكوالى د زمكے | سره زر | او اګر چه | په فديه كښے وركول ئے غواړي
نو كه په هغوى كښے يو بوتن ټوله زمكه د سرو زرو نه ډكه كړى او د فديئے په طور ئے پيش كړى نو هم به قبوله
بِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ وَّمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿٩١﴾ ع ٩ / ١٧
هغه | هم دا خلق دى | د كومو د پاره | چه به عذاب | دردناك وى | او نه به وى د هغوى | څوك مدد ګار
نه شى، د هغوى د پاره دردناك عذاب مقرر دے او هيڅوك به ئے امداد نه كوى.

لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۬ؕ

هیڅ کله به حاصل نه کړئ تاسو | نیکي | تر هغې پورې | چه تاسو خیرات کړئ | له هغه څه نه چه | خوښوئ یې تاسو

تاسو (پوره) نیکي هیڅکله حاصلولے نه شئ ترڅو چه تاسو خپل غوره شیزونه خیرات نه کړئ

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَیْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِیْمٌ ﴿۹۲﴾ كُلُّ الطَّعَامِ

او هغه څه چه خرچ کوئ | د څه شیزنه | نو بیشکه | الله | په هغې باندې | پوهه دے | ټول د خوراک (شیزونه)

او هر شیز چه تاسو خیرات کوئ نو هغه الله ته ښه معلوم دی ـ د خوراک ټول شیزونه (چه

كَانَ حِلًّا لِّبَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ اِلَّا مَا حَرَّمَ اِسْرَآءِیْلُ عَلٰی نَفْسِهٖ

حلال وُو | بنی اسرائیلو د پاره | مګر کوم چه حرام کړے وو | (یخپله) یعقوب | په خپل ځان باندې

مسلمانانو له حلال دي هغه) بنی اسرائیلو له هم حلال وو مګر کوم شیزونه چه یعقوبؑ یخپله په ځان حرام کړی وو.

مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَاۤ

وړاندې (د دے نه) | چه نازل کړے شوے وو | تورات | ووایه | راوړئ | تورات | پس ویې لولئ

او (داخبره) د تورات نازلیدو نه وړومبے (شوے وه) درته ووایه چه ښه ده تورات راوړئ او هغه ولولئ

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ ﴿۹۳﴾ فَمَنِ افْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ الْكَذِبَ

که چرې | یئ تاسو | رښتیا ویونکي | پس څوک چه | وتړی | په الله باند | دروغ

که تاسو رښتینی یئ ؟ د دے نه پس هم چه څوک په الله تعالیٰ باندې

مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَاُولٰٓىِٕكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۹۴﴾ قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ۫

پس له دے نه | پس هم دغه دی | ظالمان | ووایه | رښتیا وویل | الله

دروغ وتړی ، هم دغه ظالمان دی (اے پیغمبره!) ووایه چه الله (څه وئیلی دی) رښتیا

فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِیْمَ حَنِیْفًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ﴿۹۵﴾

پس پیروی وکړئ | د ملت د ابراهیم | چه حنیف وو | او نه وو | له مشرکانو نه

یې وئیلی دی پس تاسو د ابراهیمؑ د طریقې پیروی وکړئ چه حق پرست وو او د مشرکانو نه نه ؤو ـ

اِنَّ اَوَّلَ بَیْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِیْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا

بیشکه | وړومبے | کور | چه مقرر کړے شوے وو | خلقو د پاره | هم هغه دے چه | په مکه کښې دے | برکت والا

بیشکه د ټولو نه وړومبے عبادت ګاه چه د خلقو د پاره مقرر شوے ده کوم چه په مکه کښې ده د برکت ځائے دے

وَّهُدًی لِّلْعٰلَمِیْنَ ﴿۹۶﴾ فِیْهِ اٰیٰتٌۢ بَیِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِیْمَ ۚ۬

او هدایت دے | د جهان د خلقو د پاره | په دے کښې | نخښې دی | ښکاره | ځائے د اودریدو د ابراهیم

او خلقو د پاره د هدایت (مرکز) دے ـ په دے کښې ښکارندے نخښې دی د ابراهیم علیه السلام (د عبادت) ځائے دے

وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ وَلِلّٰهِ عَلَی النَّاسِ حِجُّ الْبَیْتِ

او څوک چه داخل شو په دے کښې | نو هغه شو په امن کښې | او الله د پاره | په خلقو باندې (فرض دے) | حج | د بیت الله

او چه څوک ورننوزی هغه په امن شی او د الله په خلقو باندې داحق دے چه د دے کور زیارت د کوی

وقف جبرائیل علیه السلام

مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ

خوک چه | طاقت لری | دَ دے طرف ته | دَ تللو دَ لارے | او خوک چه | انکار وکړی | نو بیشکه | الله | بے پروا

خوک چه دَ لارے توفیق لری۔ او خوک چه انکار وکړی نو دا هغه ته دِ معلومه وی چه الله

عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۷﴾ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ

له عالمونو نه | ووایه | اے اهلِ کتابو! | ولے انکار کوئ | دَ ایتونو

دَ خلقو نه بے نیازه دے۔ (اے پیغمبره!) ووایه چه اے اهلِ کتابو! تاسو ولے دَ الله دَ حکمونو نه انکار

اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۸﴾ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ

دَ الله | او الله | ګوری | څه چه تاسو کوئ | ووایه | اے اهل کتابو!

کوئ سره دَ دے چه الله ستاسو په ټولو کارونو ګواه دے چه تاسو ئے کوئ۔ نو ورته ووایه چه اهل کتابو

لِمَ تَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ تَبْغُوْنَهَا

ولے منع کوئ تاسو | دَ الله دَ لارے نه | هغه خوک چه ایمان ئے راوړے | تاسو غواړئ هغه

تاسو ولے دَ ایمان خاوندان دَ الله له لارے نه منع کوئ کړه لټوئ په کښے راوباسئ، سره دَ دے

عِوَجًا وَّاَنْتُمْ شُهَدَآءُ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۹﴾

کږه ول | او تاسو | ګواه یئ | او نه دے | الله | بے خبره | دَ هغے نه | چه تاسو کوئ

چه تاسو پخپله (دَ هغے دَ حق کیدو) ګواهان یئ۔ او الله ستاسو دَ کارونو نه غافله نه دے۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

اے | دَ ایمان خاوندانو! | که چرے خبره ومنئ تاسو | دَ یو ټولی | دَ هغو خلقو نه | (چا ته چه) ورکړے شوے دے

اے مسلمانانو! که تاسو دَ دے کتابیانو دَ یو ټولی خبره ومنله نو دَ ایمان راوړو

يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۰﴾ وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ

نو هغوئ به تاسو بیا واپس کړی | ستاسو دَ ایمان راوړو نه پس | کفر ته | او څنګه | تاسو انکار کوی

نه پس به مو بیرته کفر ته یوسی۔ او س به تاسو کفر څنګه خوښ کړے شئ؟ او س

وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ وَفِيْكُمْ رَسُوْلُهٗ ؕ

او ستاسو حال دا دے چه لوستلے شی | په تاسو | ایتونه دَ الله | او ستاسو په مینځ کښے | دَ هغه رسول

خو تاسو ته دَ الله تعالیٰ ایتونه اوروے شی، او دَ هغه پیغمبر ستاسو په مینځ کښے موجود دے۔

وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ فَقَدْ هُدِيَ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾ ع ١

او خوک چه | مضبوط ئے سره ونیسی | الله | پس بیشکه | هدایت وکړے شو هغه ته | په طرف دَ لارے سمے

او چا چه دَ الله تعالیٰ په دین منګلے ولګولے نو هغه سمه لار بیا موندله۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ

اے | مؤمنانو! | وویریږئ | دَ الله نه | دَ هغه ویرے حق (دے) | دَ هغه نه | او تاسو مه مرئ

اے مؤمنانو! دَ الله نه داسے ویره کوئ څنګه چه دَ ویریدلو حق دے او چه مرګ درله راشی

إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ۝١٠٢ وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا
مگر | چه یئ مسلمانان | او (مضبوطه) ونیسئ | رسئ | دَ الله | ټول
خو په داسے حالت کښے چه تاسو مسلمانان یئ۔ او ټول په شریکه دَ الله رسئ په مضبوطئ سره ونیسئ۔

وَلَا تَفَرَّقُوا وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً
او مه | جُدا جُدا کیږئ | او یاد کړئ | نعمت دَ الله | (چه هغهٔ) په تاسو (وکړو) | هر کله چه تاسو وئ | دښمنان یو تر بله
او جدا جدا مه کیږئ، او دَ الله چه په تاسو کوم انعامات دی هغه یاد کړئ کله چه تاسو دَ یو بل دښمنان وئ

فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا
بیا هغهٔ محبت واچولو | په مینځ دَ زړونو ستاسو کښے | پس شوئ تاسو | دَ هغهٔ په مهربانئ سره | ورونړه دَ یو بل
بیا هغهٔ ستاسو په زړونو کښے محبت واچولو او دَ هغهٔ په مهربانئ تاسو ورونړه ورونړه جوړ شوئ

وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا ۗ كَذَٰلِكَ
او وئ تاسو | په غاړه | دَ کندے | دَ اور | بیائے بچ کړئ تاسو له هغے نه | دغه شان
او تاسو دَ اور دَ کندے په غاړه ولاړ وئ، نو الله ترے نه خلاص کړئ دغه شان الله

يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۝١٠٣ وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ
بیانوی | الله | تاسو دَ پاره | خپل اٰیتونه | دَ پاره دَ دے چه تاسو لاره بیاموئ | او پکار ده چه وی | له تاسو نه | یوه ډله
تاسو ته خپلے نخښے نښانے ښائی، چه تاسو په سمه لار باندِ پاتے شئ۔ په تاسو کښے خامخا یو ټولے داسے

يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ۚ
چه بلی | دَ نیکئ طرف ته | او حکم کوی | دَ ښو کارونو | او منع کوی | له بدو کارونو نه
پکار دے چه خلق نیکئ طرف ته رابلی او ورته دَ ښو کارونو حکم کوی او دَ بدو کارونو نه ئے منع کوی

وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۝١٠٤ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا
او هم هغه دی | کامیاب | او مه کیږئ | په شان دَ هغو خلقو | چه فرقه فرقه شول
او هم داسے خلق به کامیاب وی۔ او دَ هغو خلقو په شان مهٔ کیږی چه په خپل مینځ کښے ډلے ډلے شول

وَاخْتَلَفُوا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ وَأُولَٰئِكَ لَهُمْ
او اختلاف ئے وکړو دَ یو بل سره | پس له دے نه (چه) | راغلل هغوی ته | (روښانه) دلیلونه | او هم دا (خلق) دی | کوم چه
او دَ څرګندو دلیلونو راتلو نه پس په اختلاف کښے اخته شول او هم دَ داسے خلقو دَ پاره ډیر

عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝١٠٥ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ۚ
(به) عذاب (وی) | ډیر لوئے | په کومه ورځ چه | به سپین وی | څهٔ مخونه | او تور به وی | څهٔ مخونه
لوئے عذاب مقرر دے، په کومه ورځ چه به څهٔ مخونه روښانه وی او څهٔ به تک تور شی نو دَ

فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ
لیکن هغه خلق | دَ کومو چه به تور شی | مخونه دَ هغوی | آیا تاسو انکار وکړو | پس له ایمانونو خپلو نه
هغو خلقو دَ کومو مخونه چه به تک تور شی (هغوی ته به ووئیلے شی) آیا تاسو دَ ایمان راوړو نه پس بیا کفر اختیار کړے

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ۝۱۰۶ وَاَمَّا الَّذِيْنَ ابْيَضَّتْ
پس وڅکئ | عذاب | په بدل د هغې کښې چه تاسو به کفر کولو | لیکن هغه خلق چه | روښانه به وي
وه، اوس د خپل کفر په سزا کښې د عذاب خوند وڅکئ. او هغه خلق د کومو مخونه چه به روښانه
وُجُوْهُهُمْ فَفِيْ رَحْمَةِ اللّٰهِ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝۱۰۷ تِلْكَ اٰيٰتُ
مخونه د هغوی | پس (هغوی) د الله رحمت کښې به وي | (چه) هغوی به په دې کښې همیشه وي | دا | آیتونه
وي هغوی به د الله د رحمت په سیوری کښې وي او په دې کښې به همیشه وي. دا د الله حکمونه دي
اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ؕ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝۱۰۸
د الله دي | چه تلاوت کوو مونږ د هغې | په تا باندې | په حق سره | او الله نه غواړي | ظلم کول | په خلقو
چه مونږ ئې تا ته ټیک ټیک اورو. او الله په مخلوقاتو باندې ظلم کول نه غواړي.
وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝۱۰۹
او الله د پاره دي | هغه څه چه په آسمانونو کښې دي | او هغه څه چه په زمکه کښې دي | او د الله طرف ته به | بیرته ګرځولے شي ټول کارونه
او هر څه چه په آسمانونو او په زمکه کښې دي هغه ټول د الله دي. او ټول معاملے به آخر الله ته پیش کیږي.
كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ
یئ تاسو بهترین اُمت | چه بهر ته را ویستلے شوي یئ | د خلقو د پاره | تاسو حکم کوئ | د نیکو کارونو | او منع کوئ
(اے مسلمانانو!) تاسو بهترین ټولے یئ کوم چه د خلقو (د هدایت) د پاره پیدا کړے شوي یئ تاسو خلقو ته د نیکئ حکم کوئ
عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ؕ وَلَوْ اٰمَنَ اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا
د بدو کارونو نه | او ایمان راوړئ | په الله | او که چرے | ایمان راوړے | اهل کتابو (هم) | خامخا به ډیره بهتره
او د بدو کارونو نه ئې منع کوئ او په الله باندې یقین لرئ، او که اهل کتابو هم ایمان راوړے وے نو د هغوی د پاره به ډیره
لَّهُمْ ؕ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَاَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۝۱۱۰ لَنْ يَّضُرُّوْكُمْ
هغوی د پاره | ځینې له هغوی نه | مسلمانان دي | او اکثر په هغوی کښې | نافرمانه دي | هیڅ کله به زیان ونه رسوي هغوی تاسو ته
غوره وه، په هغوی کښې ځنې خو ایماندار دي خو اکثر په کښې فاسقان دي. هغوی تاسو ته هیڅ ضرر نشي
اِلَّآ اَذًى ؕ وَاِنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ يُوَلُّوْكُمُ الْاَدْبَارَ قف
مګر څه لږ خفګان | او که چرے هغوی تاسو سره جنګ وکړي | نو دوی به ګرځوي تاسو ته | شاګانے
رسولے فقط تنګول کوي. او که تاسو سره جنګ شروع کړي نو زر به درته شاګانے وښائي. او بیا
ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ۝۱۱۱ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَ مَا ثُقِفُوْٓا اِلَّا
بیا به هغوی ته مدد ورنه کړے شي | وغورځولے شو | په هغوی باندې | ذلت | هر ځائے کښې چه هغوی بیا مونده شي | مګر
هیڅوک د هغوی امداد ونه کړي. په دے خلقو باندې هر ځائے کښې ئے چه بیا مومئ ذلت مسلط دي، هن اګر
بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ
په ذمه وارئ کښې | د الله د طرف نه | او په ذمه وارئ کښې | د خلقو د طرف نه | او هغوی راغلل په غضب کښې | د الله
چرے د الله په پناه کښې او د خلقو په پناه کښې وي او هغوی د الله په غضب کښې ګیر شوي دي.

وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ۚ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ

دُوهلے شوه | په هغوی باندِ | محتاجی | دا | دَ دے دَ پاره چه هغوی | انکار کولو

او محتاجی پرے راغوړیں لے دَه - دا په دے وجه چه هغوی دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو نه

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۚ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا

دَ ایتونو دَ الله | او وژل به هغوی | پیغمبران | په ناحقه | دا په دے وجه | (چه) هغوی نافرمانی دکړه

انکار کولو او پیغمبران علیهم السلام به ئے په ناحقه وژل ، دَ دے وجه دا وه چه هغوی نافرمانی

وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿١١٢﴾ لَيْسُوْا سَوَآءً ۗ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ

او دَ حد نه به تیریدل | هغوی ټول برابر نه دی | دَ اهل کتابو نه | یوه ډله ده ولاړه

کړے وه او دَ حد نه وړاندِ تیر شوی وُو ، خو ټول اهل کتاب هم برابر نه دی په هغوئ کښے یو ټولے په حق (مضبوط) ولاړه دے

يَتْلُوْنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ﴿١١٣﴾ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

لولی | دَ الله ایتونه | دَ شپے په وختونو کښے | او هغوی | سجدے کوی | هغوی ایمان راوړی | په الله

دَ شپے په وخت کښے هم دَ الله ایتونه لولی او هغهٔ ته سجده کوی - په الله تعالیٰ او په اخرت

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ

او په ورځ | دَ اخرت | او حکم کوی | دَ نیکو کارونو | او منع کوی | دَ بدو کارونو نه

باندِ یقین لری او خلقو ته دَ نیکئ حکم کوی ، او دَ بدو کارونو نه ئے منع کوی

وَيُسَارِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ ۗ وَاُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١١٤﴾ وَمَا يَفْعَلُوْا

او تلوندی کوی | په نیکو کارونو کښے | او هم دا (خلق) دی | دَ نیکانو نه | او هغوی څهٔ چه کوی

او په نیکو کارونو کښے دَ یو بل نه وړاندِ کیږی او دغه کسان دَ نیکانو په ټولی کښے شمیر دی۔ او (دا خلق) چه

مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ ۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿١١٥﴾ اِنَّ

دَ نیکئ نه | هیڅکله به محروم نهٔ کړے شی دَ هغے (دَ اجر) نه | او الله | ښهٔ پوهه دے | په پرهیزګارانو | بیشکه

هر یوه نیکی وکړی نو دَ هغے ناقدری به هیچرے نهٔ کیږی او الله پرهیزګاران خلق ښهٔ پیژنی - بیشکه چا چه

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِىَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ

کوم خلق چه | کافران دی | هیڅ کله به کار ونهٔ کړی هغوی ته | دَ هغوی مال | او نهٔ | دَ هغوی اولاد | دَ الله سره

کفر غوره کړے دے دَ الله دَ عذاب په مقابله کښے به نه دَ هغوی مالونه او نهٔ دَ هغوی اولاد څهٔ په کار

شَيْـًٔا ۗ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١١٦﴾ مَثَلُ مَا

هیڅ هم | او هم دا (خلق) دی | دوزخیان | هم هغوی به په دے کښے | همیشه وی | مثال دَ هغے کوم چه

راشی او دا دوزخیان دی په دِے کښے به همیشه پراته وی ـ کوم مالونه چه دوئ

يُنْفِقُوْنَ فِىْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ

هغوی خرڅ کوی | دَ دِے دنیا په ژوند کښے | پشان دَ هغه | هوا دے | چه په هغے کښے | سخته یخنی وی | چه ورسیده و

(دَ اسلام برخلاف) دَ دنیا په دے ژوند کښے لګوی دَ هغے مثال دَ هغے باد په شان دے چه پکښے سخته یخنی وی او دَ هغه چا په

حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ

فصل ته | دَ یو قوم | چا چه ظلم کړے وو | په خپلو ځانونو | بیا ئے هغه برباد کړو | او نه دے ظلم کړے په هغوی | الله

فصلونو پریوځی چه په ځان ئے ظلم کړے وی نو فصل ورله تباه کوی ـ او الله په هغوی هیڅ ظلم نه

وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ١١٧ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا

لیکن | هغوی په خپلو ځانونو | (پخپله) ظلم کولو | اے د ایمان خاوندانو! | مه جوړوئ

دے کړے بلکه هغوی پخپله په خپل ځان زیاتے کړے دے ـ اے مؤمنانو ! دَ مسلمانانو نه علاوه

بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا ؕ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ ۚ

رازدار (ځوک) | سوا دَ خپلو نه | هغوی کمے نه کوی تاسو ته | نقصان (رسولو) کښے | هغوی غواړی | چه تاسو ته تکلیف وی

نور خلق خپل رازدار کوئ مه، هغوی ستاسو په بربادولو کښے هیڅ کوتاهی نه کوی، هغوی هغه خبره خوښوی په

قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۚۖ وَمَا تُخْفِیْ صُدُوْرُهُمْ

بیشکه ښکاره شوے ده | دُښمنی | دَ هغوی له خُلو نه | او څه چه | پټه دی | دَ هغوی سینو (کښے)

کومه چه تاسو ته تکلیف رسی او س خو ئے بغض دَ خُلو نه هم ښکاره شوے او کوم چه ئے په زړونو کښے پټ پروت دے

اَكْبَرُ ؕ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ

(هغه دَ دے نه هم) زیات دی | بیشکه بیان کړی دی مونږ تاسو ته | ایتونه | که چرے تاسو

هغه خو لا دَ دے نه هم چیر زیات دے، مونږ تاسو ته نخښے ښے څرګندے کړے، که چرے تاسو دَ غوږ اونګر

تَعْقِلُوْنَ ١١٨ هٰٓاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ وَتُؤْمِنُوْنَ

عقل لرئ | دا ورئ تاسو خو | هغه یئ (چه) | دَ هغوی سره محبّت کوئ | او محبت نه کوی هغوی تاسو سره | او تاسو منئ

نه کار واخلئ ـ تاسو لکیا یئ دَ هغوی سره مینه محبّت سا تئ ولے دَ هغوئ تاسو خوښ نه یئ، سره دَ دے

بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۖۚ

ټول کتابونه | او کله چه | هغوی ملاقات کوی تاسو سره | (نو) وائی | مونږ (هم) ایمان راوړے دے

چه تاسو ټول اسمانی کتابونه منئ او کله چه تاسو سره یو ځائے شی نو وائی چه مونږ ایمان راوړے دے

وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ؕ قُلْ

او هر کله چه ځان له شی | نو چیچی هغوی | په تاسو باندِ | (خپلے) ګوتے | له غصے نه | ووایه

او چه ځان له یوازے شی نو دَ ډیره قهره درپسے خپلے ګوتے په غاښونو چیچی ، ورته ووایه

مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ١١٩ اِنْ

مړه شئ | په وجه دَ خپلے غصے | بیشکه | الله | پوهه دے | دَ زړونو په راز | که چرے

چه دَ خپل قهر دَ لاسه مړه شئ، بیشکه الله ته ستاسو دَ زړونو حال معلوم دے ـ که چرے

تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۡ وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ

ورسیږی تاسو ته | نعمت | (نو) بد لګی په هغوی | او که چرے ورسیږی تاسو ته | (څه) تکلیف

تاسو ته څه فائده رسی نو دا خبره په هغوی بده لګی او که چرے ورته څه تکلیف ورسیږی نو

يَفْرَحُوْا بِهَا ۭ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ

نو خوشحاله شي | په هغې | او كه چرې | تاسو صبر وكړئ | او پرهيزګاري وكړئ | زيان به ونه رسوي تاسو ته

په دے خوشحاليږي. او كه تاسو صبر وكړئ او د الله نه ويره كوئ نو د هغوئ مكر و فريب تاسو ته

كَيْدُهُمْ شَيْـــًٔا ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطٌ ﴿١٢٠﴾ وَاِذْ غَدَوْتَ

ع ۱۲ ۳ مكر د هغوى | هيڅ | بيشكه | الله | په هغه څه چه كوي ئے هغوى | احاطه كوونكے دے | او كله چه | ته په وخت د صبا راووتے

هيڅ ضرر نه شي دررسولے، الله د هغوى د هر كار نه راچاپيره دے. او (ياد كړه پيغمبره!) كوم وخت چه

مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ۭ وَاللّٰهُ

د خپل كور نه | چه تا كښينول | مسلمانان | (په) مورچو (كښے) | د پاره د جنګ | او الله

ته سحر د كوره بهر وتلے او (د اُحد په ميدان كښے) مسلمانان د ځائے په ځائے په مورچو كښے د جنګ د پاره مقرر ول او الله

سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿١٢١﴾ اِذْ هَمَّتْ طَّاۗىِٕفَتٰنِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا ۙ وَاللّٰهُ

اوريدونكے | پوهه دے | هر كله چه اراده وكړه | دوؤ ډلو | له تاسو نه | چه همت بائيلي هغوى | او الله

هر څه اوري او په هر څه پوهه دے هر كله چه ستاسو د ملګرو نه دوؤ ډلو د نامردئ اراده وكړه. حال دا دے چه الله

وَلِيُّهُمَا ۭ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢٢﴾ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ

د هغوى دوست (دوؤ) | او په الله باندې | پكار ده چه توكل وكړي | مسلمانان | او بيشكه فتح دركړے ده تاسو ته

د دواړو مددګار وو. او مؤمنانو له خو هميشه په الله باندې توكل پكار دے. او (د دې نه وړاندې) الله د بدر په ميدان

اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿١٢٣﴾

الله | په بدر كښے | او تاسو كمزوري وئ | پس ووېرېږئ | د الله نه | د پاره د دے چه | شكر وكړئ.

كښے ستاسو امداد كړے وو كوم وخت چه تاسو ډير كمزوري وئ، پس د الله نه ويرېږئ چه (د هغه په نعمتونو) شكر وكړے شئ.

اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ

هغه وخت چه ووئيل تا | مؤمنانو ته | آيا كافي به نه وي تاسو د پاره | چه | مدد وكړي ستاسو

(هم د بدر هغه واقعه ياده كړه) كله چه تا مسلمانانو ته ووئيل، آيا تاسو د پاره دومره كافي نه ده چه الله تعالیٰ

رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰۗىِٕكَةِ مُنْزَلِيْنَ ﴿١٢٤﴾ بَلٰٓى ۙ

رب ستاسو | په درے | زره | | فرښتو سره | چه (د بره نه) نازلے وي | ولے نه

درے زره فرښتے راكوزے كړي، او ستاسو امداد وكړي. ولے نه (كافي

اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ

كه چرے تاسو صبر وكړئ | او پرهيزګاري وكړئ | او (دښمن) په تاسو حمله وكړي | فوراً | | نو امداد به وكړي ستاسو

ده) كه چرے تاسو صبر وكړئ او د الله نه ويره كوئ او بيا كه چرے هغه (دښمن) په دے جوش كښے په

ع ۱۳ ۴ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰۗىِٕكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ﴿١٢٥﴾

رب ستاسو | په پنځو | زرو | | فرښتو سره | (چه) خاص نخښے به لري

تاسو حمله وكړي نو الله به پنځو زرو فرښتو سره ستاسو امداد وكړي چه خاص نخښے به ورسره وي.

وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ
اونه وه ګرځولی هغه (مدد) الله | مګر | زیری | تاسو د پاره | او د پاره د دې چه په آرام شي | زړونه ستاسو
او دا خبره خو ورته الله تعالیٰ ځکه وکړه چه تاسو خوشحاله شئ او زړونه مو په ځای
بِهٖ ۚ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿۱۲۶﴾
په هغې | او نه (دی) مدد | مګر | د الله د طرف نه | چه غالب | خاوند د حکمت دی
شي، او امداد خو هم د الله د طرف نه دی چه غالب او د حکمت خاوند دی
لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنْقَلِبُوْا خَآئِبِيْنَ ﴿۱۲۷﴾
چه کوتره کړی برخه | د هغو خلقو چه کافران دی | یا ذلیل کړی هغوی | بیا هغوی واپس شي | ناکامه
(او دا) د دې د پاره چه د کافرانو یو ټولی هلاک کړی یا ئې خوار او ذلیل کړی چه نامراده واپس لاړ شي.
لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ
نشته دې | ستا | په دې کار کښې (دخل) | هیڅ شیز | یا (خو هم هغه) توبه نصیب کړی | هغوی ته | یا هغوی له عذاب ورکړی
(اې پیغمبره! د هغوی) فیصله ستا په لاس کښې نه ده که د الله خوښه وی نو توبه به ئې قبوله کړی کنې عذاب به ورکړی
فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ
ځکه چه هغوی | ظالمان دی | او د الله دی | څه چه په اسمانونو کښې دی | او څه چه | په زمکه کښې دی
ولې چه هغوی په ځان زیاتے کوی　او هر څه چه په اسمانونو او په زمکه کښې دی هغه ټول د الله دی.
يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ
بخښنه کوی | چاته چه وغواړی | او عذاب ورکوی | چاته چه وغواړی | او الله | بخښونکے
چاته چه غواړی بخښنه کوی　او چاته چه غواړی عذاب ورکوی　او الله تعالیٰ بخښونکے
رَّحِيْمٌ ﴿۱۲۹﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ۖ
مهربان دے | اې مؤمنانو! | مه خورئ | سود | دو چند په بیا بیا دو چندئ سره
مهربان دے.　اې مسلمانانو!　تاسو سود مه خورئ چه هغه په څو څو چنده زیاتیږی
وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۳۰﴾ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْٓ
او ووېرېږئ | د الله نه | د پاره د دې چه تاسو | کامیاب شئ | او وویرېږئ | د هغه اور نه | کوم چه
او د الله نه ویره کوئ چه تاسو کامیاب شئ.　او د هغه اور نه ځان بچ وساتئ کوم چه
اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ
تیار کړے شوے دے | د کافرانو د پاره | او حکم ومنئ | د الله | او د رسول | چه په تاسو
د کافرانو د پاره تیار شوے دے. او د الله او د رسول حکمونه منئ اُمید دے چه رحم
تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾ وَسَارِعُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ
رحم وکړے شي | او منډه کړئ | د بخښنے طرف ته | د خپل رب | او جنت (طرف) ته
درباندې وکړے شي. او په هغه لاره په تلوار ځئ چه د الله تعالیٰ د مغفرت او هغې جنت ته ځي

عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿١٣٣﴾ الَّذِيْنَ
چه پلنوالے دَ هغے | دَ اسمانونو | او دَ زمکے (برابر) دے | تیار کړے شوے دے | پرهیزګارانو دَ پاره | کوم خلق چه
چه دَ هغے پلنوالے دَ اسمانونو او دَ زمکے برابر دے او دَ هغه پرهیزګارانو دَ پاره تیار کړے شوے دے چه په

يُنْفِقُوْنَ فِى السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ وَالْكٰظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ
خرڅ کوی | په ارام کښے | او سختئ (کښے) | او زغمی | غصه | او معاف کوی
خوشحالئ او بد حالئ دواړو کښے خپل مالونه خیرات کوی او غصه په قابو کښے ساتی او دَ خلقو

عَنِ النَّاسِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٣٤﴾ وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا
خلق | او الله | دوست لری | نیکان | او هغه خلق | هر کله چه وکړی
قصورونه معاف کوی او دا سے نیکان خلق دَ الله تعالیٰ ډیر خوښ دی او هغه خلق چه څۀ خراب کار

فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا
څۀ بد کار | یا ظلم وکړی | په خپلو ځانونو | نو یاد وی | الله | بیا بخښنه غواړی
وکړی یا په خپل ځان څۀ زیاتے وکړی نو (فوراً) الله تعالیٰ یادوی بیا دَ هغه نه دَ خپلو

لِذُنُوْبِهِمْ ۪ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۪ وَلَمْ يُصِرُّوْا
دَ خپلو ګناهونو | او څوک | بخښلے شی | ګناهونه | سوا | دَ الله نه | او ضد نۀ کوی
ګناهونو معافی غواړی او دَ الله تعالیٰ نه سوا څوک ګناهونه بخښلے شی ، او کوم ګناهونه ئے چه

عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿١٣٥﴾ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ
په هغه ګناه چه وئے کړی | او هغوی پوهه وی | دغه خلق دی | چه بدله دَ دوی | بخښنه ده
کړی وی په هغے ضد نۀ کوی او هغوی پوهیږی. او دَ دا سے خلقو بدله داده چه الله تعالیٰ به ورته

مِّنْ رَّبِّهِمْ وَجَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ
دَ دوی دَ رب دَ طرفه | او باغونه دی | چه بهیږی به | لاندې دَ هغے نه | نهرونه | همیشه به وی (هغوی)
بخښنه وکړی او دا سے باغونه به ورکړی چه دَ هغے لاندې به نهرونه بهیږی چه په هغے کښے به هغوی

فِيْهَا ؕ وَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿١٣٦﴾ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ
په هغے کښے | او ښۀ ده | بدله | دَ عمل کوونکو | بیشکه تیر شوی دی | تاسو نه وړاندې | واقعات
همیشه وسیږی او دَ نیک عمل کوونکو دَ پاره دا ډیر ښه اجر دے. بیشکه تاسو نه وړاندې ډیر واقعات تیر شوی دی

فَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١٣٧﴾
پس وګرځئ | په زمکه کښے | بیا وګورئ | څنګه | شو | انجام | دَ دروغ ګڼونکو
نو تاسو دَ زمکے په مخ وګرځئ او وګورئ چه چا دَ الله حکمونه دروغ ګڼړل دَ هغوی څۀ انجام شو ؟

هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿١٣٨﴾
دا (قرآن) | بیان دے | دَ خلقو دَ پاره | او | هدایت | او نصیحت | پرهیزګارانو دَ پاره
دا (قرآن) دَ ټولو خلقو دَ پاره یو بیان او پرهیزګارانو دَ پاره هدایت او نصیحت دے.

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ ﴿۱۳۹﴾
او مهٔ سستیږئ | او مهٔ غمژن کیږئ | او تاسو | به غالب یئ | که چرے یئ تاسو رښتینی مؤمنان
او تاسو همت مهٔ بائیلئ او مهٔ غم کوئ او هم تاسو به غالب راځئ که چرے تاسو خپل دننه ایمان لرئ.

اِنْ یَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ
که چرے ورسیږی تاسوتهٔ | (څهٔ) زخم | نو رسیدلے دے | قوم (د کافرانو) ته | زخم | په شان د هغے
که (ن) تاسو ته (په دے جنګ کښے) زخم لګیدلے دے نو دے قوم (کافرانو) ته هم داسے زخم لګیدلے دے.

وَتِلْكَ الْاَیَّامُ نُدَاوِلُهَا بَیْنَ النَّاسِ ۚ وَلِیَعْلَمَ اللّٰهُ
او دا | (د فتح او ماتے) ورځے | اړوو راړوو موږ | د خلقو په مینځ کښے | او د پاره د دے هم چه جدا کړی | الله
او دا خو حالات دی کوم چه موږ (وار په وار) په خلقو کښے بدلوو رابدلوو. او ځکه هم دے چه الله په تاسو کښے

الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَیَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ؕ وَاللّٰهُ لَا یُحِبُّ
مؤمنان | او جوړ کړی | ځنے په تاسو کښے | شهیدان | او الله | دوست نهٔ لری
هغه خلق وُ زمائی کوم چه مؤمنان دی او په تاسو کښے ځنو ته د شهادت درجه نصیب کړی او د الله ظالمان

الظّٰلِمِیْنَ ﴿۱۴۰﴾ وَلِیُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَیَمْحَقَ
ظالمان | او د پاره د دے چه ښهٔ پاک کړی | الله | مسلمانان | او ختم کړی
خوښ نهٔ دی او په دے وجه هم چه الله د ایمانخاوندان (د ګناهونو نه) پاک صفا کړی او کافران

الْكٰفِرِیْنَ ﴿۱۴۱﴾ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا یَعْلَمِ
کافران | آیا | ګمان کوئ تاسو | چه داخل به شئ تاسو | جنت کښے | حال دا دے چه (او سه پورے) نهٔ دی معلوم کړی
تباه کړی. آیا تاسو ګنړئ چه جنت ته به (اوچ په اوچه) داخل شئ حال دا دے چه الله په

اللّٰهُ الَّذِیْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَیَعْلَمَ الصّٰبِرِیْنَ ﴿۱۴۲﴾
الله | هغه خلق | (کوم چه) جهاد وکړو | په تاسو کښے | او (نهٔ دی) معلوم کړی | صبر کوونکی
تاسو کښے لا جهاد کوونکی نهٔ دی آزمائیلی او نهٔ ئے صبر کوونکی آزمائیلی دی.

وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ ۪
او بیشکه | تاسو | آرزو کوله | د مرګ | وړاندے د دے نه چه | تاسو ملاقات وکړئ د مرګ
او تاسو خو به د مرګ آرزو ګانے کولے (خو هغه وخت) چه مرګ مو لیدلے نهٔ وو

فَقَدْ رَاَیْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۱۴۳﴾ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ ع ۱۴ ۵
پس ولیدو تاسو هغه | او تاسو کتل (په خپلو سترګو) | او نهٔ دے محمدٌ | مګر | یو رسول
نو اوس درته مرګ مخامخ راغے او تاسو ولیدلو. او محمد (صلی الله علیه وسلم) نور څهٔ نهٔ دے خو بس یو پیغمبر دے

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَاۡئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ
بیشکه تیر شوی دی | د هغهٔ نه وړاندے | پیغمبران | آیا بیا که چرے | دے وفات شی | یا قتل کړے شی
د دهٔ نه وړاندے نور پیغمبران هم تیر شوی دی، نو که دے وفات شی یا ووژلے شی

انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ؕ وَمَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ

نو بیرته به ګرځئ تاسو | په پوندو خپلو | او څوک چه | بیرته وګرځي | په پوندو خپلو

نو آیا تاسو به په اړولو پښو (د اسلام نه) بیرته ګرځئ؟ او (یاد ساتئ) څوک چه کفر ته واپس وګرځي

فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْـًٔا ؕ وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

هغه به هیڅ کله زیان ونه رسوے شي | الله ته | هیڅ (هم) | او ډیر زر به بدله ورکړي | الله | شکر ګزارو ته

نو هغه الله ته هیڅ نقصان رسولے نه شي. او الله به ډیر زر شکر ګزارو بندګانو ته بدله ورکړي

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ؕ

او دا ممکنه نه ده | یو نفس له | چه مړ شي | مګر د الله په حکم | لیکلے شوے دے | په نیټه سره

او هیڅ یو ژوندے د الله د حکم نه بغیر مړ کیدے نه شي، مرګ خو په نیټه لیکلے شوے دے

وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ

او څوک چه | غواړي | ثواب | د دنیا | مونږ ورکوو هغه ته | د دے نه | او څوک چه

او څوک چه دنیوی ثواب غواړي مونږ به ورله په دنیا کښے ثواب ورکړو او څوک چه د

يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ وَسَنَجْزِى الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

غواړي | ثواب | د آخرت | مونږ ورکوو هغه ته | د هغے نه | او مونږ به ډیر زر بدله ورکړو | شکر ګزارو ته

آخرت د ثواب د پاره کار کوي نو هغه له به په آخرت کښے ثواب ورکوو او مونږ به ډیر زر شکر ګزارو له بدله ورکړو

وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا

او څومره (تیر شول) | له پیغمبرانو نه | چه جهاد وکړو | د هغوئ په ملګرتیا کښے | خدائي خلقو | ډیرو | بیا نه (خو)

او (د دے نه وړاندې) ډیر پیغمبران وو چه د هغوئ په ملګرتیا کښے ډیرو خدائي خلقو جهاد وکړو. نو د الله په

وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا

هغوی همت بائیلو | په سبب د هغه مصیبت چه ورسیدو هغوئ ته | د الله په لاره کښے | او نه کمزوري شول

لاره کښے چه کوم مصیبتونه ورته رسیدلی وو، په هغے باندې د هغوئ زړه ونه پریوتی نه وو، نه کمزوري شوی وو

وَمَا اسْتَكَانُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۶﴾ وَمَا كَانَ

او نه | بښکته شول | او الله دوست لري | صابران | او نه وه

او نه ئے باطل ته سر ټیټ کړے ؤ او د الله صابره خلق خوښ وي. د هغوی خو بس دا

قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا

خبره د هغوی | سوا | (د دے نه) چه | هغوی به وئیل | اے ربه زمونږ! | وبخښه | مونږ د پاره | ګناهونه زمونږ

دعا وه چه اے زمونږ ربه! زمونږ ګناهونه او زمونږ د لاسه

وَاِسْرَافَنَا فِىْٓ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا

او زمونږ زیاتے | زمونږ په کار کښے | او کلک کړه | زمونږ قدمونه | او مدد راکړه مونږ ته

شوے زیاتے راته وبخښه، او زمونږ ښپے کلکے کړه او د کافرانو په

عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾ فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ

په قوم | دَکافرانو | پس ورکړو هغوئ ته | الله | ثواب | دَ دُنيا | او ښه

مقابله کښے مونږ له فتح راکړه - نو الله تعالیٰ هغوی له دَ دُنيا ثواب هم ورکړو ، او دَ آخرت

ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۴۸﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا

ثواب | دَ آخرت | او الله | دوست لري | نيکان | اے مؤمنانو!

ښهٔ ثواب ئے هم ورکړو او نيکان خلق دَ الله تعالیٰ خوښ دی - اے مؤمنانو!

اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَرُدُّوْكُمْ عَلٰۤى اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا

کهٔ چرے تاسو خبره منئ | دَ کافرانو | نو هغوی به بيرته وګرځوی تاسو | په پُوندو ستاسو | پس وُ به ګرځئ تاسو

کهٔ تاسو دَ کافرانو خبرے منئ نو په اړولو ښپو به مو (کفر ته) واپس کړی ، بيا به په سخت

خٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾ بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ ﴿۱۵۰﴾

زيان کاره | بلکه | (هم) الله | ستاسو مالک دے | او هغه | ډير ښهٔ | مدد ګار دے .

نقصان کښے پريوځئ (دَ دوئ خبرے مهٔ اوړئ) بلکه الله ستاسو ملګرے دے او هغه ډير ښهٔ مدد ګار دے

سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ

اوس به مونږ وُغورزوو | په زړونو کښے | دَ هغو خلقو چه | کافران دی | رُعب

مونږ به ډير زر دَ کافرانو په زړونو کښے (ستاسو) رُعب وُغورزوو ،

بِمَاۤ اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ

په سبب دَ هغے چه شريک کړے دی هغوئ | دَ الله سره | هغه څيز | چه نهٔ دے نازل کړے | دَ هغے | (الله څهٔ) دليل

ځکه چه دوئ دَ الله سره داسے څيزونه شريک کړی دی چه دَ هغے په حقله الله هيڅ دليل نهٔ دے نازل کړے

وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۵۱﴾ وَلَقَدْ

او ځائے دَ هغوی | دوزخ دے | او خراب دے | ځائے دَ اُوسيدو | دَ ظالمانو | او بيشکه

او دَ دوئ ټيکاونړه دوزخ دے ، او دَ ظالمانو ټيکاونړه ډيره بده ده - او الله تعالیٰ تاسو

صَدَقَكُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗۤ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰۤى اِذَا

رښتيا کړه تاسو سره | الله | خپله وعده | هغه وخت چه تاسو وژل هغوی | دَ هغهٔ په حکم | ترد ے چه | هر کله

سره خپله وعده رښتيا کړه څهٔ وخت چه (دَ جنګ په اول کښے) تاسو هغوئ دَ الله تعالیٰ په حکم سره بے دريغه

فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِى الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَاۤ

تاسو کمزوری وُښودله | او تاسو جګړه شروع کړه | په خپل کار کښے | او نافرمانی وُکړه تاسو | پس له دے نه چه

وژل خو چه تاسو بے زړهٔ شوئ او په خپل کار کښے مو جګړه شروع کړه او (دَ پيغمبر) دَ حکم نافرمانی مو وکړه پس دَ هغے نه چه

اَرٰىكُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ؕ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا

وُئے ښودلو تاسو ته | هغه څيز | چه تاسو خوښولو | (څنے) په تاسو کښے | هغه (دے) کوم چه غواړی | دنيا

الله درته ستاسو دَ خوښے څيز (مال غنيمت) وُښودلو ، په تاسو کښے ځنے خلق دَ دُنيا طلب ګار وُو

وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ

او ځنې له تاسو هغه دي | کوم چه غواړي | اٰخرت | بیا یې وګرځولئ تاسو | له هغوی نه | دپاره د دې چه وازمائي تاسو

او ځنې دَ اٰخرت خواهشمند وو، نو تاسو یې دَ کافرانو (دَ تعاقب) نه وګرځولئ چه ستاسو امتحان واخلي

وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵۲﴾

او بیشکه | هغه معاف کړئ | تاسو | او الله | لوئ دَ فضل خاوند دے | په مؤمنانو باندې

او (اوس الله) تاسو ته معافي وکړه ، او الله په مؤمنانو باندې مهربان دے ۔

اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوٗنَ عَلٰٓى اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ

هر کله چه | تاسو لرې تللئ په تیښته کښې | او مخ نه راګرځولو تاسو | دَ چا طرف ته | او پیغمبر ﷺ

(هغه وخت یاد کړئ) کله چه تاسو لرې وتلي وئ او هیچا ته مو پسته نه کتل او پیغمبر ﷺ

يَدْعُوْكُمْ فِيْٓ اُخْرٰىكُمْ فَاَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا

رابللئ تاسو | ستاسو دَ وروستو نه | بیا یې ورسولو تاسو ته | دَ غم په بدله کښې غم | دَ پاره دَ دې چه غمژن نه شئ

درته دَ وروستو نه اٰوازونه کول ، پس (الله ستاسو دَ تربیت دَ پاره) غم دَ پاسه غم درکړو دَ پاره دَ دې چه کوم څیز

عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَآ اَصَابَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ

په هغه څه چه | لاړ شي ستاسو دَ لاس نه | او نه | په هغه څه چه | ورسیږي تاسو ته مصیبت | او الله | باخبره دے

ستاسو دَ لاس نه ووځي یا درته تکلیف ورسي نو چه په هغې غمژن نه شئ ۔ او الله تعالیٰ ستاسو دَ

بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵۳﴾ ثُمَّ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ

په هغه څه | چه کوئ یې تاسو | بیا یې | راولیږلو | په تاسو باندې | پس له | غم نه

کارونو نه خبر دے ۔ بیا دَ دې (لوئ) غم نه پس یې ستاسو په زړونو کښې اطمینان

اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآئِفَةٌ

امن | (یعنی) پرکالی | چه پټوله یې | یوه ډله | له تاسو نه | او یوه ډله (هغه وه)

پیدا کړو چه یو ټولی له خوب جوته ور کوله ، او یوه ډله (دَ منافقینو)

قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ

(چه) هغوی سره فکر وو | دَ خپلو ځانونو | هغوی ګمان کولو | په الله باندې | ناحق | ګمان

ته هغه وخت هم دَ خپلو ځانونو فکر وو ، او دَ الله تعالیٰ په حقله یې په ناحقه دَ جاهلانو په شان

الْجَاهِلِيَّةِ ۗ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ ۗ

دَ جاهلیت | هغوی به ویل | اٰیا | موږ دَ پاره | له دے کار نه | څه څیز (شته)؟

بدګمانیانے کولے ، ویل به یې چه په دے کار کښې موږ ته څه اختیار شته ؟

قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ۗ يُخْفُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

ووایه | بیشکه | کار | ټول | دَ الله دے | هغوی به پټولو | په خپلو زړونو کښې

ووایه (اے نبی ﷺ!) یقیناً ټولے خبرے هم دَ الله په اختیار کښې دي دا خلق په زړونو کښې هغه خبرے پټے ساتي

مَا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ؕ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ

چه نهٔ یې ښکاره کوي | تا ته | وئیل به ئې | که چرې وې | مونږ ته دَ پاره | له دې کاره

کوي چه ستا په وړاندې نهٔ څرګندوي، دوي (په خپل مینځ کښې) وائي که څهٔ اختیار زمونږ په لاس کښې وې نو مونږ

شَیْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُیُوْتِكُمْ

څهٔ څیز | نو نهٔ به ؤ وژل شوي مونږ | دلته | ووایه | که چرې | وئ تاسو | په خپلو کورونو کښې

به دلته نهٔ ؤ وژلي شوي. ورته ووایه چه که تاسو په خپلو کورونو کښې هم ناست وې

لَبَرَزَ الَّذِیْنَ كُتِبَ عَلَیْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰی

خامخا به بهر ته راوتلي ؤ | هغه خلق چه | (په تقدیر کښې) لیکلې وه | په هغوي باندې | وژلې کیدل | په طرف

نو دَ چا په نصیبه کښې چه مرګ لیکلې شوې ؤ، هغوي به دَ خپل مرګ ځایونو

مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِیَبْتَلِیَ اللّٰهُ مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ

دَ ځایونو دَ وژلې کیدلو خپلو | او دَ پاره دَ دې چه وازمائي | الله | هغه څهٔ چه | ستاسو په سینو کښې دي

ته راوتلي ؤ. او دا (معامله) ځکه وشوه چه الله ستاسو دَ سینو پټ رازونه وازمائي، او

وَلِیُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۵۴﴾

او دَ پاره دَ دې چه پاک کړي | څهٔ چه | ستاسو په زړونو کښې دي | او الله | ښهٔ پیژني | رازونه | دَ سینو

ستاسو دَ زړونو درغلتیا صفا کړي ، او الله ته دَ زړونو راز ډیر ښهٔ معلوم دې

اِنَّ الَّذِیْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ یَوْمَ الْتَقَی الْجَمْعٰنِ ۙ

بیشکه | هغه خلق چه | مخ ئې وګرځولو | له تاسو نه | په هغه ورځ | چه یو بل ته مخامخ شوې | دواړه ډلې.

په تاسو کښې چه کوم خلقو (دَ اُحد دَ جنګ په ورځ) دَ جنګ نه مخ اړولې وو هرکله چه دواړه ډلې یو بل ته مخامخ

اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّیْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا ۚ وَلَقَدْ

بیشکه چه | ونښویول هغوي | شیطان | په سبب دَ ځنې هغو عملونو | کوم چه هغوي کړي ؤ | او بیشکه

شوې، نو دا ځکه چه شیطان دَ هغوي دَ ځنو عملونو په وجه دَ هغوي قدمونه خویولي وو ، الله دَ

عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِیْمٌ ﴿۱۵۵﴾

معاف کړل | الله | هغوي لره | بیشکه | الله | .بخښونکې | دَ زغم خاوند دې

دَ هغو خلقو ګناه معاف کړه او الله یقینًا .بخښونکې دَ زغم خاوند دې.

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَقَالُوْا

اې | دَ ایمان خاوندانو! | مهٔ کیږئ | په شان دَ هغو خلقو | چه کافر شول | او وئې وئیل

اې مؤمنانو! دَ کافرانو په شان خبرې مهٔ کوئ چه دَ

لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِی الْاَرْضِ اَوْ كَانُوْا غُزًّی لَّوْ كَانُوْا

خپلو ورونړو ته | هرکله چه هغوئي سفر وکړو | په زمکه کښې | یا هغوي ؤو | په جهاد کښې | که چرې وې هغوي

هغوئي خپل خپلوان چرته په سفر ووځي یا غزا له لاړ شي (او مړهٔ شي) نو هغوئي وائي که چرې

عِندَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا ۚ لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً

موږ سره | نو نه به مړه کېدل | او نه به وژلے کېدل | چه وګرځوی | الله | دا (خبره) | ارمان

دوئ دلته موږ سره پاتے وے نو مړه شوی او وژلے شوی به نه وو، دا سے خبرے الله د هغوئ په زړونو کښے د حسرت

فِي قُلُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

د هغوی په زړونو کښے | او الله | ژوندی کوی | او مړه کوی | او الله | هغه څه ته چه تاسو کوئ

پیدا کولو سبب ګرځوی، او الله ژوندی کول او وژل کوی ، او الله تعالیٰ ستاسو کارونه

بَصِيرٌ ﴿١٥٦﴾ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ

ګوری | او که چرے | تاسو وژلے شئ | د الله په لاره کښے | یا مړه شئ | خامخا بخښنه

وینی ګوری۔ او که تاسو د الله په لاره کښے ووژلے شئ یا مړه شئ نو د الله د طرف نه

مِّنَ اللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿١٥٧﴾ وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ

د الله د طرف نه | او (د هغه) رحمت | ډیره ښه دے | له هغه څه نه | چه هغوی جمع کوی | او که چرے مړه شوئ | یا

مغفرت او رحمت د هغه ټول مال نه ډیر ښه دے کوم چه دا خلق راغونډوی۔ او که تاسو مړه شئ یا

قُتِلْتُمْ لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴿١٥٨﴾ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ

ووژلے شوئ | نو خامخا به د الله طرف ته | راجمع کړے شئ | پس په سبب د مهربانئ سره | له طرفه د الله نه

ووژلے شئ نو په هر حال الله ته به راټول شئ۔ (اے پیغمبره!) دا د الله تعالیٰ مهربانی ده

لِنتَ لَهُمْ ۖ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا

نرم شوے ته | د هغوی د پاره | او که چرے | وے ته | سخت خویه | د سخت زړه خاوند | نو هغوی (ټول) به پاشېدلی وو

چه ته د دے خلقو ته ډیر زیات نرم یئے او که ته تیز خویه سنګدله وے نو ټول خلق به ستا د خوا وشانه

مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ

ستا د خوا وشا نه | پس معاف کړه ته | هغوی | او بخښنه وغواړه | هغوی د پاره | او مشوره کوه هغوی سره

تښتیدلی وو ، نو د دوئ قصورونه معاف کړه او د دوئ په حقله د بخښنے دعا وغواړه او په معاملو کښے

فِي الْأَمْرِ ۖ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ

(په اهمه) معامله کښے | بیا هر کله چه | ته پخه اراده وکړے | نو توکل وکړه | په الله باندے | بیشکه | الله

د دوئ سره هم مشوره کوه خو هر کله چه د څه خبرے پخه اراده وکړے نو بیا په الله توکل کوه۔ یقیناً توکل کوونکی کسان

يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴿١٥٩﴾ إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ

دوست لری | توکل کوونکی | که چرے مدد درکړی تاسو ته | الله | پس نشته دے هیڅوک غالب کیدونکے

د الله تعالیٰ ډیر خوښ دی ۔ که الله تعالیٰ ستاسو مدد کوی نو هیڅ طاقت په تاسو غالب

لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ

په تاسو | او که چرے | هغه پریږدی تاسو | پس څوک دے هغه چه | مدد به درکړی تاسو ته | پس له ده نه

نه شی راتلے او که الله تعالیٰ مو یوازے پریږدی نو بیا بل داسے څوک کیدے شی چه د هغه نه پس به تاسو له مدد درکړی

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٦٠﴾ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ

او په الله باندې | پس توکل دِ وکړي | مؤمنان | او نهٔ دهٔ (ممکنه) | نبي دَ پاره

او په الله تعالیٰ باندې توکل کوي . او دَ هیڅ يو نبي دا کار نهٔ دے

او پکار دی چه مؤمنان

اَنْ يَّغُلَّ ؕ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ

چه خیانت وُکړي | او څوک چه خیانت وکړي | نو هغه به راوړي | هغه څیز چه خیانت کړے ئے دے | په ورځ دَ قیامت

چه هغه دِ خیانت وُکړي او څوک چه خیانت وکړي نو هغه څیز به دَ قیامت په ورځ ځان سره راوړي

ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿١٦١﴾

بیا | په پوره ورکړے شي | هر نفس ته | کوم چه هغهٔ کړي وي | او په هغوی | به ظلم نهٔ شي کولے .

بیا به هر چا ته دَ خپل عمل پوره پوره بدله ورکولے شي او به هیچا به هیڅ زیاتے نهٔ کیږي

اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ

نو ایا چا چه | پیروي وُکړه | دَ الله دَ رضا | هغه (به وي) په شان دَ هغه چا چه راغلو | په غضب کښے | دَ الله

نو ایا څوک چه دَ الله په رضا چلیږي دَ هغه چا په شان کیدے شي په چا چه دَ الله غضب شوے وي

وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿١٦٢﴾ هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ

او ځائے دَ هغهٔ | دوزخ دے | او هغه (ډیر) بد دے | ځائے دَ (واپس) ورتلو | دَ هغوی (ټولو) درجے دي | الله سره .

او دوزخ دَ هغهٔ ټیکاونړه وي ؟ او هغه ډیر خراب ځائے دے' الله سره دَ خلقو جدا جدا درجے دي .

وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٣﴾ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ

او الله | ګوري | هغه څهٔ چه هغوی ئے کوي | بیشکه | احسان وکړو | الله

او الله تعالیٰ دَ هغوی کاروبار ګوري . الله تعالیٰ واقعي په مؤمنانو باندې ډیر لوئے

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ

په مسلمانانو | هر کله چه راوُئے لیږلو | په هغوی کښے | يو پیغمبر | هم له هغوی نه

احسان کړے دے ' چه په دوی کښے ئے دَ دوی (دَ خپل قوم) نه يو پیغمبر رالیږلے دے

يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ

چه تلاوت کوي | په هغوی | دَ هغهٔ ایتونه | او پاکوي هغوی | او زده کوي هغوی ته | کتاب

چه هغه ورته دَ الله تعالیٰ ایتونه اوُروي او دَ دوی (زړونه) پاکوي او دوئ ته دَ کتاب او حکمت

وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿١٦٤﴾ اَوَلَمَّآ

او علم | او بیشکه هغوی وُو | دَ دے نه وړاندې | په ښکاره ګمراهئ کښے | ایا هر کله چه

تعلیم ورکوي ، او دَ دے نه وړاندې خو دا خلق په ښکاره ګمراهئ کښے پراته وو . او کله چه (دَ اُحد په

اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ۙ قُلْتُمْ اَنّٰى

وُرسیده تاسو ته | مصیبت | چه رسولے دے تاسو | دَ هغے نه دوچند | نو وُ وئیل تاسو | چه کوم ځائے نه

جنګ کښے) په تاسو باندې مصیبت راغلو دا سے مصیبت چه دَ دے نه دوچند تاسو په هغوی باندې (دَ بدر په جنګ کښے) راوستے وو نو تاسو ووئیل چه

الصّف

هٰذَا ؕ قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ

(راغلو) دا ؟ | ووایه | هغه | خپله ستاسو دَ طرف نه راغلو | بیشکه | الله | په هر څیز بانې

داد کوم ځائے نه راغے، ووایه چه دا تاسو پخپله په ځان راوستے دے ، بیشکه الله تعالیٰ په هر څه

قَدِیْرٌ ﴿١٦٥﴾ وَمَاۤ اَصَابَكُمْ یَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ

قادر دے | او کوم چه | ورسیدو تاسو ته مصیبت | په هغه ورځ چه | یو بل ته مخامخ شوے | دواړه ډلے

قدرت لری۔ او کوم مصیبت چه په تاسو بانې په هغه ورځ راغے هرکله چه دواړه ډلے (په اُحد کښے) یو بل ته مخامخ شوے

فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِیَعْلَمَ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿١٦٦﴾ وَلِیَعْلَمَ

پس په حکم دَ الله سره | او دَ پاره دَدے چه معلوم کړی | مؤمنان | او دَ پاره دَدے چه معلوم کړی

نو دا هم دَ الله په حکم سره وو چه الله مؤمنان ښکاره کړی۔ او منافقان هم بیل

الَّذِیْنَ نَافَقُوْا ۚۖ وَقِیْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ

هغه خلق چه | منافقان شول | او ووئیلے شو | هغوی ته | راشئ | وجنګیږئ | په لاره کښے دَ الله

کړی (هغه منافقان) چه ورته ووئیلے شو چه راشئ دَ الله تعالیٰ په لار کښے جنګ وکړئ

اَوِ ادْفَعُوْا ؕ قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّا اتَّبَعْنٰكُمْ ؕ هُمْ لِلْكُفْرِ

یا دفع کړئ کافران | هغوی ووئیل | که چرے مونږ پوهیدلے | په جنګ کولو | نو خامخا به پیروی کړے وه مونږ ستاسو | هغوی خو کفر ته

یا (دُښمن) دفع کړئ؛ نو هغوی دو ئیل که مونږ ته معلومه وے چه (نن) جنګ دے نو مونږ به خامخا درپسے درغلی وو۔ دَدے وینا

یَوْمَئِذٍ اَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْاِیْمَانِ ۚ یَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ

په دغه ورځ | ډیر نزدے شول | په نسبت (دَدے چه وی) هغوی ایمان ته (نزدے) | هغوی وائی | په خپلو خلو

په وخت هم هغوئی دَ ایمان په نسبت کفر ته زیات نزدے وو۔ دوئی په خلے هغه خبرے کوی، چه په

مَّا لَیْسَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا یَكْتُمُوْنَ ﴿١٦٧﴾

هغه څه چه نه دی | دَ هغوی په زړونو کښے | او الله | زیات پوهه دے | په هغه کوم چه | هغوی پټوی

زړونو کښے ئے هغه نه وی او کوم خبرے چه دوئی پټوی هغه الله ته ډیرے ښے معلومے دی۔

اَلَّذِیْنَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوْا لَوْ اَطَاعُوْنَا

دا هغه خلق دی کوم چه | ووئیل | خپلو ورونړو ته | او په خپله ناست وو له جنګ نه | که چرے هغوی زمونږ خبره مَنلے

دا هغه خلق دی چه پخپله خو ناست پاتے شول او دَ خپلو ورونړو په حقله ئے ووئیل چه که زمونږ خبره ئے منلے

مَا قُتِلُوْا ؕ قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ

نو نه به وو قتل شوی | ووایه | دفع کړئ تاسو | له خپله ځانه | مرګ | که چرے | یئ تاسو

وے نو وژلی شوی به نه وُو۔ ورته ووایه، که چرے تاسو په دے وینا کښے رښتونی یئ نو دَ خپل ځان نه مرګ

صٰدِقِیْنَ ﴿١٦٨﴾ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ قُتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ

رښتونی | او ګمان مهٔ کوه | په هغو خلقو چه | ووژلے شول | دَ الله په لاره کښے | دَ مړو

دفع کړئ۔ او څوک چه دَ الله په لار کښے وژلے شوی دی ، هغوی هیڅکله مړی مهٔ ګڼړه

بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ﴿۱۶۹﴾ فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ
بلکه ژوندی دی | دَ خپل رب سره | هغوی ته روزی ورکوله شي | خوشحاله دی | په هغه څه چه ورکړی دی هغوی ته الله
بلکه هغوی خپل رب سره ژوندی دی رزق ورته ورکولے شي. (او) الله تعالیٰ چه دَ خپل فضل نه هغوی ته څه ورکړی
مِنْ فَضْلِهٖ ۙ وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ
له خپل فضل نه | او هغوی خوشحالیږی | دَ هغو خلقو (په نسبت) | چه لا نه دی یو ځاے شوی | دَ هغوی سره
دی په هغے خوشحاله دی. او دَ هغو خلقو په نسبت خوشحالی کوی چه لا دروستو (په دنیا کښے) دی او هغوی
مِّنْ خَلْفِهِمْ ۙ اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۷۰﴾
له هغوی نه وردستو | چه نشته دے | (هیڅ) خوف | په هغوی | او نه هغوی | به غمژن شي
سره (په برزخ کښے) ملاو نه دی، هغوی له نه څه ویره شته، او نه به خفه کیږی.
يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ
هغوی خوشحالیږی | دَ الله په انعام | او فضل | او (په دے خبره) چه الله | نه ضائع کوی
هغوی دَ الله تعالیٰ په نعمت او فضل ډیر خوشحاله دی. او په دے خبره چه الله تعالیٰ دَ مؤمنانو
اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷۱﴾ اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ
اجر | دَ مؤمنانو | کوم خلق چه | حکم ومنلو | دَ الله | او دَ رسول
اجر نه ضائع کوی. چاچه دَ زخم خوړلو نه پس هم دَ الله او رسول
مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ۛ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ
پس له هغے نه چه | ورسیدلو هغوی ته | زخم | دَ هغو (لوی) دَ پاره چاچه | نیکی وکړه | دَ هغوی نه
په آواز باندِ ځان حاضر کړو، په هغوی کښے چه کوم نیکان او پرهیزګاران
وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۲﴾ اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ
او پرهیزګاری ئے وکړه | اجر دے | ډیر لوئے | هغه خلق چه | ووئیل هغوی ته | خلقو | چه بیشکه | (مخالفو) خلقو
دی هغوی له لوئے اجر مقرر دے، داهغه (مؤمنان) دی چا ته چه خلقو ووئیل چه کوم (دَ مکے) کافرانو
قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖ وَّقَالُوْا
جمع کړے دے (لښکر) | دَ پاره ستاسو | پس ووېرېږئ دَ هغوی نه | نو هغوی نور زیات شول | په ایمان کښے | او هغوی ووئیل
ستاسو په مقابله کښے فوج جمع کړے دے دَ هغوی نه ووېرېږئ نو دِے خبرے دَ هغوی ایمان نور زیات کړو او وئے وئیل
حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ﴿۱۷۳﴾ فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ
کافی دے مونږ دَ پاره | الله | او هغه ډیر ښهٔ کارساز دے | بیا هغوی واپس شول | دَ الله په احسان | او فضل سره
چه مونږ له الله بوازے بس دے او هم هغه بهترین کارساز دے. پس هغوی دَ الله په نعمت او دَ هغهٔ په فضل سره کامیاب
لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ
ونهٔ رسیدلو هغوی ته | (څهٔ) تکلیف | او پیروی وکړه هغوی | دَ رضامندئ دَ الله | او الله
واپس شول، هغوی ته څهٔ تکلیف هم ونهٔ رسیدو او دَ الله دَ رضا کارئے هم وکړو. او الله

وقف لازم
ع ۸ / ۱۶
مع ۲

ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ ﴿١٧٤﴾ إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ الشَّيْطَٰنُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَآءَهُۥ

خاوند د لوئے فضل دے | بیشکه چه | دا (خبرورکوونکے) | شیطان دے | چه ویروی | دوستان خپل

د یر لوئے فضل خاوند دے. یقین وکړئ دا هم شیطان دے چه تاسو د خپلو دوستانو نه ویروی -

فَلَا تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧٥﴾ وَلَا يَحْزُنكَ

پس مه ویریږئ تاسو د هغوی نه | او ویریږئ له ما نه | که چرې یئ تاسو | مؤمنان | او غمژن دې نه کړی تا

نو تاسو د هغوئ نه هرګز مه ویریږئ او (صرف) هم ما نه ویره کوئ که چرې تاسو واقعی مؤمنان یئ. او (اے نبی!) ته د هغو

الَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِى الْكُفْرِ ۚ إِنَّهُمْ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْـًٔا ۗ

هغه خلق کوم چه | زغلی | په کفر کښے | بیشکه هغوی به | هیڅ کله نقصان ونه رسوی شی | الله ته | هیڅ هم

خلقو په کار و تو مه غمژن کیږه څوک چه د کفر په اختیارولو کښے تلوار کوی دوئ هیڅ کله د الله هیڅ تاوان نه شی کولے.

يُرِيدُ اللَّهُ أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِى الْءَاخِرَةِ ۖ وَلَهُمْ

الله غواړی | چه نه | جوړ ئے | هغوی د پاره | (څه) برخه | په آخرت کښے | او هغوی د پاره

الله دا غواړی چه په آخرت کښے ورله هیڅ برخه ورنه کړی - او هغوئ له

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَٰنِ

عذاب دے | ډیر لوئے | بیشکه | کوم خلقو چه | واخستو | کفر | په بدله د ایمان کښے

لوئے عذاب مقرر دے. چا چه د ایمان په بدله کښے کفر په بیعه اخستے دے.

لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْـًٔا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٧﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ

هغوی به هیڅ کله زیان ونه رسوی | الله ته | هیڅ | او هغوی د پاره | عذاب دے | دردناک | او خیال دې نه کوی

هغوی یقیناً د الله تاوان نه شی کولے، او هغوی له دردناک عذاب مقرر دے. او کافران دې دا

الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِى لَهُمْ خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ ۚ

هغه خلق چه | کافران دی | چه زموږ مهلت ورکول | هغوی ته | بهتر دی | د هغوئ د ځانونو د پاره

خیال نه کوی چه کومه موږ دوئ له د بهتری د پاره مهلت ور کوو

إِنَّمَا نُمْلِى لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿١٧٨﴾

بیشکه موږ خو مهلت ورکوو هغوی ته | چه هغوی نور زیات وکړی | ګناهونه | او هغوی د پاره | عذاب دے | سپکوونکے

دا مهلت خو موږ ځکه ورکوو چه هغوی په ګناهونو کښے نور زیات شی او هغوئ له سپکوونکے عذاب مقرر دے

مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ

الله به هیڅ کله پرے نږدی | مؤمنان | په هغه (حال) | چه تاسو یئ په هغے باندې | ترڅو چه

دا نه شی کیدے چه الله تعالیٰ مؤمنان په دا سے حالت کښے پریږدی کوم چه (ننن صبا) ستاسو دے بلکه

يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ

جدا کړی | ناپاک | له پاک نه | او الله (هیڅکله) نه دے چه | خبر دار کوی تاسو ته

هغه به پاک او پلیت خلق جدا کوی - او د هغه دا طریقه هم نه ده چه تاسو ټول د غیبو په خبرو

عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِىْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَآءُ

په غيب باندې | او ليکن | الله | غوره کوي | له خپلو رسولانو نه | څوک چه وغواړي

خبر کړي ، د دې دپاره الله په خپلو پيغمبرانو کښې چه څوک غواړي هغه غوره کوي

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ

پس ايمان راوړئ | په الله | او د هغه په پيغمبرانو | او که چرې | ايمان راوړئ تاسو | او پرهيزګاري وکړئ تاسو | نو تاسو ته

نو تاسو په الله او په پيغمبرانو باندې ايمان راوړئ او که د ايمان او پرهيزګارئ په لار روان وسيږئ نو ډير لوئ اجر به

اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿١٧٩﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ

ثواب دے ، ډير لوئے | او هرګز دې خيال نه کوي | هغه خلق چه | شومتيا کوي | په هغه څه چه ورکړل هغوئ ته الله

بيا مومئ . او په چا چه الله د مال نضل کړے دے او هغوئ پکښې شومتيا کوي

مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ۭ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۭ سَيُطَوَّقُوْنَ

له خپل فضل نه | چه هغه بهتر دی | د هغوئ دپاره | بلکه | هغه (خو) | بد دی | هغوئ دپاره | زر به طوق واغوندے شي هغوئ

نو دا خيال دې نه کوي چه شومتيا ورله بهتره ده بلکه دا ډیر په حقله نقصان دے ، د غه د شومتيا مال

مَا بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ

د هغه څه | په کوم کښې چه هغوئ شومتيا کړے ده | په ورځ | د قيامت | او هم د الله دپاره دے | ميراث

به ورته د قيامت په ورځ د غاړے تيبزندئ کړے شي . او د اسمانونو او زمکو ټول ميراث

اَلسَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿١٨٠﴾ لَقَدْ ع ١٩ ٩

د اسمانونو | او د زمکے | او الله | د هغه څه نه | چه تاسو کوئ | (ښه) خبردار دے | يقينًا

يوازے د الله تعالىٰ دے . او الله ستاسو په کارونو ښه خبر دے ، بيشکه

سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ

اوريدلے ده الله | خبره | د هغو خلقو چه | دوئ وئيل | بيشکه الله | محتاج دے | او مونږ

الله د هغه خلقو خبره واوريده چه دائ ووئيل چه الله محتاج دے او مونږ غنيان

اَغْنِيَآءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَقَتْلَهُمُ الْاَنْبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وقف لازم

غنيان يو | زر دے چه مونږ به وليکو | هغه څه چه | هغوئ ووئيل | او قتلول د هغوئ | پيغمبرانو لره | په ناحقه

يو . مونږ به د دوی دا خبره هم وليکو او (دا هم ليکلی ګی) چه دوی به په ناحقه پيغمبران وژلے -

وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿١٨١﴾ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ

او مونږ به ووايو | وڅکئ | عذاب | سوزوونکے | دا (بدله) ده | د هغه څه | چه وړاندې وليږل

او چه وخت راشی نو) ورته به ووايو چه اوس د اور د عذاب خوند وڅکئ . دا ستاسو د خپلو لاسونو رالیږلے

اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿١٨٢﴾ ۚ اَلَّذِيْنَ قَالُوْا

ستاسو لاسونو | او چه | الله (خو) | نه دے | ظلم کوونکے | په بندګانو | کوم خلقو چه | ووئيل

ګټه ده او الله د بنديانو په حقله يو ذره ظالم نه دے . څوک چه دا وائی چه الله

اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا

چه الله (خو) | موږ ته وعده اخستې ده | چه موږ ایمان رانه وړو | په یو رسول باندې | ترهغه وخته پورې چه | راوړي موږ ته

موږ نه وئیلي دي چه په هیڅ یو پیغمبر د ترهغه ایمان نه راوړو چه (اول) هغه زموږ په وړاندې

بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ؕ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِىْ

قرباني | چه وخوري هغه | اور | ووایه | بیشکه راغلي وو تاسو ته | پیغمبرانو | له ما نه وړاندې

داسې قرباني ونه کړي چه (د غیبو) اور راشي او هغه وخوري ورته ووایه چه زما نه وړاندې پیغمبرانو تاسو ته ښکاره نښې

بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِىْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ

معجزې | او هغه څه چه | ووئیل تاسو | پس ولې | ووژل تاسو هغوی | که چیرې | یئ تاسو

راوړې وې او هغه نخښه هم راوړې وه چه تاسو غوښتې نو هغوی مو ولې ووژل؟ که تاسو رښتیني

صٰدِقِيْنَ ﴿١٨٣﴾ فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ

رښتیا ویونکي | پس که چیرې | هغوی تا دروغجن وګڼي | نو دروغجن ګڼلي شوي وو | پیغمبران | وړاندې له تانه

یئ. که اوس دوی تا دروغجن ګڼي، نو تانه وړومبې هم ډیر پیغمبران دروغجن ګڼلي شوي

جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿١٨٤﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ

راوړي وو هغوی | روښانه دلیلونه | او صحیفې | او کتاب | روښانه | هر یو نفس | څکونکې د

دي، چه هغوی ښکاره نخښې او صحیفې او روښانه کتاب راوړې وو - هر ژوندی به یو ځل

الْمَوْتِ ؕ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ فَمَنْ

مرګ دې | او بیشکه چه پوره پوره به درکړې شي تاسو ته | اجرونه ستاسو | په ورځ | د قیامت | پس څوک چه

مري - او تاسو ته به خپل پوره اجر د قیامت په ورځ درکولې شي نو څوک چه

زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ

به لرې وساتلې شي | له اور نه | او داخل به کړې شي په جنت کښې | پس بیشکه هغه کامیاب شو | او نه دې | ژوند

د دوزخ د اور نه بچ شي، او جنت ته داخل شي، هغه کامیابه شو - او د دنیا ژوند تو رڅه نه

الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿١٨٥﴾ لَتُبْلَوُنَّ فِىْٓ اَمْوَالِكُمْ

د دنیا | مګر | سامان | د دوکې | تاسو به خامخا وازمائیلې شئ | په خپلو مالونو کښې

دی خو څرګنده دوکه ده - (مسلمانانو!) ستاسو د مالونو او ستاسو د سرونو

وَاَنْفُسِكُمْ ۚ قف وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

او په خپلو ځانونو کښې | او خامخا به واورئ | د هغو خلقو نه | چه ورکړې شوې دې هغوی ته | کتاب

ازمیښت به خامخا کیږي، او تاسو به د هغې خلقو نه چه پخوا ورته کتاب ورکړې شوې دې

مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى كَثِيْرًا ؕ وَاِنْ

له تاسو نه وړاندې | او له هغه خلقو نه | چه مشرکان دي | د اذیت (خبرې) | ډیرې | او که چیرې

او د مشرکانو د خولې نه ډیرې تکلیف رسوونکې خبرې اورئ، او که

تَصۡبِرُوۡا وَتَتَّقُوۡا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ الۡاُمُوۡرِ ﴿۱۸۶﴾ وَاِذۡ

تاسو صبر وکړئ | او پرهیزګاري وکړئ | نو بیشکه | دا | دَ لوئے همت | کار دے | او هر کله چه

تاسو صابره پاتے شئ او ځان بچ وساتئ نو دا د یر دَ اوچتے حوصلے کار دے ۔ او (یاد کړه) هر کله

اَخَذَ اللّٰهُ مِيۡثَاقَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ

واخستو | الله | اقرار | هغو خلقو نه چه | ورکړے شوے وو | کتاب | چه خامخا بیانوئ هغه | خلقو ته

چه الله دَ هغو خلقو نه کوم چه اهل کتاب دی داوعده اخستے وه چه تاسو له دَ دے (کتاب تعلیمات) په خلقو

وَلَا تَكۡتُمُوۡنَهٗ فَنَبَذُوۡهُ وَرَآءَ ظُهُوۡرِهِمۡ وَاشۡتَرَوۡا

او مهٔ | پټوئ هغه | نو وغورځوله هغوی هغه | دَ خپلو شاګانو نه وروستو | او واخستلو هغوی

بانډ واضحه کول دی او پټ به ئے نهٔ ساتئ خو هغوی دا وعده شا ته وغورځوله او دَ الله کتاب ئے په

بِهٖ ثَمَنًا قَلِيۡلًا ؕ فَبِئۡسَ مَا يَشۡتَرُوۡنَ ﴿۱۸۷﴾ لَا تَحۡسَبَنَّ

دَ دے په بدله کښے | قیمت | لږ | پس (ډیر) بد دے | څه چه | هغوی اخلی | تهٔ هیڅ کله خیال مهٔ کوه

لږ قیمت خرڅ کړو ، او ډیره خرابه سودا ئے وکړه ۔ ځوک چه په خپلو (بدو)

الَّذِيۡنَ يَفۡرَحُوۡنَ بِمَاۤ اَتَوۡا وَّيُحِبُّوۡنَ اَنۡ يُّحۡمَدُوۡا

په هغو خلقو | چه خوشحالیږی | په هغه څه چه | هغوی کوی | او خوښوی | چه دَ هغوی تعریف دِ وشی

کارونو خوشحالیږی او دا غواړی چه په داسے کارونو دَ هغوی مدح ووئیلے شی

بِمَا لَمۡ يَفۡعَلُوۡا فَلَا تَحۡسَبَنَّهُمۡ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الۡعَذَابِ ۚ

په هغه څه چه | هغوی نهٔ دی کړی | پس ګمان مهٔ کوه په هغوی باندِ | په خلاصی کښے | له عذاب نه

کوم چه هغوی کړی نهٔ وی ، نو تهٔ دا خیال مهٔ کوه چه هغوئ ګنے دَ عذاب نه خلاص شول او دَ

وَلَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۱۸۸﴾ وَلِلّٰهِ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ

او هغوی له | عذاب دے | دردناک | او الله دَ پاره دهٔ | بادشاهی | دَ آسمانونو | او زمکے

هغوئ دَ پاره خو دردناک عذاب مقرر دے ۔ او دَ آسمانونو او زمکے مالک یوازے الله دے

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿۱۸۹﴾ اِنَّ فِىۡ خَلۡقِ السَّمٰوٰتِ ع ۱۹ ۹ ۱۰

او الله | هر څیز باندِ | قادر دے | بیشکه | په پیدا کولو کښے | دَ آسمانونو

او الله په هر څهٔ قدرت لری ۔ دَ آسمانونو او دَ زمکے په پیدا کیدو

وَالۡاَرۡضِ وَاخۡتِلَافِ الَّيۡلِ وَالنَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّاُولِى الۡاَلۡبَابِ ﴿۱۹۰﴾

او زمکے | او په اختلاف | دَ شپے | او ورځے کښے | خامخا نخښے دی | دَ عقلمندو دَ پاره

کښے ، او دَ شپے و ورځے پرله پسے په تلو راتلو کښے دَ هغه عقلمندو دَ پاره ډیرے نخښے دی

الَّذِيۡنَ يَذۡكُرُوۡنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوۡدًا وَّعَلٰى جُنُوۡبِهِمۡ

هغه خلق چه | یادوی | الله | په ولاړه | او په ناسته | او په خپلو اړخونو

چه په ولاړه ، په ناسته او په اړخ (هر حال کښے) الله تعالیٰ یادوی

وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا

او فکر کوی | په پیدا وښت کښې | د آسمانونو | او د زمکې | اے زمونږ ربه

او د آسمانونو او د زمکې په پیدا وښت کښې فکر کوی (او دا وائی) چه اے زمونږ رب

مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾

نه دی پیدا کړی تا | دا | عبث | پاک یې ته | پس وساته مونږ | له عذاب | د اور نه۔

دا عجیبه څیزونه تا بے فائدے نه دی پیدا کړی ته (د هر عیب نه) پاک یې پس مونږ د اور د عذاب نه بچ کړه۔

رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ؕ وَمَا

اے زمونږ ربه! | بیشکه تا | چه څوک | داخل کړل | اور ته | پس بیشکه رسوا کړل تا هغوی | او نشته دے

اے زمونږ ربه! تا چه څوک په دوزخ کښې واچولو نو هغه تا ډیر وشرمولو۔ او د (داسے)

لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۱۹۲﴾ رَبَّنَآ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا

د ظالمانو | څوک مددګار | اے زمونږ ربه! | یقینًا | مونږ واورېدلو | یو آواز کوونکے

ظالمانو د پاره څوک مددګار نشته۔ اے زمونږ ربه! مونږ د یو آواز کوونکی آواز واورېدو چا چه

يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا

چه بلنه کوی | ایمان طرف ته | چه | ایمان راوړئ | په خپل رب باندې | بیا مونږ ایمان راوړو | اے زمونږ ربه

د ایمان طرف ته بلنه کوله، چه په خپل رب باندې ایمان راوړئ پس مونږ ایمان راوړو، اے زمونږ ربه!

فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا

پس معاف کړه | مونږ ته | زمونږ ګناهونه | او لرے کړه | مونږ نه | بدئ زمونږه | او وفات کړه مونږ

زمونږ ګناهونه وبخښه، او زمونږ بدیانے زمونږ نه لرے کړه، او د نیکانو د ټولی

مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾ رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ

د نیکانو سره | اے زمونږ ربه! | او راکړه مونږ ته | د څه چه | تا وعده کړے ده مونږ سره | د خپلو رسولانو په ژبه باندې

سره مو خاتمه وکړه۔ اے ربه زمونږ! کومے وعدے چه تا مونږ سره د پیغمبرانو په ژبه کړی دی هغه راسره پوره کړه

وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾ فَاسْتَجَابَ

او مه رسوا کوه مونږ | په ورځ | د قیامت | بیشکه ته | خلاف نه کوے | د خپلے وعدے | پس قبوله کړه دعا

او د قیامت په ورځ مو شرم پردہ وساته، بیشکه چه ته د خپلے وعدے خلاف نه کوے، نو الله تعالی د

لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّيْ لَآ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ

د هغوی | د هغوی رب | چه زه | نه | ضائع کوم | عمل | د هیڅ عمل کوونکی | له تاسو نه

هغوی دعا قبوله کړه (او ورته ئے وویل) چه زه به تاسو کښې د هیچا عمل نه ضائع کوم

مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِيْنَ

سړے وی | یا | ښځه | ځنے له تاسو له جنس د ځنو نه دی | بیا هغو خلقو چا چه

که نارینه وی او که زنانه، تاسو ټول د یو بل جزء یئ۔ نو هغه خلق کوم چه

هَاجَرُوْا وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِيْ سَبِيْلِيْ

هجرت وُکړو | او وُويستلے شول | دَ خپلو کورونو نه | او تکليف ورکړے شو هغوئ ته | په لاره کښې زما

او دَ خپلو کورونو نه وِيستلے شوی دی او زما په لاره کښې ئے تکليفونه اُوچت کړی دی

هجرت وُکړو

وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ

او هغوی جنگ وُکړو | او وُوژلے شول | زۀ به خامخا لرے کړم | دَ هغوئ نه | گناهونه دَ هغوی | او خامخا به داخل کړم هغوی

او کوم چه جنگ وُکړو او ووژلے شول، زۀ به خامخا دَ هغوی گناهونه معاف کړم او دا سے باغونو ته به ئے

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ

په جنتونو کښې | بهيږی به | دَ هغے نه لاندِ | نهرونه | بدل له دَه | له طرفه دَ الله نه

ور داخل کړم چه دَ هغے لاندِ نهرونه بهيږی، الله سره دَ هغوی ثواب مقرر دے

وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ۝۱۹۵ لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ

او هم الله سره دے | ښۀ | ثواب | او دو که کښے دِ دُنۀ غورزوی تا | گرځيدل راگرځيدل

او ښۀ ثواب هم دَ الله سره پروت دے۔ دَ هغو خلقو کوم چه دَ کفر لار اختيار کړے دہ په ملکونو

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ۝۱۹۶ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ثُمَّ مَاْوٰىهُمْ

دَ کافرانو | په ښارونو کښے | دا فائده دہ لږه | بيا | ځائے دَ هغوی دے

کښے (په عيش وعشرت سره) گرځيدل راگرځيدل تا په دو که کښے وُنۀ غورزوی۔ دا دَ يو څو ورځو مزے دی بيا دَ هغو ټيکانړه

جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝۱۹۷ لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ

دوزخ | او خراب دے (هغه) | ځائے | ليکن | هغه خلق چه | وُويريدل | دَ خپل ربه | دَ هغوی دِپاره

دوزخ دے، او هغه ډيره خرابه ټيکاونړه دہ۔ ليکن څوک چه دَ الله نه ويريږی، هغوی له داسے باغونه

جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا نُزُلًا

جنتونه دی | چه روان دی | دَ هغے لاندِ | نهرونه | هغوی به هميشه وی | په هغے کښے | ميلمستيا

نيا دی چه دَ هغے لاندِ به نهرونه بهيږی، هغوی به هميشه پکښے اُوسيږی۔ دا دَ الله

مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ۝۱۹۸ وَاِنَّ

له طرفه دَ الله نه | او څۀ چه | دَ الله سره دی | (هغه) ډير ښۀ دی | دَ نيکانو دَ پاره | او بيشکه

دَ طرف نه ميلمستيا دہ، او دَ الله تعالیٰ سره چه څۀ دی هغه دَ نيکانو دَ پاره ډير ښۀ دی۔ او په

مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ

دَ اهل کتابو نه | خو هغه (هم) دی | چه ايمان راوړی | په الله | او په هغه څۀ چه | نازل کړے شو

اهل کتابو کښے يقيناً داسے خلق هم دی کوم چه په الله تعالیٰ باندِ او په هغه کتاب باندِ کوم چه په تا

اِلَيْكُمْ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ

ستاسو طرف ته | او په هغه څۀ چه | نازل کړے شول | دَ هغوی طرف ته | عاجزی کوونکی | الله ته

نازل شوے دے او په هغه کتابونو کوم چه (له تاسو نه وړاندِ) نازل شوی دی ايمان لری داسے چه الله تعالیٰ ته عاجزی کوی

لَا يَشْتَرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ

نهٔ اخلی | په بدله دَ ایتونو دَ الله | قیمت | لږ | هم دَ هغوی دَ پاره دے | ثواب دَ هغوی

دَ خدائے ایتونه (د دنیا) په لږ قیمت نهٔ خرڅوی ، دَ هغو خلقو دَ پاره دَ هغوی دَ رب سره

عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹۹﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا

دَ هغوی دَ رب سره | بیشکه | الله | زر حساب اخستونکے دے | اے دَ ایمان خاوندانو! | صبر وکړئ

اجر دے ، یقین وساتئ چه الله تعالیٰ ډیر زر حساب اخستونکے دے ۔ اے مؤمنانو! صبر کوئ یو بل په

ع ۱۱ ۲۰ وَصَابِرُوْا وَرَابِطُوْا ۟ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۲۰۰﴾

او محنت وکړئ په صبر کښے | او دَ جهاد دَ پاره تیار اوسئ | او ووېرېږئ | دَ الله نه | دَ پاره دَ دے چه تاسو | کامیاب شئ ۔

صبر اماده کوئ او خپل ځان دَ جهاد دَ پاره تیار ساتئ ۔ او دَ الله تعالیٰ نه ووېرېږئ چه تاسو ته کامیابي حاصله شی ۔

سُوْرَةُ النِّسَآءِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّ سَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّ اَرْبَعَةٌ وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة نساء په مدینه کښے نازل شوه او پکښ یو سل شپږ اویا ایتونه او ۲۴ رکوعګانے دی | (شروع کوم په نامه دَ الله چه لوئے مهربان زیات رحم کوونکے دے

شروع کوم دَ الله په نوم چه ډیر مهربان دَ ډیر زیات رحم خاوند دے ۔

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ

اے خلقو! | ووېرېږئ | دَ خپل رب نه | چاچه | پیدا کړئ تاسو | له یو کس نه

اے خلقو! دَ خپل رب نه ووېرېږئ چه تاسو ټول ئے دَ یو تن (ادم علیه السلام) نه پیدا کړئ

وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ۚ

او پیدا ئے کړه | دَ هغهٔ نه | دَ هغهٔ ښځه | او خواره ئے کړل | دَ هغو دواړو نه | سړی | ډیر | او ښځے

او هم دَ هغهٔ نه ئے دَ هغهٔ جوړه (بي بي حوا) پیدا کړه او بیا دَ دے دواړو نه ئے ډیر سړی او ښځے (دَ زمکے په مخ) خواره کړل

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

او ووېرېږئ | دَ الله نه | چه سوال کوئ تاسو له یو بل نه دَ هغهٔ په نوم | او دَ رشتو نه | بیشکه | الله

او دَ الله نه ووېرېږئ چه دَ هغهٔ په نوم تاسو دَ یو بل نه خپل حقونه غواړئ او دَ خپلوئ دَ تعلقاتو (شلولو) نه ، بیشکه الله

كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ﴿۱﴾ وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا

دے | په تاسو | نګران | او ورکړئ | یتیمانو ته | دَ هغوی مالونه | او مهٔ بدلوئ

په تاسو ټولو باندې نګران دے ۔ او دَ یتیمانو مالونه هغوی ته واپس کوئ ، او بنهٔ څیز په خپل

الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ ۪ وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَهُمْ اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ ؕ

ناپاکه | په پاکو | او مهٔ | خورئ | مالونه دَ هغوی | یو ځائے شوی | دَ خپلو مالونو سره

خراب څیز مهٔ بدلوئ او دَ هغوئ مالونه دَ خپلو مالونو سره (شریک) مهٔ خورئ

اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا ﴿۲﴾ وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا

بیشکه هغه | دے | ګناه | لویه | او که چرے | تاسو سره ویره وی | چه تاسو به انصاف نهٔ کړے شئ

دا ډیره لویه ګناه ده ۔ او که تاسو سره ویره وی چه دَ یتیمانو جینکو په حقله به انصاف

فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ
دَيتيمانو جينكو په حق كښې | نو په نكاح كړئ هغه | كومې چه | خوښې وي ستاسو | له نورو ښځو منه
ونه كړے شئ ، نو كومې نورې ښځې چه مو خوښې وي هغوئ
مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا
دوه دوه | او درے درے | او څلور څلور | بيا كه چرے | تاسو سره وېره وي | چه تاسو به انصاف ونه كړے شئ
درے درے او څلور څلور په نكاح واخلئ ، نو كه دا وېره ستاسو سره وي چه (د هغوئ په مينځ كښې
فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ ذٰلِكَ اَدْنٰى اَلَّا
نو يوې ښځې | يا (د وينځې سره) چه | مالك وي پرے | ښي لاسونه ستاسو | دا | زيات نزدې دے (دے ته) | چه نه
په) انصاف ونه كړے شئ نو يوه (ښځه درله بس ده) يا هغه وينځې چه ستاسو ملكيت وي دا د بې انصافۍ نه د بچ كېدو
تَعُوْلُوْا ۳ وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ۚ فَاِنْ طِبْنَ
ظلم كوئ تاسو | او وركوئ | ښځو ته | د هغوئ مهر | په خوشحالۍ سره | بيا كه چرے | هغه راضي شي
د پاره ډاكا ډېر زيات بنه دے ، او ښځو ته د هغوئ مهرونه په خوشحالۍ ادا كوئ ، بيا كه چرے هغوئ پخپله
لَكُمْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ
تاسو ته (په پرېښودو) | څه څيز | د هغې (مهر) نه | (د خپل) زړه نه | نو خورئ هغه
رضامندۍ تاسو ته په هغې كښې څه پرېږدي ، نو هغه ښه په مزه
هَنِيْٓــًٔا مَّرِيْٓــًٔا ۴ وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِيْ جَعَلَ اللّٰهُ
په شوق سره | چه ځان پرې ښه موړ كړئ | او مه وركوئ | بې عقلو ته | خپل مالونه | كوم چه | جوړ كړي دي الله
بې ضرره خورے شئ ، او ناپوهه كسانو ته خپل مالونه مه حواله كوئ كوم چه الله تعالیٰ ستاسو
لَكُمْ قِيٰمًا وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ
(سبب د) ودريدو ستاسو | او روزي وركړئ هغوئ ته | له هغې نه | او واغوندوئ هغوئ ته | او وايئ | هغوئ ته
د ګذران سبب كرځولي دي او هغوئ له پكښې روډۍ او جامه وركوئ ، او هغوئ سره په نرمۍ
قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۵ وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰٓى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ
خبره | ښه | او وازمايئ | يتيمان | ترڅو چه | هر كله هغوئ ورسي | (د) نكاح (عمر) ته
خبرے كوئ . او د يتيمانو ازمېښت كوئ ترڅو چه د نكاح عمر ته ورسي
فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ
بيا كه چرے | معلومه شوه تاسو ته | له هغوئ نه | هوښيارتيا | نو وسپارئ | هغوئ ته | مالونه د هغوئ
نو كه تاسو پكښې لږ ډېر تميز بيا مومئ ، نو د هغوئ مالونه هغوئ ته حواله كوئ
وَلَا تَاْكُلُوْهَآ اِسْرَافًا وَّبِدَارًا اَنْ يَّكْبَرُوْا ۭ وَمَنْ
او مه خورئ هغه | په فضول خرچۍ | او په تلوار سره | (د دے نه) چه هغوئ به لوئے شي | او څوك چه
او د هغوئ د لوئيدو د وېرے نه ئے مال په فضول خرچۍ او په تلوار مه خورئ او څوك چه

كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ ۚ

دی | مالدار | نو پکار دی چه ځان وساتي | او څوک چه وي | محتاج | نو پکار دي چه وخوري | په ښه طريقه

دولت مند وي هغه له پکار دي چه هغه د يتيم د مال نه ځان وساتي او څوک چه محتاج وي هغه له پکار دي چه هغه په قدر د دستور

فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ

پس هر کله چه | ورکړئ تاسو | هغوی ته | د هغوی مالونه | نو گواه نيسئ | په هغوی | او کافي دے | الله

وخوري بيا هر کله چه يتيمانو ته خپل مالونه حواله کوئ، نو گواهان پرے نيسئ، او (سم) حساب اخستونکے خو (يواز ے)

حَسِيبًا ﴿٦﴾ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ

حساب اخستونکے | سړو د پاره | برخه ده | له هغه څه نه چه | پريښوده | پلار او مور | او خپلوانو

الله بس دے. د نارينوو هم په هغے مال کښے برخه مقرر ده چه مور او پلار او خپلوانو ئے پريښودے وي

وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ

او ښځو د پاره (هم) | برخه ده | له هغه څه نه | چه پريښوده | پلار او مور | او خپلوانو

او د زنانوو هم په هغه مال کښے برخه ده چه مور او پلار او (نورو) خپلوانو ئے پريښودے وي.

مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ ۚ نَصِيبًا مَفْرُوضًا ﴿٧﴾ وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ

هغه لږ وي د هغے نه | يا ډير | برخه | مقرر (ده) | او هر کله چه | حاضر شي | په تقسيم باندې

که لږ وي هغه مال او که ډير وي، دا برخه (د الله د طرف نه) مقرر ده، او چه د تقسيم وخت له

أُولُو الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينُ فَارْزُقُوهُمْ مِنْهُ

خپلوان | او يتيمان | او مسکينان | پس ورکړئ هغوی ته | د هغے نه

خپل خپلوان، يتيمان او غريبان راحاضر شي، نو هغوی له هم پکښے څه ناڅه ورکړئ

وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا ﴿٨﴾ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا

او وايئ | هغوی ته | خبره | نيکه | او ويريدل پکار دي (الله نه) | هغو خلقو له | که چرے هغوی پريږدي

او هغوی سره په نرمئ سره خبرے کوئ، او هغو خلقو له پکار دي چه هغوی د دے خبرے نه ووېريږي که چرے

مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ

له خپل ځان نه وروستو | اولاد | کمزورے | چه ووېريږي | په هغوی باندې | پس هغوی له ويريدل پکار دي د الله نه

هغوی د خپل ځان نه وروستو (هم داسے) کمزورے او بے وسه اولاد پريږدي نو هغوی به د هغوی په حقله څنګه فکروي پس

وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ

او وئيل پکار دي | خبره | محکمه | بيشکه | هغه خلق چه | خوري | مالونه | د يتيمانو

هغوی له پکار دي چه هغوی د الله نه ويريږي او سمه پخه خبره کوي. څوک چه د يتيمانو مالونه په ناحقه خوري هغوی

ع ١٢ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ﴿١٠﴾

په ظلم سره | بيشکه چه | هغوی خوري | په خپلو خيټو کښے | اور | او زر ده چه هغوی داخل شي | دوزخ ته

نور څه نه کوي خو خپلے خيټے د اور نه ډکوي، او د دوزخ بل اور ته به زر واچولے شي.

يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ ۖ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ
حکم کوی تاسو ته | الله | ستاسو اولاد په حق کښې | چه د سړی برخه | برابر ده | د برخې | د دوو ښځو
ستاسو اولاد په حقله درته الله تعالیٰ حکم کوی ، چه د یو نارینه برخه د دوو زنانو برابر ده

فَإِن كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ
بیا که چیرے | وی | صرف جینکئ | د دوو نه زیاتے | نو د هغوی د پاره دی | دوه برخے په دریو کښې | د ترکے نه
نو که چیرے د مړی وارثانے دوه یا د دوو نه زیاتے زنانه وی نو هغوی له دِ په دریو کښې دوه برخے ورکړے شی

وَإِن كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ۚ وَلِأَبَوَيْهِ
او که چیرے | هغه (ښځه) وی | هم یو | نو د هغې د پاره ده | نیمه | او د هغه د مور پلار د پاره
او که یوه زنانه (وارثه) وی ، نو هغې له دِ نیم مال ورکړے شی ، او که د مړی اولاد

لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِن كَانَ لَهُ وَلَدٌ ۚ
په دواړو کښې هر یو ته | شپږمه برخه | د ترکے | که چیرے | وی | د هغه | (ځنې) اولاد
وی نو د هغه په مور او پلار دواړو کښې هر یو له دِ شپږمه برخه ورکړے شی

فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ
بیا که چیرے | نه وی | د هغه | (ځنې) اولاد | او د ده وارثان وی | د ده مور پلار | نو د هغه د مور د پاره
او که چیرے اولاد ئے نه وی او مور پلار ئے وارثان شی نو د مور ئے دریمه

الثُّلُثُ ۚ فَإِن كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ ۚ
دریمه برخه ده | بیا که چیرے | وی | د هغه | وروڼه | نو د هغه د مور د پاره | شپږمه برخه ده
برخه مقرر ده ، او که چیرے ورونړه خوینډے ئے پاتے وی نو د مورئے بیا شپږمه برخه کیږی

مِن بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِي بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ
پس (د ادا کولو) | د وصیت نه | چه وصیت کړے وی مړی د هغې | یا د قرض | ستاسو پلاران | او ستاسو ځامن
دا برخے به هله ویشلے شی چه اول د مړی وصیت پوره کړے شی یا که قرض ربړے وی (نو هغه) به اول ادا کړے شی . ستاسو مینځ پلاران

لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ۚ فَرِيضَةً
تاسو نه پوهیږئ چه | څوک په هغوی کښې | زیات نزدے دے | تاسو ته | په نفع (رسولو) کښې | (دا برخے) مقرر دی
او ستاسو ځامن لو مړه چه دی نو تاسو نه پوهیږئ چه څوک درته په فائده رسولو کښې نزدے دی ، دا برخے

مِّنَ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ⑪ وَلَكُمْ
د الله د طرف نه | بیشکه | الله | دے | پوهه | خاوند د حکمت | او تاسو د پاره ده
الله مقرر کړی دی ، بیشکه الله په هر څه پوهه او هر مصلحت ته واقف دے . او چه ستاسو

نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ
نیمه | د هغې (مال) کوم چه پریښودو | ستاسو ښځو | که چیرے | نه | وی | د هغوئ | (ځنې) اولاد
ښځے کوم مال پریږدی ، په هغې کښې ستاسو نیمه کیږی ، که چیرے د هغوئ اولاد نه وی

فَاِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ
بیا که چرې | وي | دَ هغوئ | څه اولاد | پس ستاسو ده | څلورمه برخه | دَ هغې چه | هغه پرېږدي
او که اولاد ئې باتې وي نو (بیا) دَ هغوی په ترکه کښې ستاسو څلورمه برخه رسي

مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْنَ بِهَاۤ اَوْ دَيْنٍ ؕ وَلَهُنَّ
پس (دَ ادا کولو) | دَ وصیت نه | چه وصیت ئې کړے وي | دَ هغې | یا (پس دَ ادا کولو) دَ قرض نه | او دَ هغوئ ده
دا هله چه اول دَ هغوئ وصیت پوره کړے شي یا قرض ئې ادا کړے شي، او ستاسو په پاتې

الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَ
څلورمه برخه | دَ هغې چه | تاسو پرېږدئ | که چرې | نه وي | ستاسو (څه) اولاد | بیا که چرې | وي
مال کښې دَ هغوئ څلورمه برخه ده، که چرے ستاسو اولاد نه وي، او که ستاسو اولا

لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ
ستاسو | (څه) اولاد | نو هغوی دَ پاره ده | اَتمه برخه | له هغه څه نه چه | تاسو پرېږدئ
پاتې وي، نو بیا ستاسو په ترکه کښې دَ هغوئ اتمه برخه کېږي

مِّنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَاۤ اَوْ دَيْنٍ ؕ وَاِنْ كَانَ رَجُلٌ
پس (دَ ادا کولو) | دَ وصیت نه | چه تاسو وصیت کړے وي دَ هغې | یا دَ قرض نه | او که چرے | وي | (څوک) سړے
هله چه ستاسو وصیت اول پوره کړے شي یا قرضه (که پاتې وي) ادا کړے شي. او که چرے یو سړے یا

يُّوْرَثُ كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗۤ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ
دَ کوم میراث چه دے | کلاله | یا (څوک) ښځه (دا سې وي) | او دَ هغه | ورور | یا | خور وي
یوه ښځه مړه شي چه نه ئې مور پلار پاتې وي او نه اولاد او یو ورور یا یوه خور ئې پاتې شي

فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَاِنْ كَانُوْۤا اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ
نو دَ پاره دَ هر یو | له هغوی نه | شپږمه برخه ده | پس که چرے | وي هغوی | زیات | له دے نه
نو هر یو ته به شپږمه برخه ورکړے شي، او که ورو نړه خویندے ئې دَ یو نه زیات وي

فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَاۤ اَوْ
پس هغوی شریک دي | په دریمه برخه کښې | پس دَ (ادا کولو دَ) وصیت نه | چه وصیت ئې کړے شوے دَ هغې | یا
نو هغوی ټول به په دریمه برخه کښې شریک کړے شي، دا هله چه وصیت (اول) پوره کړے شي یا قرضه ادا کړے

دَيْنٍ ۙ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ
(پس دَ) قرض نه | (په شرط دَ دے چه په وصیت کښې) دَ چا نقصان نه وي | حکم دے | دَ الله | او الله
شي خو چه (دغه وصیت یا قرضه) دَ ضرر دَ پاره نه وي، دا دَ الله حکم دے او الله په هر څه پوهه

عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ⑫ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ
پوهه | دَ زغم خاوند دے | دا | حدونه دي | دَ الله | او څوک چه | حکم منی | دَ الله
او حلیم دے. دا دَ الله (مقرر کړي) حدونه دي، او څوک چه دَ الله او دَ هغه دَ

وَرَسُولَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

او دَ هغهٔ دَ رسول | هغه به داخل کړی | په جنتونو کښے | بهیږی به | دَ هغے لاندِ | نهرونه | هغوی به همیشه وی

او دَ هغهٔ دَ رسول حکمونه په ځائے کوی، هغوی به الله داسے باغونو ته داخل کړی چه دَ هغو (دَ ونو) لاندِ به نهرونه بهیږی

فِيْهَا ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١٣﴾ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

په هغے کښے | او دا دهٔ | کامیابی | ډیره لویه | او څوک چه | نافرمانی کوی | دَ الله | او دَ هغهٔ دَ رسول

همیشه به په کښے ؤسیږی او هم دا ډیره لویه کامیابی دهٔ۔ او څوک چه دَ الله او دَ رسول حکمونه ونه منی.

وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۪

او تیر شی | دَ هغهٔ دَ حدونو نه | هغه به داخل کړی | اور ته | (چه) همیشه به وی | په هغے کښے

او دَ الله دَ مقرر کړو حدونو نه وړاندِ تیر شی، الله به هغه په دوزخ کښے داخل کړی چه همیشه به په کښے وی.

وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿١٤﴾ وَالّٰتِىْ يَاْتِيْنَ الْفَاحِشَةَ

او هغهٔ ته به | عذاب وی | سپکوونکے | او کومے ښځے چه | کوی | بد کاری

او هغهٔ دَ پاره رسوا کوونکے عذاب مقرر دے۔ او ستاسو په زنانوؤ کښے چه څوک بد کاری (زنا)

مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَيْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا

له ښځو ستاسو نه | نو گواهان راؤغواړئ | په هغوی باندِ څلور سړی | له خپلونه | بیا که چرے هغوی گواهی ورکړی

ؤ کړی، نو په هغوی باندِ دَ خپلو سړو نه څلور تنه گواهان نیسئ، نو کهٔ څلور تنه پرے گواهی ؤکړی

فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِى الْبُيُوْتِ حَتّٰى يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ

نو بند کړئ هغوی | په خپلو کورونو کښے | تر هغے چه | اوچتے کړی هغوی | مرګ | یا جوړه کړی

نو داسے ښځے په کورونو کښے تر هغے بندے کړئ چه مرګ ئے فنا کړی، یا الله ورله

اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ﴿١٥﴾ وَالَّذٰنِ يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ

الله | هغوی له | څهٔ لار | او کوم دوه (ښځه سړے) چه | داسے کار ؤکړی | له تاسو نه | نو تکلیف ورسوئ هغوی ته

څهٔ بله لار راؤباسی۔ او په تاسو کښے کوم دوه کسان چه بدکاری ؤکړی نو تکلیفونه ورله ورکړئ

فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا

نو کهٔ چرے | هغوی توبه ؤکړی | او اصلاح ؤکړی | نو مخ واړوئ | دَ هغوی نه | بیشکه | الله | دے | لوئے توبه قبلوونکے

نو کهٔ توبه ؤباسی او خپل ځانونه سم کړی نو بیا هغوی پریږدئ ۔ بیشکه الله توبه قبلوونکے

رَّحِيْمًا ﴿١٦﴾ اِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللّٰهِ لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ

ډیر رحم کوونکے | بیشکه | توبه (قبلول خو) | په الله باندِ | دَ هغو خلقو دَ پاره دی چه | کوی

مهربانه دے۔ یقینًا الله تعالیٰ توبه دَ هغو خلقو قبلوی چه بد کار په ناپوهئ

السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِيْبٍ فَاُولٰٓئِكَ يَتُوْبُ اللّٰهُ

بد کار ته | په ناپوهئ سره | بیا | توبه ؤکړئ | زر | پس هم دا خلق دی | چه توبه قبلوی الله

سره ؤکړی ، او بیا ډیر زر توبه ؤباسی ، هم داسے خلق دی دَ کومو توبه چه الله

عَلَيْهِمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١٧﴾ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ

دَ هغوی | او دے | الله | پوهه | دَ حکمت خاوند | او نشته دے | توبه

تبوی . او الله په هر څهٔ پوهه او دَ هر مصلحت نه واقف دے . او دَ هغو خلقو توبه (څهٔ توبه) نهٔ ده

لِلَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ ۚ حَتّٰٓى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ

هغو خلقو لره کوم چه | کوی | بد کارونه | تر دے چه | حاضر شی | یو کس ته په هغوی کښے

چه تل يا دی ګناهونه کوی . تر دے چه په هغوئی کښے دَ چا دَ مرګ وخت

الْمَوْتُ قَالَ اِنِّىْ تُبْتُ الْـٰٔنَ وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ

مرګ | (نو) هغه وائی | چه بیشکه ما | توبه وکړه | اوس | او نهٔ هغه خلقو دَ پاره | چه مړهٔ شی

راشی نو وائی (یاربه!) زهٔ اوس توبه کوم ، او نهٔ (توبه) دَ هغه چا دَ پاره ده چه

وَهُمْ كُفَّارٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٨﴾

او هغوی | کافران وی | هم دا دی | چه تیار کړے دے مونږ | هغوی له | عذاب | درد ناک .

کافران مړهٔ شی دا هغه خلق دی کومو دَ پاره چه مونږ دردناک عذاب تیار کړے دے

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا ؕ

اے دَ ایمان خاوندانو! | حلال نهٔ دی | تاسو دَ پاره | چه | وارثان شئ تاسو | دَ ښځو | جبرًا

اے مؤمنانو! تاسو له روا نهٔ دی چه په زبردستئ ځان دَ ښځو وارثان کړئ.

وَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ لِتَذْهَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اِلَّآ

او | مهٔ منع کوئ تاسو هغوئی | دَ پاره دَ دے چه واخلئ تاسو (څهٔ) په هغے کښے | کوم چه | ورکړل تاسو هغوئی ته | مګر

او نهٔ هغوی په دے خیال منع کوئ چه څهٔ تاسو هغوی له (پوهٔل) ورکړی وی دَ هغے څهٔ برخه واخلئ سوا دَ

اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَاِنْ

چه | هغوی وکړی | بد کاری | ښکاره | او ژوند تیروئ هغوی سره | په ښهٔ طریقه، بیا که چرے

دے صورت نه چه هغوی ښکاره بد کاری وُکړی ، او ښځو سره په ښهٔ طریقه ګذران کوئ . که هغوی

كَرِهْتُمُوْهُنَّ فَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَّيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيْهِ

تاسو نهٔ خوښوئ هغوی | نو (څهٔ) کیدے شی | چه نهٔ به خوښوئ تاسو | یو څیز | او پیدا به کړی | الله | په هغے کښے

ستاسو خوښے نهٔ وی نو دا کیدے شی چه یو څیز ستاسو خوښ نهٔ وی ، او الله تعالیٰ تاسو له په هغے کښے ډیره

خَيْرًا كَثِيْرًا ﴿١٩﴾ وَاِنْ اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ ۙ

خیر | ډیر | او که چرے | تاسو غواړئ | بدلول | ښځه | په ځائے دَ بلے ښځے

فائده ایښی وی او که تاسو د په ښهٔ طریقه ګذران نهٔ شئ کولے او) دَ یوے ښځے په ځائے بله ښځه بدلول غواړئ

وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْئًا ؕ

او تاسو ورکړے وی | یوے ته له هغوئ نه | ډیری مالونه | نو مهٔ | واپس اخلئ | له هغے نه | څهٔ څیز

او تاسو هغے یوے له دَ دولت ډیرے هم ورکړے وی نو هم ترے نه هیڅ څیز واپس مهٔ اخلئ.

أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٢٠﴾ وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ

ایا تاسو اخلئ هغه | په بهتان تړلو | او په ګناه ښکاره سره | او څنګه | تاسو اخستے شئ هغه

ایا تاسو دا غواړئ چه په بهتان تړلو او په ښکاره ظلم کولو باندے هغه مال داخلئ۔ او تاسو دا څنګه واپس اخسے

وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿٢١﴾

او حال دا دے چه | رسیدلے دی | ځنے له تاسو نه | ځنو ته | او هغوی اخستے دے | له تاسو نه | اقرار | سخت

شئ، هر کله چه تاسو یو بل سره (د ښځے خاوند) لیدلے کاتے کړی دی او هغوی له تاسو نه (د نکاح) پوخ قول او اقرار اخستے

وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم مِّنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ

او مه نکاح کوئ | کوم سره چه نکاح کړے وی | ستاسو پلارانو | له ښځو نه | مګر هغه څه چه | د وړاندے تیر شول

او هغے ښځو سره هیڅ رنګه نکاح مه کوئ کوم سره چه ستاسو پلارانو نکاح کړے وی د دے (حکم) نه وړاندے چه څه شوی هغه شو

إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿٢٢﴾ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ

بیشکه دا خو | ډیره بے حیائی | او (د) غضب (خبره ده) | او بده | طریقه ده | حرام کړے شوے | په تاسو

دا ډیره د بے شرمئ، د نفرت خبره او ډیر خراب دستور دے۔ په تاسو باندے حرامے دی

أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ

ستاسو میندے | او ستاسو لونړه | او ستاسو خویندے | او ستاسو د پلارانو خویندے | او ستاسو د میندو خویندے | او د وریرے

ستاسو میندے لونړه، خویندے، د پلارانو خویندے، د میندو خویندے، وریرے

وَبَنَاتُ الْأُخْتِ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُم مِّنَ الرَّضَاعَةِ

او خورزے | او ستاسو میندے | هغه چه تئ درکړے دی تاسو ته | او خویندے ستاسو | چه له تی رودلو نه دی

خورزے، او هغه میندے چه تئ درکړے دی او د تی خویندے

وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَائِكُمُ اللَّاتِي

او میندے | د ښځو ستاسو | او ستاسو د ښځو لونړه | چه اوس (پالل کیږی) ستا په غیږ کښے | چه ستاسو د هغه ښځو نه پیدا وی

او خوا ښیانے، او پر کتئ چه ستاسو په پرورش کښے وسیږی د هغو ښځو نه چه تاسو

دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُوا دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

چه صحبت کړے وی تاسو | د هغوی سره | پس که چرے | نه وی کړے | تاسو د هغوی سره صحبت | نو څه ګناه نشته | په تاسو

ورسره کور والے کړے وی، نو که کور والے مو ورسره نه وی کړے، نو بیا (پرکتئ) سره په نکاح کولو کښے هیڅ ګناه نشته

وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ وَأَن تَجْمَعُوا

او ښځے | د ځامنو ستاسو | هغه ځامن چه | له شا ملا نو ستاسو نه دی | او (دا) چه | تاسو جمع کړئ (نکاح کښے)

او ستاسو د خپلو حقیقی ځامنو ښځے (هغه هم په تاسو حرامے دی او دا هم چه په یو وخت کښے) دوه خویندے

بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٣﴾

په مینځ د دوو خویندو | مګر کوم چه | د دے نه وړاندے تیر شول | بیشکه الله | دے | بخښونکے | مهربان

یو ځائے (په نکاح) کړئ او چه څه تیر شو هغه تیر شو، بیشکه الله بخښونکے مهربان دے

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ كِتٰبَ اللّٰهِ

او | ښځې | مکر هغه د ښځې چه ستاسو په ملکیت کښې دي | حکم دے | دَ الله | خښتندارے

او هغه ښځې (هم په تاسو حرامے دي) چه دَ نورو په نکاح کښې دي سوا دَ هغو ښځو نه چه ستاسو وینځې وي دا دَ الله قانون دے چه

عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِكُمْ

په تاسو | او حلال کړے شوے | تاسو دَ پاره کومے چه علاوه | دَ دے نه دي | چه تاسو طلب ؤکړئ | په مالونو خپلو سره

په تاسو لازم کړے شوے دے، دَ دے نه سوا څومره ښځې چه دي هغه تاسو له حلالے دي چه مال خرچ کړئ او په نکاح کښے

مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ۚ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ

دَ نکاح کولو دَ پاره | نه چه دَ شهوت پوره کولو دَ پاره | بیا دَ کومے نه چه تاسو فائده واخسته | له هغه ښځو نه | پس ورکړئ هغوی ته

راولئ، دا نه چه تش شهوت پورے دفعه کړئ، بیا دَ کومو ښځو نه چه تاسو څۀ فائده اُوچته کړئ نو دَ دے په بدله کښے

اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ

دَ هغوی مهر | مقرر کړے شوے | او نشته گناه | په تاسو | په هغه کښے چه راضي شوئ تاسو دَ یو بل سره په هغے باندِ | پس

دَ هغوی مقرر مهر هغوئ له ورکړئ. او دَ مهر مقررولو نه پس که تاسو په څۀ (کمی زیاتی) باندِ خپل مینځ کښے رضا شوئ

الْفَرِيْضَةِ ۚ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿٢٤﴾ وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ

دَ مقرر مهر نه | بیشکه | الله | دے | پوهه | دَ حکمت خاوند | او څوک چه | نه لری

نو په دے کښے څۀ گناه نشته، بیشکه الله تعالیٰ پوهه او دَ حکمت خاوند دے. او په تاسو کښے چه څوک دا توفیق

مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ

له تاسو نه | طاقت | چه | په نکاح کړی | آزادے مؤمنانے | ښځے

نۀ لری، چه آزادے مسلمانانے ښځے په نکاح واخلی، نو هغه

فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ۚ وَاللّٰهُ

نو (هغوی دِ نکاح وکړی) هغو (وینځو) سره دَ کومو چه تاسو مالکان یئ، | له ستاسو مؤمنانو وینځو نه | او الله

مسلمانانو وینځو سره دِ نکاح ؤکړی، چه ستاسو لاس ته راغلی وی. او الله نه ستاسو دَ

اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ

ښۀ پوهه دے | په ایمان ستاسو | څینے ستاسو له جنسه دَ څینو نه دی | پس نکاح وکړئ هغوی سره | په اجازت | دَ مالکانو دَ هغوی

دَ ایمان حال ډیر ښۀ معلوم دے (دَ انسان کید و په لحاظ سره) تاسو دَ یو بل دَ جنس نه یئ، نو هغوی سره دَ مالکانو په اجازت

وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا

او ورکړئ هغوی ته | مهر دَ هغوئ | دَ دستور مطابق | چه پاکدامنے وی | نۀ زنا کوونکے دی | او نۀ

نکاح ؤکړئ او دَ رواج مطابق ورته مهر هم نه اداکړئ، په دے صورت کښے چه هغه پاکدامنے وی، بدکارے نۀ وی

مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ

په پټه آشنایان نیوونکی وی | بیا کۀ چرے هغوی نکاح ؤکړی نو کۀ چرے هغوی وکړی | بدکاری | نو په هغوئ دَ

او نۀ پټ پټ آشنایان نیسی، نو هر کله چه دا (وینځے) ښځے په نکاح کښے راشي، نو کۀ بیائے بدکاری وکړه نو هغوی له

نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ

نیمه سزا | دَ هغې چه | په ازادو ښځو ده | سزا | دا | دَ هغه چا دَ پاره ده چه وېرېږي

دَ ازادو ښځو په نسبت نیمه سزا مقرر ده ، دا اسانی هغه چا ته ورکړے شوے ده

الْعَنَتَ مِنْكُمْ ؕ وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۲۵

له ګناه نه | له تاسو نه | او که صبر وکړئ | نو ډېر ښه دے تاسو له | او الله | بخښونکے | مهربان دے

چه دَ زنا اندېښنه ورسره وی او که تاسو ځان قابو کړئ نو دا درله غوره ده او الله بخښونکے مهربان دے

يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

غواړی | الله | چه بیان کړی | تاسو دَ پاره | او ونښائی تاسو ته | لارے | دَ هغه کسانو | چه له تاسو وړاندې وو

الله دا غواړی چه تاسو ته خپل حکمونه واضحه کړی او په هغه لاره مو بوځی چه تاسو نه وړاندې (نیکان خلق) پرتلی وو

وَيَتُوْبَ عَلَيْكُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۲۶ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يَّتُوْبَ

او رحم وکړی | په تاسو | او الله | پوهه | دَ حکمت خاوند دے | او الله | غواړی | چه رحم وکړی

او په تاسو باندې رحم وکړی او الله په هر څۀ پوهه او هر حکمت نه خبر دے. او الله خو غواړی چه تاسو باندې رحم

عَلَيْكُمْ ۫ وَيُرِيْدُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الشَّهَوٰتِ اَنْ تَمِيْلُوْا مَيْلًا

په تاسو | او غواړی | هغه خلق | چه پېروی کوی | دَ شهوتونو | چه تاسو واوړئ (دَ حق نه) | او ړېدل

وکړی ، او څوک چه په خپلو خواهشاتو پسے ګرځی هغوئ دا غواړی چه تاسو (دَ سمے لارے نه) ډېر لرے

عَظِيْمًا ۲۷ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ

دَ حد نه زیات. | غواړی الله | چه هغه کم کړی | له تاسو نه (بوجهه) | او پیدا کړے شوے دے | انسان

پریوځئ. الله تعالیٰ غواړی چه په تاسو باندې پابندئ کمے کړی ، ځکه چه انسان کمزورے پیدا

ضَعِيْفًا ۲۸ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوْۤا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ

کمزورے | اے دَ ایمان خاوندانو | مه خورئ | خپل مالونه | په خپل مینځ کښے

شوے دے. اے مؤمنانو ! په خپل مینځ کښے دَ یو بل مالونه په ناحقه مه

بِالْبَاطِلِ اِلَّاۤ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ ۟

په ناحقه | مګر | چه | وی | تجارت | په رضامندی سره | ستاسو مینځ کښے

خورئ ، مګر چه لین دین په رضامندئ سره وُشی (نو خیر دے)

وَلَا تَقْتُلُوْۤا اَنْفُسَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيْمًا ۲۹

او مه وژنئ | خپل ځانونه | بیشکه | الله | دے | په تاسو | ډېر رحم کوونکے

او (په خپل مینځ کښے) یو بل مه وژنئ. بیشکه الله تعالیٰ په تاسو ډېر مهربان دے.

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ عُدْوَانًا وَّظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيْهِ

او څوک | چه وکړی | دا سے | په سرکشئ | او ظلم سره | پس زر ده چه مونږ به داخل کړو هغه

او څوک چه په ظلم زیاتی دا سے کارونه کوی ، نو مونږ به ئے دَ دوزخ او ر ته

نَارًا ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿٣٠﴾ اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبَآئِرَ

اور ته ، | او دی | دا | الله ته | آسان | که چرے | تاسو ځان وساتئ | له لويو ګناهونو نه

وغورځوو او دا کار الله ته هيڅ ګران نه دے . که تاسو د هغو لويو لويو ګناهونو نه پرهيز

مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ

د کومو نه چه تاسو منع کولے شئ | نو مونږ به لرې کړو | له تاسو نه | ستاسو واړه ګناهونه | او مونږ به داخل کړو تاسو

وکړئ د کومو نه چه منع کړے شوی يئ نو مونږ به ضرور ستاسو (وړے وړے) غلطيانے معاف کړو ، او د عزت

مُّدْخَلًا كَرِيْمًا ﴿٣١﴾ وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ

ځائے | د عزت ته | او تمنا مه کوئ تاسو | د هغه څه | چه فضيلت ورکړے دے الله په هغے سره ، له تاسو نه ځينو ته

ځائے ته به مو ننباسو . او الله تعالیٰ چه په تاسو کښے يو له په بل باندې کوم فضيلت ورکړے دے د هغے په

عَلٰى بَعْضٍ ۚ لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ۚ وَلِلنِّسَآءِ

په ځنو باندې | سړو له | حصه ده | له هغه څه نه | چه هغوی وګټله | او ښځو د پاره (هم)

حقله آرزو وکانے مه کوی . سړو چه په خپل عمل څه ګټلی دی هغه د هغوی برخه ده او ښځو چه په خپل کوشش

نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ۚ وَسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ اِنَّ اللّٰهَ

حصه ده | له هغه څه نه | چه هغوی وګټله | او غواړئ | له الله نه | د هغه فضل | بيشکه | الله

څه ګټلی دی ، هغه د هغوئ نصيبه ده ، او د الله نه د هغه د فضل وکرم سوال کوئ . بيشکه الله تعالیٰ

كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿٣٢﴾ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ

دے | په ټولو څيزونو باند | پوهه | او د هر څيز د پاره | مقرر کړی دی مونږ | وارثان

په هر څه پوهه دے . او کوم مال چه مور پلار او (نور) خپلوان پريږدی

مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ۚ وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ اَيْمَانُكُمْ

د هغه مال چه پريښودو | مور پلار | او نژدے خپلوانو | او هغه خلق (کوم ولړه چه) | تړلی دی | سوګندونو ستاسو

نو مونږ هر يو له وارثان مقرر کړی دی ، او چا سره چه تاسو لوظونه کړی دی

ع ٥/٨ فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿٣٣﴾

پس ورکړئ هغوئ ته | د هغوی حصه | بيشکه الله | دے | په هر څيز باندې | ګواه .

نو هغوی له هم خپلے خپلے برخے ورکړئ ، بيشکه الله تعالیٰ په هره خبره باندې ګواه دے

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ

سړی | نګرانان دی | په ښځو باندې | په سبب د هغے چه فضيلت ورکړو | الله | ځنو له

سړی په ښځو باندې نګرانان دی ، ځکه چه الله تعالیٰ يو تولی له په بل باندې فضيلت

عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ۚ فَالصّٰلِحٰتُ

په ځنو باندې | او په سبب د هغے | چه هغوی خرڅ کړی دی | له خپلو مالونو نه | پس نيکے ښځے

ورکړے دے او ځکه چه سړو (په ښځو باندې) خپل مالونه خرڅ کړی دی ، نو کومے نيکے ښځے چه نيکانے

قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ۗ وَالّٰتِىْ

وی فرمانبردارے | حفاظت کوونکے | پس شا (پشی شا) | دَ الله په حفاظت سره | او هغه ښځې

وی فرمانبردارے حفاظت کوونکے دَ الله په حفاظت سره | پس شا (پشی شا) | او هغه ښځې

وی فرمانبردارے او دَ خاوند په غیرحاضرئی کښې دَ هغه څیزونو حفاظت کوی کوم چه الله محفوظ کړی

دی هغوی حکمونه منی

تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ

چه تاسو ته ویره وی | دَ هغوئی دَ نافرمانئی | نو نصیحت ئو کړئی هغوی ته | او جُدا کړئی هغوی | په بسترو کښے

دی او دَ کومو ښځو دَ سرکشئ چه اندیښنه درسره پیدا شی نو اول ورته نصیحت ئو کړئی او بیائے ځان له په جُدا

وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ؕ

او ووهئی هغوی | پس که چرے هغوی فرمانبرداری وکړی ستاسو | نو مه تلاش کوئی | په هغوی باندِ | څه لار .

بسترو څملوئی او که بیا هم نه منی نو) هغوی ووهئی او که چرے ومنی نو بیا دَ هغوی خلاف سختی مه کوئی

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿۳۴﴾ وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ

بیشکه | الله | دے | ډیر اوچت | دَ لوئے شان خاوند | او که چرے | تاسو سره ویره وی | دَ مخالفت

او دا یقین لرئی چه الله تعالیٰ ډیر اوچت او ډیر لوئے ذات دے۔ او که چرے دا اندیښنه مو پیدا شی چه دَ

بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا

دَ هغو دواړو (ښځې خاوند) په مینځ کښے | نو تاسو مقرر کړئی | یو منصف | له خپلوانو دَ هغهٔ نه | او یو منصف

ښځې خاوند تر مینځه بے اتفاقی ده، نو یو ثالث دَ خاوند دَ کورنئی نه او یو دَ ښځے دَ کورنئی نه

مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ؕ

له خپلوانو دَ هغے نه | که چرے هغوی دواړه غواړی | اصلاح کول | نو موافقت به راولی | الله | په دواړو کښے

مقرر کړئی، که هغوی دواړه جوړښت غواړی، نو الله به ورله دَ موافقت لار راوُباسی

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿۳۵﴾ وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا

بیشکه | الله | دے | پوهه | خبردار، | او عبادت کوئی | دَ الله | او شریک مه جوړوئی

بیشکه الله تعالیٰ ښهٔ پوهه او په هر څهٔ خبر دے۔ او یوازے دَ الله تعالیٰ عبادت کوئی او هیڅ وَرسره

بِهٖ شَيْئًا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى

هغهٔ سره | څهٔ څیز | او دَ پلار او مور سره | نیکی کوئی | او دَ خپلوانو سره | او دَ یتیمانو سره

شریک مهٔ جوړوئی او (پکار دَه) چه تاسو مور پلار سره، خپلو خپلوانو سره، او یتیمانو

وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِى الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ

او دَ مسکینانو سره | او دَ ګاونډیانو سره چه خپلوان دی | او دَ هغه ګاونډیانو سره چه پردی دی

او مسکینانو سره، او ګاونډیانو سره که خپلوان وی او که پردی وی

وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ

او ملګرو سره چه په څنګ کښے درسره ناست وی | او دَ مسافر سره | او غلامانو سره دَ کومو چه تاسو مالکان یئی

او دَ ناستے پاستے ملګری سره، او مسافر سره او دَ (هغه وینځو او مریانو سره) چه ستاسو په قبضه کښے وی

إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا ﴿٣٦﴾ الَّذِيْنَ

بیشکہ | اللہ | نۂ خوښوی | هغه څوک چه | وی | کبرژن | فخرکوونکے | هغه خلق چه

نیکی وکړئ بیشکه کبرژن لاپو بنده دَ اللہ تعالیٰ خوښ نۂ وی۔ هغه خلق چه

يَبْخَلُوْنَ وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ مَآ

شومتیا کوی | او حکم کوی | خلقو ته | دَ شومتیا | او پټوی | هغه څۀ چه

شومان وی او نورو ته دَ شومتیا تعلیم ورکوی، او اللہ تعالیٰ چه ورته په

اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا

ورکړی وی هغوی ته | اللہ | له خپل فضل نه | او تیار کړے دے مونږ | کافرانو دَ پاره | عذاب

خپل فضل وکرم څۀ (مال) ورکړے دے هغه پټوی، او مونږ کافرانو له سپکوونکے عذاب تیار

مُّهِيْنًا ﴿٣٧﴾ وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ وَ

سپکوونکے۔ | او هغه خلق چه | خرڅ کوی | خپل مالونه | دَ ښودنے دَ پاره | خلقو ته | او

کړے دے۔ او هغه خلق (هم دَ اللہ تعالیٰ خوښ نۂ وی) چه خپل مالونه دَ نوم ناموس دَ پاره لګوی او

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۗ وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطٰنُ

ایمان ئے نه وی | په اللہ باندِ | او نۂ | په ورځ | دَ آخرت | او هغه څوک | چه وی | شیطان

په اللہ تعالیٰ او په ورځ دَ آخرت ایمان نۂ لری، او رښتیا خبره داده چه شیطان

لَهٗ قَرِيْنًا فَسَآءَ قَرِيْنًا ﴿٣٨﴾ وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ

دَ هغهٔ | ملګرے | پس هغه بد | ملګرے دے۔ | او څۀ زیان به وُو په هغوی | که هغوی ایمان راوړے | په اللہ

دَ چا ملګرے شی نو هغه ډیر خراب ملګرے دے۔ او دَ هغوی به څۀ تاوان شوے وو که په اللہ تعالیٰ او

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ۗ

او (په) ورځ | دَ آخرت | او خرڅ کولے هغوی | له هغه څۀ نه | چه ورکړی دی هغوی ته | اللہ

په ورځ دَ آخرت ئے ایمان راوړے وے او څۀ چه اللہ تعالیٰ ورکړی دی دَ هغے نه ئے (دَ اللہ په لاره کښے) خرڅ کولے۔

وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿٣٩﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ

او دے | اللہ | په هغوی باند | پوهه۔ | بیشکه | اللہ | ظلم نۂ کوی | برابر | دَ ذرے

او اللہ تعالیٰ ته دَ هغوی حال ډیر ښۀ معلوم دے۔ بیشکه اللہ تعالیٰ په چا دَ ذرے هومره ظلم (هم) نۂ کوی۔

وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا

او که چرے | وی | نیکی | (نو) دوچند به کړی هغه | او ورکړی | له خپل طرف نه | اجر

او که څوک یوه نیکی وُکړی نو هغه ورله په څو چنده زیاته کړی او دَ خپل طرف نه ورله ډیر لوے

عَظِيْمًا ﴿٤٠﴾ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا

ډیر لوے۔ | په څۀ (حال) به وی | هر کله چه راولو مونږ | له هر اُمّت نه | یو ګواه | او راولو مونږ

اجر ورکړی۔ نو هغه وخت به دوی څۀ کوی چه مونږ به دَ هر اُمت نه یو یو ګواه راولو او دَ دے خلقو

بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا ﴿٤١﴾ يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

تا | په دے (اُمت) | گواه - | په دغه ورځ به | غواړی | هغه خلق | کوم چه کفر وکړو

دَ پاسه به تا گواه کړی ، په هغه وخت کښے چا چه کفر کړے وی .

وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ ؕ وَلَا يَكْتُمُوْنَ

او نافرمانی ئے وکړه | دَ رسول | کاش چه هواره کړے شی | په هغوی باندِ | زمکه | او نۀ به شی پټولے

او دَ رسول نافرمانی ئے کړی دی، هغوی به په هغه ورځ تمنا کوی چه کاش دوی په خاوره کښے پوځائے کړے شی او هلته به

اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴿٤٢﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ

دَ الله نه | څۀ خبره ، | اے دَ ایمان خاوندانو! | مۀ نزدے کیږئ | مونځ ته

دَ الله نه هیڅ یوه خبره پټه نۀ کړے شی ، اے مؤمنانو! چه په نشه کښے یئ نو مونځ ته مۀ نزدے

وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا

په دے حال کښے چه یئ تاسو | په نشه کښے | تر دے چه | تاسو پوهیږئ | په هغه څۀ | چه تاسو ئے وایئ | او نۀ

کیږئ ، ترڅو چه تاسو ته معلومه نۀ وی چه تاسو (په مونځ کښے) څۀ وایئ او (دغه شان)

جُنُبًا اِلَّا عَابِرِىْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا ؕ وَاِنْ كُنْتُمْ

دَ جنابت په حالت کښے | مگر | چه | مسافر یئ | ترڅو چه | تاسو غسل ؤ (نۀ) کړئ | او که چرے | تاسو یئ

دَ جنابت په حالت کښے (مونځ مۀ کوئ) ترڅو چه مو غسل نۀ وی کړے سوا دَ سفر دَ حالت نه ، او که چرے تاسو بیمار

مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ

بیمار | یا | (یئ) په سفر | یا راشی | یو کس | له تاسو نه | دَ ضرورت دَ ځائے نه

یئ یا په سفر یئ یا په تاسو کښے څوک دَ اودس ماتی نه واپس راشی یا تاسو

اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا

یا مباشرت ؤکړئ | دَ ښځو سره | بیا نۀ | مومئ تاسو | اُوبۀ | نو قصد (تیمم) ؤکړئ | دَ خاورے

دَ ښځو سره نزدیکت ؤکړئ او اُوبۀ ؤنۀ مومئ نو پاکه خاوره باندِ تیمم

طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

پاکے | پس مسح ؤکړئ | دَ خپلو مخونو | او دَ خپلو لاسونو | بیشکه | الله | دے

ؤکړئ او په خپلو مخونو او لاسونو مسح ؤکړئ . بیشکه الله تعالیٰ نرمی

عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿٤٣﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا

معاف کوونکے | بخښونکے | آیا نۀ دی کتلی تا | هغو خلقو ته کوموته | چه ورکړے شوه | یوه حصه

کوونکے . بخښونکے دے - آیا تا دَ هغو خلقو حالت نۀ دے لیدلے ، چه دَ کتاب (دَ علم)

مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ الضَّلٰلَةَ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ تَضِلُّوا

له کتاب نه | هغوی اخلی | گمراهی | او هغوی غواړی | چه تاسو هم بے لارے شئ

نۀ ورته یوه غټه برخه ورکړے شوے وه او بیا هم دَ گمراهئ خریداران دی او دا غواړی چه تاسو هم دَ حق لارے

السَّبِيْلَ ﴿٤٤﴾ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۙ

دَ حق لارې نه | او الله | ښه پوهه دے | ستاسو په دښمنانو | او کافي دے | الله | دوست

بې لارې شئ . او الله ستاسو د دښمنانو ډیر ښه پیژني او هم دَ الله تعالیٰ ملګرتیا او

وَّكَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا ﴿٤٥﴾ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ

او بس دے | الله | مدد ورکونکے | ځنے دَ هغوی نه | چه یهود دی | بدلوی | کلام

مدد تاسو له کافي دے . څوک چه یهودیان شوی دی په هغوی کښے ځنے خلق لفظونه دَ ځپلو

عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ

دَ هغې دَ ځایونو نه | او وائی هغوی | مونږ واؤریدل | او مونږ ونه منل | او واؤره | ته دِ هیڅ واؤنه ړے

مناسبو ځایونو نه اړوی راړوی او (چه ستا ملاقات له راشی نو) وائی مونږ واؤریدل او مونږ نه منو او واؤره (اے نبی)

وَّرَاعِنَا لَيًّا ۢ بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّيْنِ ۚ وَلَوْ اَنَّهُمْ

او (وائی) رَاعِنَا | تاوَوی خبره | په خپلو ژبو | او تونس کوی | په دین کښے | او که چرے هغوی

الله دِ درته واؤنه روی او رَاعِنا ژبے پرے تاوُراتاوکړی او دَ دین خلاف تونسونه وکړی او که دَ دے (خرابونکو) په

قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَ اسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا

وئیلے | چه واؤریدل مونږ | او ومنل مونږ | او | واؤره | او نظر وکړه مونږ ته | نو د ډیره ښه به وه

ځائے دوئی وئیلے چه سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا او اِسْمَعْ وَانْظُرْنَا نو دا به ورله بهتره وه او

لَّهُمْ وَاَقْوَمَ ۙ وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ

هغوی له | او زیاته درسته | لیکن | لعنت کړے دے په هغوی | الله | دَ هغوی دَ کفر په وجه

دَ موقع مطابق خبره به وه، لیکن (حقیقت دا دے) چه دَ هغوی دَ (پرده پسے) کفر په وجه الله تعالیٰ په هغوی لعنت

فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٤٦﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اٰمِنُوْا

پس هغوی ایمان نه راوړی | مګر لږ | اے | اهل | کتابو ! | ایمان راوړئ

وکړو، پس دَ یو لږ تعداد نه سوا به دا خلق ایمان نه راوړی ، اے اهلِ کتابو ! زمونږ دا نازل کړے

بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ

په هغه څه چه | نازل کړے دے مونږ | تصدیق کوونکے | دَ هغه څه چه | تاسو سره دے | وړاندې دَ دے نه | چه

کتاب ومنئ کوم چه ستاسو دَ کتاب تصدیق کوی ، دَ دے نه وړاندې چه مونږ

نَّطْمِسَ وُجُوْهًا فَنَرُدَّهَا عَلٰٓى اَدْبَارِهَآ اَوْ نَلْعَنَهُمْ

مونږ وران کړو | مخونه | بیا ئے وګرځوو هغه | دَ هغوی دَ شاګانو طرف ته | یا | مونږ لعنت وکړو په هغوی

مخونه په بله څوک نه کړو ، او شا غاړے ته ئے وګرځوو ، یا پرے داسے لعنت ووروُو

كَمَا لَعَنَّآ اَصْحٰبَ السَّبْتِ ۚ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿٤٧﴾

لکه چه | لعنت کړے وو مونږ | په خاوندانو دَ خالی دَ ورځے | او دے | حکم دَ الله | پوره شوے

لکه دَ سبت په خاوندانو چه مو وړولے وو ، او دَ الله تعالیٰ حکم خامخا په ځائے کیږی۔

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ
بيشكه | الله | نهٔ معاف كوى | چه شريک دِ وُنيسى | دَ هغهٔ سره | او معاف كوى | هغه چه | سوا
الله خو بس يو شرک نهٔ معاف كوى او دَ دے نه علاوه هرڅومره ګناهونه چه چاته غواړى نو
ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاۤءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى
له دے نه دى | هغه چاته چه وغواړى، | او څوک چه | شريک وُنيسى | دَ الله سره | بيشكه وُتړل هغهٔ | (په الله بانډِ)
معاف كوى ، او چا چه الله سره شريک جوړ كړو نو هغهٔ ډير غټ دروغ جوړ كړل او لوئے ګناه
إِثْمًا عَظِيْمًا ﴿٤٨﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ أَنْفُسَهُمْ ؕ
دروغ | ډير لوئے | ايا نهٔ دى كتلى تا | هغه خلقو ته | چه پاک ګنړى | خپل ځانونه
ئے وكړه - ايا تا دَ هغو خلقو حالت نهٔ دے كتلے چه دَ خپلے پاكدامنى پخپله تعريف كوى
بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَاۤءُ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿٤٩﴾ أُنْظُرْ
بلكه الله | پاكوى | هغه څوک چه وُغواړى | او په هغوى به ظلم نهٔ شى كولے | دَ تار (برابر) | وګوره ته
بلكه الله چه دَ چا په حقله وُغواړى نو پاک دامن ئے كړى ، او په هغوئى به دَ پوڅے قدرے زياتے هم نه كيږى. وګورى
كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَكَفٰى بِهٖٓ إِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿٥٠﴾
چه څنګه | هغوى تړى | په الله بانډِ | دروغ | ، او بس دهٔ | دا | ګناه | ښكاره -
دا خلق څنګه په الله تعالىٰ بانډِ دروغ تړى ، او دَ دوى دَ ښكاره مجرمينا په حقله دا يوه ګناه كافى ده
أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ أُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ
ايا نهٔ دى كتلى تا | هغه خلقو ته | چه وركړے شوے ده هغوئ ته | حصه | له كتاب نه | هغوى ايمان راوړى
ايا تا هغو خلقو طرف ته نهٔ دى كتلى كوموته چه دَ الله دَ كتاب (نه دَ علم) څهٔ حصه وركړے شوے ده (دَ دے باوجود
بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ وَيَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰٓؤُلَاۤءِ
په بُتانو | او شيطان بانډِ | او وائى | هغو خلقو ته | چه كافران دى | چه دا خلق
هغوى په بُتانو او شيطانانو ايمان راوړى ، او دَ كافرانو په حقله وائى چه دا خلق دَ مسلمانانو
أَهْدٰى مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَبِيْلًا ﴿٥١﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ
زيات درست دى | دَ مؤمنانو په نسبت | دَ لارے (په لحاظ سره) | هم دا | هغه خلق دى چه
په نسبت په ډيره ښهٔ لاره روان دى - هم دا خلق دى په كوموچه الله تعالىٰ لعنت
لَعَنَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا ﴿٥٢﴾
لعنت كړے دے په دوى | الله | او په چا چه | لعنت وكړى الله | پس هيڅ كله به تهٔ بيا نهٔ مومے | هغهٔ دَپاره | مدد ګار -
وَرولے دے ، او په چا چه الله تعالىٰ لعنت وُدروى نو هيڅوک به دَ هغهٔ مدد ګار بيا نهٔ مومے.
أَمْ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُوْنَ النَّاسَ نَقِيْرًا ﴿٥٣﴾
ايا هغوى له شته | څهٔ حصه | له بادشاهئ نه | پس هغه وخت به ورنه كړى هغوى | خلقو ته | پوڅے هم
ايا دَ هغوى (دَ الله) په بادشاهت كښے څهٔ حصه شته ؟ (كه چرے داسے وے) نو هغوى به خلقو ته دَ ذرے برابر څيز هم نهٔ وو وركړے

أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلٰى مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۚ

آیا هغوی حسد کوی | خلقو سره | په هغه څه چه | ورکړے دے هغوی ته الله | له خپل فضل نه

یا الله تعالیٰ چه په خپل فضل سره خلقو ته څه ورکړی دی په دے باندِ هغوی حسد کوی۔

فَقَدْ اٰتَيْنَآ اٰلَ إِبْرٰهِيمَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَاٰتَيْنٰهُمْ مُّلْكًا

پس بیشکه | ورکړے دے مونږ | آل دَ ابراهیم ته | کتاب | او پوهه | او ورکړے وه مونږ هغوی ته | بادشاهی

مونږ دَ ابراهیم علیه السلام خاندان ته کتاب او حکمت ورکړے دے او لویه بادشاهی مو ورته هم بخښلے

عَظِيمًا ﴿٥٤﴾ فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ۚ

لویه | پس په هغوی کښے | چا خو ایمان راوړو په هغه | او په هغوی کښے | څوک منع شو | له هغه نه

وه۔ نو بیا په هغوی کښے چا خو ایمان راوړو او چا ترے نه مخ وګرځولو۔

وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴿٥٥﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِاٰيٰتِنَا

او کافی دے | دوزخ | بلیدونکے اور | بیشکه | کوم خلقو چه | انکار وکړو | زمونږ دَ آیتونو نه

او دَ دوزخ ګرم اور ورله کافی دے۔ بیشکه چا چه زمونږ آیتونو منلو نه انکار کړے دے

سَوْفَ نُصْلِيهِمْ نَارًا ۭ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ

زر دے چه | مونږ به وغورزوو هغوی | دوزخ کښے | هر کله چه | وسوزی | څرمنے دَ هغوی

ډیر زر به مونږ هغوی دَ دوزخ اور ته وغورزوو، هر کله چه دَ هغوی څرمنے وسوزی، نو مونږ به

بَدَّلْنٰهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ ۭ إِنَّ اللّٰهَ

نو مونږ به بدلے کړو هغوی ته | څرمنے | نورے له هغے نه | دَ دے دَ پاره چه هغوی وڅکی | عذاب | بیشکه | الله

ور ته نورے څرمنے ورواغوندوو، چه هغوی دَ عذاب خوند وڅکی، بیشکه الله تعالیٰ ډیر

كَانَ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿٥٦﴾ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

دے | زبردست | دَ حکمت خاوند | او هغو خلقو چه | ایمان ئے راوړو | او ئے کړل عملونه | نیک

غالب او دَ حکمتونو خاوند دے۔ او هغه خلق چه ایمان ئے راوړو او هغوی نیک عمل هم وکړو



سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۭ

مونږ به هغوی داخل کړو | په جنتونو کښے | چه بهیږی | دَ هغے لاندِ | نهرونه | همیشه به وی هغوی په هغے کښے

مونږ به ډیر زر هغوی داسے باغونو ته داخل کړو چه دَ هغے لاندِ به نهرونه بهیږی کوم ځائے چه به هغوی

لَهُمْ فِيهَآ أَزْوٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۡ وَّنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيلًا ﴿٥٧﴾

هغوی له دی | په هغے کښے | بیبیانے | پاکے | او مونږ به داخل کړو هغوی | دَ راحت سیوری ته

همیشه وی، هلته به هغوی دَ پاره پاکے بیبیانے وی او مونږ به ډیر ګڼړ سیوری کښے هغوی له ځائے ورکړو

إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمٰنٰتِ إِلٰٓى أَهْلِهَا ۙ

بیشکه | الله | حکم درکوی تاسو ته | چه ادا کړئ تاسو | امانتونه | دَ هغے مالکانو ته

(مسلمانانو!) الله تعالیٰ تاسو ته حکم درکوی چه امانتونه خپلو مالکانو ته واپس ادا کوئ،

وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ ۚ إِنَّ

او هرکله چه فیصله کوئ تاسو | په مینځ | دَ خلقو کښے | نو فیصله کوئ | په انصاف سره | بیشکه

او هرکله چه دَ خلقو ترمینځه فیصله کوئ نو په عدل او انصاف سره ئے فیصله کوئ، یقینًا

اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا

الله | ډیر ښهٔ | نصیحت کوی تاسو ته | په دے سره، | بیشکه | الله | دے | اورېدونکے

الله تعالیٰ تاسو ته ډیر ښکلے نصیحت کوی. بیشکه الله تعالیٰ هر څهٔ اورې او هر څهٔ

بَصِيرًا ۞۵۸ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ

لیدونکے. | اے دَ ایمان خاوندانو! | حکم منئ دَ الله | او حکم منئ (دَ هغهٔ) دَ رسول

وینی گوری. اے مؤمنانو! دَ الله تعالیٰ حکم منئ او دَ رسول حکم منئ،

وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ۖ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ

او دَ حاکمانو | له تاسو نه | پس که چرے | تاسو جګړه وکړئ | په څهٔ خبره

او دَ خپلو (مسلمانانو) حاکمانو، نو که ستاسو ترمینځه په څهٔ خبره کښے جګړه راؤچته شی

فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

نو بیرته ورګرځوئ هغه | الله طرف ته | او (دَ هغهٔ) دَ رسول (طرف ته) | که چرے تاسو | ایمان لرئ | په الله

نو الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول طرف ته رجوع وکړئ که تاسو په رښتیا په الله تعالیٰ او په

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ۞۵۹ أَلَمْ تَرَ ع ۹ ۵

او په ورځ | دَ آخرت | دا | غوره دے | او ډیر ښهٔ دے | په اعتبار دَ انجام سره | آیا تا نهٔ دی کتلی

آخرت یقین لرئ، دا خبره ښهٔ ده او دَ دے انجام ډیر ښائسته دے، آیا تا دَ هغه

إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ

هغو خلقو ته | چه ګمان کوی هغوی | چه هغوی | ایمان راوړے | په هغه څهٔ چه | نازل شو | ستا طرف ته (قرآن)

خلقو په حالت باندے غور نهٔ دے کړے چه دا دعویٰ کوی چه هغوی په هغے (کلام) باندے ایمان لری کوم چه

وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ

او په هغه څهٔ | چه نازل شول | له تا نه وړاندے | هغوی غواړی | چه فیصله یوسی | شیطانانو طرف ته

په تا نازل شو او په هغو باندے هم چه له تا نه وړاند نازل شول (لیکن) غواړی دا چه خپلے جګړے شیطان ته وړاندے

وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ ۖ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ

حال دا دے چه هغوی ته حکم شوے دے | چه مهٔ منئ هغه | او غواړی | شیطان | چه بے لارے کړی هغوی

کړی حال دا دے چه هغوی ته حکم شوے دے چه هغوی دَ هغهٔ نه انکار وکړی او شیطان خو دا غواړی چه هغوی په ډیره لرے

ضَلَالًا بَعِيدًا ۞۶۰ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ

په ګمراهئ لرے سره | او هرکله چه وویلے شی | هغوی ته | راشئ تاسو | هغه طرف ته | چه نازل کړل | الله

ګمراهئ کښے وغورزوی. او هرکله چه هغوی ته وویلے شی چه راشئ هغه څیز طرف ته کوم چه الله تعالیٰ نازل کړے دے

وَاِلَى الرَّسُوْلِ رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ

اودَ رسول طرف ته | نو ته وګورې | منافقان | (چه) هغوی ایسار یږی | له تا نه

او دَ رسول طرف ته راشئ، نو ته به منافقانو ته وګورې چه هغوی له تا نه لرے لرے

صُدُوْدًا ﴿٦١﴾ فَكَيْفَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ بِمَا

ډیر وایسار یږی وسره | پس څنګه حال دے | هر کله چه | ورسیږی هغوی ته | څه مصیبت | په سبب د هغه څه

ګرځی ، بیا هغه وخت به ئے څنګه حال وی؟ چه دَ خپله لاسه پیرے یو آفت

قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَآ

چه وړاندے لیږلی دی | لاسونو دَ هغوی | بیا راشی هغوی تا ته | چه قسم خوری | په الله | چه نه وه اراده زمونږ

راپریوزی ، نو تا له راځی او په الله تعالیٰ باندے قسمونه خوری چه زمونږ غرض خو ټم

اِلَّآ اِحْسَانًا وَّتَوْفِيْقًا ﴿٦٢﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ

سوا دَ نیکئ | او موافقت نه | هم دا هغه خلق دی | پوهیږی الله | په هغه څه چه دَ هغوی په زړونو کښے

نه وو فقط بښیګړه لتول او اتفاق راوستل وو۔ دَ دغه خلقو په زړونو کښے چه څه (ریښتیا نه) دی هغه الله ته ښه معلوم دی

فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

پس مخ واړوه | له هغوی نه | او نصیحت وکړه هغوی ته | او ووایه | هغوی ته | دَ هغوی په زړونو کښے

نو ته دَ هغوی دَ خبرو پروا مه کوه هغوی پوهوه او داسے اثری نصیحتونه ورته کوه ، چه په زړونو کښے ئے

قَوْلًا بَلِيْغًا ﴿٦٣﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ

خبره اثر کوونکے ۔ | او نه دے لیږلے مونږ | هیڅ رسول | مګر | دَ پاره دَ دے چه هغه اطاعت دِ وشی

ځائے نیسی ، او (اے پیغمبره!) مونږ چه هر یو پیغمبر رالیږلے دے نو فقط دِ دَ پاره مو رالیږلے دے چه دَ الله په حکم

بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ

په حکم دَ الله | او که چرے هغه خلق | هر کله چه هغوی ظلم کړے وُو | په خپلو ځانونو | راغلی وے تا ته

دَ هغه خبره ومنلے شی که هغوی داسے کار کړے وے چه کوم وخت ئے په ځانونو زیاتے وکړو نو چه تا له راغلی وے

فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ

بیا بخښنه غوښتلے وے هغوی | دَ الله نه | او بخښنه غوښتلے وے | هغوی دَ پاره | رسول (هم) | نو خامخا به هغوی موندلے وو | الله

الله نه ئے بخښنه غوښتلے وے ، او رسول هم ورله معافی غوښتلے وے ، نو الله تعالیٰ به ئے یقیناً

تَوَّابًا رَّحِيْمًا ﴿٦٤﴾ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى

توبه قبلوونکے | مهربانه ۔ | پس قسم دے دَ رب ستا | چه ایمان به رانه وړی هغوی | تر دے چه

بخښونکے مهربانه موندلے وے۔ ستا په رب مِ دِ قسم وی چه دا خلق به تر هغے ایمان نه راوړی

يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا

حاکم کړی تا | په هغه معامله کښے | چه واقع شوه | دَ هغوی په مینځ کښے | بیا | هغوی بیا به نه مومی

ترڅو چه په خپلو جګړو کښے تا حکم و نه منی ، او بیا چه ته فیصله وکړے نو چه

فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ﴿٦٥﴾
په خپل زړه کښې | تنګي | له هغه څه نه چه | فيصله وکړے ته | او ومني | هغه په پوره منلو سره
دوئ په خپلو زړونو کښې په هغے فيصله هيڅ تنګسيا نه بيا موي او (هغه) پوره ومني ـ
وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا
او که چرے مونږ | ليکلے وے | په هغوی باندِ | چه | قتل کړئ | خپل ځانونه | يا ووځئ
او که مونږ دوئ ته دا حکم ورکړے وے چه خپل ځانونه ووژنئ يا د خپلو کورونو نه بهر ووځئ نو
مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ ؕ وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا
د خپلو کورونو نه | نو نه به ؤ وکړے هغوی دا کار | مګر لږ و | د هغوی نه | او که چرے هغوی | کړے وے
په دوئ کښې کمو خلقو به په دے حکم عمل کړے وو ، او که چرے دوئ په دغے نصيحت
مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا ﴿٦٦﴾ لا وَّاِذًا
د کوم چه هغوی ته نصيحت کولے شي | نو وه به | غوره | هغوی له | او زيات مضبوط ساتونکے (ايمان لره) | او هغه وخت
عمل کړے وے ، نو دا به ورله ډيره ښه وه او د ايمان د مضبوطيا سبب به ؤو ـ او چه دلے
لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٦٧﴾ لا وَّلَهَدَيْنٰهُمْ
مونږ به ورکولو هغوی ته | له خپل طرف نه | ثواب | ډير لوئے | او خامخا به ښودلے وه مونږ هغوی ته
ئے کړے وے نو مونږ به ورله د خپل طرف نه ډير لوئے اجر ورکړے وو ـ او په سمه لاره
صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٦٨﴾ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ
لاره | سمه | او څوک چه | حکم ومني | د الله | او د رسول | پس هغه خلق به وي
به مو بوتلي ؤو ـ او څوک چه د الله او د رسول حکمونه مني نو هغوئ به د
مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ
د هغو کسانو سره | چه انعام کړے دے | الله | په هغوی باندِ | له پيغمبرانو | او صديقانو
هغے خلقو سره ملګري وي چه الله پرے نعمتونه ورولي دي چه پيغمبران ، صديقان
وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿٦٩﴾ ؕ ذٰلِكَ
او شهيدانو | او صالحانو نه | او ډير ښه دي | دا خلق | په ملګرتيا کښې | دا دے
شهيدان او نيکان دي او دغه خلق ډير ښه ملګري دي ـ دا فضل
ع ٩/١١ اَلْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿٧٠﴾ ع يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا
فضل | د الله | او کافي دے | الله | پوهه | اے د ايمان خاوندانو!
دے چه د الله د طرف نه کيږي او د دے په حقيقت پوهيږے د الله علم بس دے ـ اے مؤمنانو!
خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ﴿٧١﴾
واخلئ | د سله خپله | بيا روان شئ | ټولی ټولی | يا روان شئ | ټول په جمع
په خپل حفاظت او تيارئ کښې لګيا وسيږئ بيا چه وخت راشي نو د موقعے مطابق ډلے ډلے بهر ووځئ يا ټول په يو ځائے ووځئ

وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ

او بیشکه | ځنې له تاسو نه | هغه څوک دی | چه وروستو پاتې کیږی | بیا که چرې | ورسیږی تاسو ته

او (یادساتئ) په تاسو کښې به داسې خلق هم وی چه (په دا سې موقعو) ضرور به سستی کوی، بیا که چرې تاسو ته تکلیف ورسیږی

مُّصِيْبَةٌ قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ

څه مصیبت | نو وائی | انعام وکړو | الله | په ما باندې | چه په دغه وخت کښې نه وم زه | هغوی سره

نو داسې منافق به وائی چه الله تعالیٰ په ما ډیر احسان وکړو ، چه زه د هغو خلقو سره تلې

شَهِيْدًا ﴿۷۲﴾ وَلَئِنْ اَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوْلَنَّ كَاَنْ

حاضر - | او که چرې | ورسیږی تاسو ته | فضل | له طرفه د الله نه | نو هغه به ضرور وائی | ګویا چه

نه وم - او که په تاسو الله تعالیٰ فضل وکړی ، تو بیا وائی او داسې لګیا وی

لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهٗ مَوَدَّةٌ يّٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ

نه وه | ستاسو او د هغه ترمینځه | (څه) دوستی | کاش! چه زه | وې

لکه چه ستاسو او د هغوی ترمینځه هیڅ مینه محبت نه وو ، اې کاش! که زه هم ورسره تلې

مَعَهُمْ فَاَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿۷۳﴾ فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

د هغوی سره | چه حاصله کړې مې وې | کامیابي | لویه | پس پکار ده چه جنګ وکړی | د الله په لاره کښې

وې نو غټ کار به مې شوې وو - (دوی ته دِ معلومه وی چه) د الله تعالیٰ په لاره کښې هغه کسانو

الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ؕ وَمَنْ يُّقَاتِلْ

هغه خلق | چه خرڅوی | ژوند | د دُنیا | په بدله د اخرت کښې | او څوک چه | جنګ کوی

له جنګیدل پکار دی چه د دې دُنیا ژوند د اخرت د ژوند په بدله کښې خرڅوی ، او څوک چه د الله تعالیٰ

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ اَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا

په لاره کښې | د الله | بیا هغه ووژلې شی | یا غالب راشی | پس زر دی چه ورته کړو مونږ هغه ته | اجر

په لاره کښې وجنګیږی بیا که ووژلې شی یا غلبه بیا مومی نو مونږ به ورله ډیر لوئې اجر

عَظِيْمًا ﴿۷۴﴾ وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ

لوئې | او څه (عذر) دې تاسو د پاره | چه تاسو جنګ نه کوی | په لاره کښې | د الله | او

ورکړو - او په تاسو باندې څه شوی دی چه تاسو د الله تعالیٰ په لاره کښې او د هغه

الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِيْنَ

د کمزورو | سړو | او ښځو | او د ماشومانو (په خاطر) | کوم چه

کمزورو سړو ، ښځو او د ماشومانو د خاطره جنګ نه کوئ چه هغوی

يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ

وائی | اې زمونږ ربه! | اُوباسه مونږه | له دې کلی نه | چه ظالمان دی

فریادونه کوی، چه اې زمونږه ربه! مونږ د دې کلی (مکې) نه وُباسه چه خلق ئې ظالما

أَهْلُهَا ۚ وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ۙ وَاجْعَل لَّنَا

دَ دے اوسیدونکی | او جوړ کړه | موږ دپاره | له خپل طرف نه | څوک دوست | او جوړ کړه | موږ دپاره

دی ۔ او د خپل طرف نه زموږ څوک ملګرے جوړ کړه او د خپل طرف نه

مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ﴿٧٥﴾ الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ

له خپل طرف نه | مددګار | کوم خلق چه | مؤمنان دی | هغوی جنګ کوی | په لاره کښے

څوک زموږ مددګار جوړ کړه ۔ د چا چه ایمان نصیب شوے دے هغوی د الله په لار کښے

اللَّهِ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ

د الله | او کوم خلق چه | کافران دی | هغوی جنګ کوی | په لاره کښے | د شیطان

جنګ کوی، او څوک چه کافران دی ، هغوی د شیطان په لار کښے جنګیږی

فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ ۖ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ

پس تاسو جنګ وکړئ | د دوستانو سره | د شیطان | بیشکه | چال | د شیطان

نو د شیطان د ملګرو خلاف جنګ کوئ ، بیشکه د شیطان چالونه ډیر

كَانَ ضَعِيفًا ﴿٧٦﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ

کمزورے وی | آیا نهٔ دی کتلی تا | هغه خلقو ته | چه وویلے شو | هغوی ته | چه منع کړئ | خپل لاسونه

کمزوری دی ۔ آیا تا هغو خلقو ته کتلی دی چه ورته وویلے شوی وُو چه خپل لاسونه (د جنګ نه) ونیسئ

وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ

او قائم کړئ | مونځ | او ورکړئ | زکوٰة | پس هر کله چه | فرض کړے شو | په هغوی باندے | جهاد

و مونځونه کوئ او زکوٰة ورکوئ ، نو اوس چه هغوی ته د جنګ حکم ورکړے شو

إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللَّهِ

(نو) یوه ډله | له هغوی نه | چه ویریږی | له خلقو نه | په شان د ویریدلو | د الله نه

نو د یو ټولی پکښے دا حال دے چه د خلقو نه داسے ویریږی لکه څنګه چه د الله نه ویره کول پکار دی

أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۚ

یا د هغهٔ نه هم زیات ویریدل | او ووئیل | اے زموږه ربه! | ولے فرض کړو تا | په موږ باندے | جهاد

بلکه د دے نه هم زیاته ویره ، او وائی چه اے زموږه ربه! په موږ دِ جهاد ولے فرض کړو ؟

لَوْلَا أَخَّرْتَنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۗ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا

ولے مهلت رانهٔ کړو تا موږ ته | لږ موده پورے | ووایه | چه فائده | د دُنیا

ولے دِ موږ ته لږ نور مهلت رانهٔ کړو ؟ (اے پیغمبره!) ورته ووایه چه د دُنیا فائده

قَلِيلٌ ۚ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ

لږه ده | او آخرت | بهتر دے | هغه چا د پاره | چه پرهیزګاری | او نهٔ | به ظلم کولے شی په تاسو

ډیره لږه ده ، او څوک چه د الله تعالیٰ نه ویریږی هغهٔ له آخرت غوره دے ، او په تاسو به پوټی قدرے هم

فَتِيلًا ﴿٧٧﴾ اَيْنَ مَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ

ذره هم | كوم ځائے چه هم تاسو يئ | بيايه مومي تاسو | مرگ | اوكه چرته تاسو يئ

ظلم نه شي كولے ۔ هر ځائے كيتے چه تاسو يئ مرگ به درورسي ، اگركه تاسو په مضبوطو

فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ؕ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَّقُولُوا هٰذِهٖ

په قلاگانو | مضبوطو كښے | اوكه چرے ورسيږي هغوى ته | (څه) نيكي | نو وائي | دا

قلاگانو كښے يئ ۔ اوا هركله چه هغوى ته فائده ورسيږي نو وائي چه دا د الله

مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّقُولُوا هٰذِهٖ

دَ الله دَ طرف نه | اوكه چرے | ورسيږي هغوى ته | (څه) مصيبت | (نو) هغوى وائي | دا

دَ طرف نه مقرر وه ، او چه نقصان ورته ورسيږي ، نو وائي چه دا ستا دَ طرف

مِنْ عِنْدِكَ ؕ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ

ستاله طرفه نه دے | ووايه | ټول | له طرفه دَ الله نه دي | پس څه (حال) دے | دَ هغو خلقو

نه دے ، ورته ووايه چه هر څه دَ الله دَ طرفه دي ، آخر په دے قوم څه شوي

لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴿٧٨﴾ مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ

چه نه دي نږدے هغوى | چه پوهه شي | په خبره | او هغه څه چه | ورسيدل تا ته | له نعمت نه

دي چه په هيڅ خبره نه پوهيږي (اے انسانه!) تا ته چه هره فائده رسي نو هغه دَ

فَمِنَ اللّٰهِ ۫ وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ؕ

نو هغه دَ الله دَ طرفه دي | او هغه څه | چه ورسيدل تا ته | له بدئ نه | نو هغه ستا دَ نفس له طرفه دي

الله دَ طرف نه ده ، او كوم تاوان چه در رسي ، نو دَ خپل عمل دَ كبله دررسي ۔

وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا ﴿٧٩﴾

او ولیږلے مونږ ته | دَ خلقو دَ پاره | پیغمبر | او كافي دے | الله | گواه

او (اے پیغمبره!) ته خو مونږ تولو خلقو ته رسول لیږلے یئ او په دے خبره یوازے دَ الله گواهي كافي ده ۔

مَنْ يُّطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ

څوك چه حكم مني | دَ پيغمبر | پس بيشكه هغه حكم ومنلو | دَ الله | او څوك چه | مخ واړوي | نو نه ئے ليږلے مونږ ته

چا چه دَ رسول خبره ومنله نو هغه دَ الله حكم ومنلو ، او څوك چه ترے نه مخ گرځوي نو ته خو مونږ په هغوى

عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ﴿٨٠﴾ وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ ۫ فَاِذَا بَرَزُوا مِنْ عِنْدِكَ

په هغوى باندِ | نگران | او هغوى وائي | ومو منلو | بيا هركله چه بهر ووځي | ستاله طرف نه

څه نگران نه يئ مقرر كړے ، او (دا خلق په ظاهره خو) وائي چه مونږ منو ، خو چه ستا (دَ مجلس) نه پاڅي نو بيا نو ئے

بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ؕ وَاللّٰهُ

نو دَ شپے مشوره كوي | يوه ډله | له هغوى نه | خلاف دَ هغے نه | چه ته ئے فرمائے | او الله

په كښے داسے شته چه دَ شپے مجلس جوړ كړي او ستا دَ خبرو خلاف مشورے كوي ۔ او الله تعالیٰ

يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُوْنَ ۚ فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ

لیکی | کوم چه هغوی مشورے کوی | پس مخ واړوه | له هغوی نه | او توکل کوه | په الله باندې

د هغوی ټولے پټے مشورے لیکی، نو د دوئ پرواه مه کوه، او په الله تعالیٰ باندې توکل ساته

وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿٨١﴾ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ؕ وَلَوْ كَانَ

او بس دے | الله | کافی | پس آیا نهٔ | کوی غور هغوی | په قرآن کښے | او کهٔ چرے داوے

او الله تعالیٰ کافی کارساز دے. آیا دوی قرآن ته فکر نهٔ کوی کهٔ دا کتاب (قرآن)

مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿٨٢﴾ وَاِذَا

له طرفه د ماسوا د الله نه | نو خامخا به موندلے وو هغوی | په دے کښے | اختلاف | ډیر | او هرکله چه

د الله تعالیٰ نه سوا د بل چا د طرف نه وے، نو په دے کښے به خلقو ډیر اختلاف موندلے وو، او

جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ ؕ

راځی هغوی ته | څهٔ خبره | د امن | یا د ویرے | نو هغوی مشهوروی | هغه

دوئ چه د امن یا د ویرے یو خبر واوری، نو هغه فوراً په خلقو کښے خور کړی

وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَى الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓى اُولِى الْاَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ

او کهٔ چرے | رسولے دوی هغه | د رسول | او د حکم والو طرف ته | له خپلو نه | نو معلوم کړے به وه هغه

او کهٔ دوی دا سے خبرونه پیغمبر ته او د خپل (مسلمان) جماعت مشرانو ته سپارلے نو څوک

الَّذِيْنَ يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ

هغه خلقو چه | تحقیق کولے شی | له هغوی نه | او کهٔ چرے نه وے | فضل د الله | په تاسو باندې

چه د خبرے ته رسیدل هغوی به پرے سم پوهیدل. او کهٔ په تاسو د الله تعالیٰ مهربانی او

وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٨٣﴾ فَقَاتِلْ

او د هغهٔ رحمت | نو خامخا به پیروی کړے وه تاسو | د شیطان | سوا د لږو خلقو نه | پس ته جهاد وکړه

رحمت نهٔ وے نو (تاسو دومره کمزوری وئ چه) د یو څو تنو نه بغیر نور ټول به په شیطان پسے روان شوی وی. نو (اے پیغمبره!)

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ

په لاره کښے | د الله | نشته ذمه واری په تا | مګر د خپل ځان | او رغبت ورکړه

د الله تعالیٰ په لاره کښے جنګ کوه، ته د خپل ځان نه بغیر د بل چا ذمه وار نهٔ یئے، او مؤمنان د جنګ

الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ

مؤمنانو ته (د جهاد) | نزدے ده چه | الله | بند کړی | جنګ | د کافرانو

د پاره تیار کړه، ډیر زر به الله تعالیٰ د کافرانو زور مات کړی او

وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ﴿٨٤﴾ مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً

او الله | ډیر سخت دے | په جنګ کښے | او ډیر سخت دے | په عذاب ورکولو کښے | څوک چه سفارش وکړی | سفارش

د الله تعالیٰ زور د ټولو نه غالب دے او هغه په سزا ورکولو کښے د هر چا نه زیات سخت دے. څوک چه د نیکئ سفارش

حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً

نیک | وی به | هغهٔ له | حصه | دَ هغې نه | او څوک چه | سفارش وُکړی | سفارش

کوی ، هغهٔ به دَ نیکئی برخه اخلی ، او څوک چه دَ بدئ سفارش

سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

بد | وی به | هغهٔ له (هم) | حصه | دَ هغې نه | او | دے | الله

کوی ، هغهٔ به دَ بدئ برخه اخلی ، او الله تعالیٰ په هر

عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ مُّقِيْتًا ۝٨٥ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ

په هر څیز باندِ | قادر | او هر کله چه | دعائی درکړے شی تاسو ته | دَ سلام

څیز باندِ قدرت لری ، او هر کله چه په تاسو سلام واچولے شی نو

فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

نو دعائی درکړئ | بهتره | دَ هغې نه | یا واپس کړه هم هغه کلمه | بیشکه | الله | دے | دَ هر څیز

(اچونکی ته) دَ هغې نه بهتر جواب ورکوئ یا کم نه کم هغسے جواب ورکوئ ، یقیناً الله تعالیٰ دَ هرے خبرے

حَسِيْبًا ۝٨٦ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ

حساب کوونکے ۔ | هم الله دے | نشته | بل څوک معبود | سوا | دَ هغهٔ نه | خامخا به جمع کړی تاسو

حساب اخستونکے دے ۔ الله هغه دے چه دَ هغهٔ نه بغیر بل څوک معبود نشته ، تاسو ټول به خامخا دَ قیامت

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ۝٨٧

په ورځ | دَ قیامت | نشته دے هیڅ شک | په هغې کښې | او څوک دے | زیات رښتونے | دَ الله نه | په خبره کښې

په ورځ راجمع کوی چه دَ هغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته، دَ الله تعالیٰ نه زیات رښتینے خبره لاڈ بل چا کیدے شی؟

فَمَا لَكُمْ فِى الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ

پس په تاسو څهٔ وُشو | چه دَ منافقینو په حقله | دوه ډلے شوئ | او الله | اَړَوُلَه کړل هغوی

دا په تاسو څهٔ چل شوے دے چه دَ منافقانو په حقله دوه ډلے شوی یئ حال دا چه هغوئ الله دَ خپل بد عمل په وجه

بِمَا كَسَبُوْا ؕ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ

په وجه دَ هغوی دَ عملونو | ایا تاسو غواړئ | چه لاره وُښایئ تاسو | هغه چا ته چه | ګمراه کړی دی هغوی الله | او چا لره چه

(دَ هغوئ عقلونه) اَړَوُنه کړی دی ایا تاسو غواړئ چه دا سے خلقو ته لار وُښایئ کوم چه الله تعالیٰ ګمراه کړی دی ،

يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ۝٨٨ وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ

ګمراه کړی | الله | نو هیڅ کله به بیا نهٔ مومے | هغهٔ دَ پاره | (څهٔ) لار | هغوی خو غواړی | چه تاسو هم کافران شئ

او څوک چه الله تعالیٰ په ګمراهئ کښې وُغورزوی هغهٔ دَ پاره به تهٔ هیڅ لار بیا نهٔ مومے۔ هغوئ خو دا غواړی لکه څنګه چه

كَمَا كَفَرُوْا فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ

لکه څنګه چه | هغوی کافران شول | بیا تاسو شئ | برابر | پس مهٔ نیسئ تاسو | دَ هغوی نه | دوستان

په خپله کافران دی دَ غسے تاسو هم کافران شئ بیا ټول برابر شئ ، نو هیڅوک ترے ته ځان له ملګری کوئ مه



النصف

ع ١١ ٨

حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ

تر دے چه | هغوی هجرت وکړی | دَ الله په لاره کښے | بیا که چرے | هغوی مخ واړولو | نو قید کړئ هغوی

ترڅو چه هغوی دَ الله تعالیٰ په لاره کښے هجرت ونه کړی ، بیا که چرے هغوی (تاسو نه) انکار وکړی نو چه

وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ ۠ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا

او ووژنئ هغوی | کوم ځائے چه | بیا مومئ تاسو هغوی | او مهٔ جوړوئ تاسو | له هغوی نه | دوست

کوم ځائے په لاس درځی هلته ئے نیسئ او وژنئ ئے او هیچرے تر ے نه هیڅوک خپل ځان له

وَّلَا نَصِيْرًا ۙ ﴿۸۹﴾ اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍ

او نهٔ مددګار | مګر هغه خلق کوم چه | یو ځائے کیږی | هغو خلقو سره

ملګرے یا مددګار مهٔ جوړوئ ۔ سوا دَ هغو خلقو نه چه یو داسے قوم سره یو ځائے شی چه تاسو

بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ اَوْ جَآءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ

چه ستاسو او دَ هغوی په مینځ کښے | معاهده دَه | یا هغوی راشی تاسو ته | چه تنګے شوی وی | دَ هغوی سینے

کښے او په هغوی کښے معاهده وی یا په داسے حالت کښے تاسو له راشی چه په جنګ ستومانه

اَنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ اَوْ يُقَاتِلُوْا قَوْمَهُمْ ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ

چه جنګ وکړی هغوی تاسو سره | یا جنګ وکړی | دَ خپل قوم سره | او که | غوښتلے وے الله | نو غالب کړی به ئے وو هغوی

وی ، نهٔ تاسو سره جنګ کوی او نهٔ دَ خپل قوم سره ، او که دَ الله تعالیٰ مرضی وے نو هغوی به ئے

عَلَيْكُمْ فَلَقٰتَلُوْكُمْ ۚ فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ وَاَلْقَوْا

په تاسو باندِ | بیا به هغوی جنګیدلی تاسو سره | بیا که چرے | هغوی پریږدی تاسو | پس جنګ نهٔ کوی تاسو سره | او راغورزوی

په تاسو غالب کړی وے نو جنګونه به ئے درسره کول نو که چرے هغوی تاسو پریږدی او تاسو سره جنګ نهٔ کوی او دَ صلے

اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ۙ فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا ﴿۹۰﴾

تاسو ته | پیغام دَ صلے | نو نهٔ دَه جوړه کړے | الله | تاسو له | په هغوی باندِ | لاره

لاس درته راوړاندِ کړی نو بیا الله تعالیٰ تاسو له دَ هغے په مقابله کښے دَ جنګیدو هیڅ حق نهٔ دے درکړے ۔

سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ وَيَاْمَنُوْا

زر دے چه بیا به مومئ تاسو | (ځینې) نور خلق | کوم چه غواړی | چه په امن شی هغوی له تاسو نه | او په امن شی

یو بل قسم منافقان به هم بیا مومئ چه (جنګ نهٔ خوښوی) دا غواړی چه ستاسو له اړخ نه هم په امن وی

قَوْمَهُمْ ۭ كُلَّمَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ اُرْكِسُوْا فِيْهَا ۚ فَاِنْ

له خپل قوم نه | هر کله چه | راګرځولے شی هغوی | فساد طرف ته | نو راولی غورزولے شی هغوی په هغے کښے | بیا که چرے

او دَ خپل قوم دَ طرف نه هم په امن وی ، خو هر کله چه دَ شر موقع بیا مومی نو په هغے کښے ور دانګی ، نو که دا سے خلق

لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ۙ وَيَكُفُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ

دَ چرے نهٔ شی هغوی تاسو نه | او (نهٔ) هغوی پیش کړی تاسو ته | صلح | او (نهٔ) هغوی منع کړی | خپل لاسونه

ستاسو دَ مقابلے نه څنګ ته نهٔ شول او صلح ئے درته وړاندِ نهٔ کړه ، او لاسونه ئے ونهٔ نیول

فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ۚ وَاُولٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا

نو هغوی و نیسئ | او وئے وژنئ | کوم ځائے چه | بیا مومئ هغوی | او هم داکا هغه خلق | جوړ کړو مونږ

نو کوم ځائے چه ئے بیا مومئ هلته ئے رانیسئ او وژنئ ئے ، هم په دغے خلقو باندے مونږ تاسو له

لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿٩١﴾ ع وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ

ع ١٢ تاسو له | په هغوی باندے | قوت | ښکاره | او نه دی مناسب | یو مسلمان له | چه و وژنئ

د لاس اُوچتولو څرګند اختیار درکړے دے - او دَ یو مسلمان دا کار نه دے چه یل مسلمان دِ .

مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيْرُ

یو مسلمان | لیکن | په خطا | او څوک چه | و وژنی | یو مسلمان | له غلطئ نه | نو ازاد دِ کړی

و وژنی مګر په غلطئ سره ، او چا چه یو مؤمن مسلمان په غلطئ سره مړ کړو نو کفاره ئے دا ده چه)

رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا

څټ | دَ مسلمان غلام | او خون بها | دِ ادا کړی | دَ هغه وارثانو ته | مګر | دا چه معاف ئے کړی هغوی

یو مؤمن غلام دِ ازاد کړی او دَ مړی وارثانو ته دِ خون بها ورکړی ، مګر که هغوی خون بها و بخښی

فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ

پس که چرے | وی هغه | دَ هغه قوم نه | چه ستاسو دښمن وی | او هغه مسلمان وی | نو ازاد دِ کړی | څټ

(نو روا دی) او که چرے هغه مؤمن بنده دَ داسے قوم نه وو چه ستاسو ورسره دښمنی وه ، نو یو مسلمان غلام دِ ازاد

مُّؤْمِنَةٍ ۚ وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ فَدِيَةٌ

دَ مسلمان غلام ، | او که چرے وی هغه | له داسے قوم نه | چه ستاسو او دَ هغوی ترمینځه | معاهده وی | نو هم خون بها دِ

کړی - او که دَ داسے قوم بنده ؤ چه ستاسو ورسره معاهده وه نو دَ هغه وارثانو

مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ

ادا کړی | دَ هغه وارثانو ته | او ازاد دِ کړی | څټ | دَ مسلمان غلام | پس څوک چه | غلام بیا نه مومی

ته دِ خون بها هم ورکړی او یو مسلمان غلام دِ هم ازاد کړی ، او څوک چه غلام مونده نه

فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ ۫ تَوْبَةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ

نو روژے دِ و نیسی | دوه میاشتے | پرله پسے | دا توبه ده | له طرفه دَ الله نه | او الله دے

نه شی ، نو پرله پسے دوه میاشتے روژے دِ و نیسی ، په طور دَ توبے چه دَ الله دَ طرف نه مقرر ده . او الله په

عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿٩٢﴾ وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ

پوهه | خاوند دَ حکمت ، | او څوک چه | و وژنی | یو مسلمان | قصدًا | نو دَ هغه سزا ده

هر څه پوهه او دَ حکمت خاوند دے . او څوک چه یو مؤمن قصدًا مړ کړی ، نو دَ هغه سزا

جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَ

دوزخ | همیشه به وی | په هغے کښے | او غضب وشو | دَ الله | په هغه باندے | او لعنت ئے کړے دے په هغه | او

دوزخ دے چه همیشه به پکښے پروت وی او دَ الله تعالیٰ قهر او لعنت به پرے وریږی او

أَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا ﴿٩٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ
تیارکړې دې | هغهٔ له | عذاب | لوئے ۔ | اے مؤمنانو ! | هر کله چه | سفر کوئ تاسو
داسے (قاتل) له الله ډیره لویه سزا مقرر کړے ده۔ اے مؤمنانو! تاسو چه د الله په لاره کښے (د جهاد د
فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ
د الله په لاره کښے | نو تحقیق کوئ | او مهٔ | وایئ | هغه چاته چه | اچولے دے هغهٔ | تاسو ته
پاره) لاړ شئ نو (د هرے خبرے) ښهٔ تحقیق کوئ، او څوک چه درباندِ سلام واچوی نو هغهٔ ته دا مهٔ
السَّلَامَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا
سلام | چه نهٔ یے تهٔ | مؤمن | تاسو غواړئ | سامان | د ژوند د دنیا
وایه چه تهٔ مؤمن نهٔ یې، (که) تاسو د دنیا مال اسباب غواړئ نو د الله تعالیٰ
فَعِنْدَ اللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ كَذَٰلِكَ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلُ فَمَنَّ اللَّهُ
پس الله سره دی | غنیمتونه | ډیر ، | هم دغه شان | وئ تاسو | وړاندِ له دے نه | پس احسان وکړو | الله
سره ډیر غنیمتونه پراتهٔ دی، وړاندِ خو تاسو هم داسے (د اسلام نه ناواقفه) وئ بیا په
عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوا إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿٩٤﴾
په تاسو باندِ | پس تحقیق وکړئ | بیشکه | الله | دے | په هغه څهٔ چه | تاسو ئے کوئ | خبردار
تاسو باندِ الله احسان وکړو، نو تاسو ښهٔ تحقیق کوئ۔ الله تعالیٰ یقیناً ستاسو د عملونو نه باخبره دے۔
لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ
نهٔ دی برابر | کښیناستونکی | له مسلمانانو نه | کوم نه چه څهٔ عذر نشته
هغه مؤمنان کوم چه (جسمانی لحاظ سره) معذوره نهٔ وی او په کور کښے ناست وی د هغه مؤمنانو برابر کیدے نهٔ شی
وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ
او جهاد کوونکی | د الله په لاره کښے | په خپلو مالونو سره | او په خپلو ځانونو سره | فضیلت ورکړے
کوم چه په سر و مال سره د الله تعالیٰ په لاره کښے جهاد کوونکی دی - الله تعالیٰ په
اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ
الله | جهاد کوونکو ته | په خپلو مالونو سره | او په خپلو ځانونو سره | په کښیناستونکو باندِ
سر و مال سره جهاد کوونکوله په کور کښے د ناستو خلقو په نسبت ډیره غټه درجه
دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ
په درجه کښے | او هر یو سره | وعده کړے ده الله | د نیکئ | او فضیلت ورکړے دے الله | جهاد کوونکو ته
ورکړے ده اګر که د هر یو سره ئے د جنت وعده کړے ده، خو الله تعالیٰ مجاهدینو ته په ناستو خلقو
عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٩٥﴾ دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً
په کښیناستونکو باندِ | په اجر | لوئے کښے | درجے دی | د هغهٔ له طرف نه | او بخښنه
باندِ د ډیر لوئے اجر په ذریعه فضیلت ورکړے دے۔ هغوی د پاره د الله د طرف نه لوئے لوئے مرتبے دی، بخښنه

وَرَحْمَةً ۚ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٩٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ ع ١٣ ٥ ١٠

او رحمت | او دے | الله | . بخښونکے | مهربان | بیشکه | هغه خلق

ده او رحمت دے او الله تعالیٰ . بخښونکے مهربان دے ۔ هغه خلقو (کوم چه هجرت و نه کړو)

تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ

ډکوم روح چه قبض کوی | فرښتے | (په داسے حال کښے) چه هغوی ظلم کولو | په خپلو ځانونو باندې

په خپلو ځانونو ظلم کولو فرښتے ډهغوی ډ روح قبض کولو په وخت ډهغوی نه تپوس کوی چه تاسو په

قَالُوا فِيمَ كُنتُمْ ۖ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ

نو وائی (هغوئ ته فرښتے) | تاسو په کوم حال کښے وئ؟ | هغوی ووئیل | مونږ وُو | کمزوری

څهٔ حال کښے وئ ؟ هغوئ جواب ورکړو چه مونږ په دُنیا کښے بے وسه او کمزوری

فِي الْأَرْضِ ۚ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا

په زمکه کښے | ووئیل هغوی | آیا نهٔ وه | زمکه | ډ الله | فراخه | چه تاسو هجرت کړے وے

وُو ، فرښتو ورته ووئیل چه آیا ډ الله تعالیٰ زمکه وسیع او فراخه نهٔ وه ، چه تاسو پکښے هجرت کړے

فِيهَا ۚ فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾

په هغے کښے | پس هم داخلق دی | ډ کوم ځائے چه | دوزخ دے | او دا بد ځائے دے | ډ واپس کیدو

وے ، دا هغه خلق دی چه دوزخ ئے ټیکاونړه ده ، او (دوزخ) ډیره خرابه ټیکاونړه ده ۔

إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ

مګر | هغه کمزوری | سړی | او ښځے | او ماشومان | چه نهٔ شی کولے

البته کوم سړی ، زنانه او ماشومان چه (په رښتیا) کمزوری دی او (ډ بهرتلو) هیڅ ذریعه

حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴿٩٨﴾ فَأُولَٰئِكَ عَسَى

(څهٔ) حیله | او نهٔ بیا مومی هغوی | (څهٔ) لار | پس هم داسے خلقو ته | اُمید دے

نهٔ لری او لار نهٔ مومی ، نو اُمید دے چه الله تعالیٰ

اللَّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾ وَمَن

چه الله | به معاف کړی | هغوی | او دے | الله | معاف کوونکے | . بخښونکے | او څوک چه

هغو خلقو ته معافی وُکړی ، او الله تعالیٰ ډیر بخښونکے مهربان دے ۔ او څوک چه

يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا

هجرت وُکړی | ډ الله په لاره کښے | بیا به مومی هغه | په زمکه کښے | ډ اوسیدو ځائے | ډیر

ډ الله تعالیٰ په لاره کښے هجرت وُکړی ، هغوی به په زمکه باندې ډ استوګنے ډیر ځایونه او هر قسم

وَسَعَةً ۚ وَمَن يَخْرُجْ مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ

او فراخی | او څوک چه بهر نهٔ وُځی | له خپل کوره نه | هجرت کوونکے | الله او ډ هغهٔ ډ رسول طرف ته

فراخی بیا مومی ، او څوک چه ډ خپل کوره نه ډ الله او ډ رسول په لار کښے ډ هجرت په نیت بهر وُوځی ،

ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا

بیا راشی هغه له | مرګ | نو بیشکه | ثابت شو | دَ هغهٔ اجر | په الله | او دے | الله | بخښونکے

او په لاره کښے ورله مرګ راشی نو دَ هغهٔ اجر په الله تعالیٰ باندِ ثابت شو او الله تعالیٰ ډیر بخښونکے

رَّحِيْمًا ﴿۱۰۰﴾ وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِى الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ

مهربان | او هر کله چه تاسو سفر کوئ | په زمکه کښے | نو نشته دے | په تاسو باندِ | ګناه

مهربان دے او کله چه تاسو په سفر روان شئ نو په تاسو باندِ څهٔ ګناه نشته کهٔ

اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ

چه کم کړئ (په مونځ کښے قصر وکړئ) | له مونځ نه | کهٔ چرے ویریږئ تاسو | چه | تاسو به پریشانه کړی

په مونځ کښے قصر کوئ ، کهٔ دا اندیښنه درسره وی چه کافران

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ اِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴿۱۰۱﴾

کافران | بیشکه | کافران (خو) | دی ستاسو | دښمنان ښکاره

به مو پریشانه کړی ، یقینًا کافران ستاسو ښکاره دُښمنان دی .

وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ فَلْتَقُمْ

او کله چه | یئے ته | په هغوی کښے | او قائم کړے | هغوی دَ پاره | مونځ | نو پکار دی چه ودریږی

او (اے پیغمبره!) هر کله چه تهٔ دَ مسلمانانو په ټولی کښے موجود یئے او (دَ جنګ په وخت کښے) ورته مونځ ورکوے نو دَ دوی

طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ وَلْيَاْخُذُوْٓا اَسْلِحَتَهُمْ ۫ فَاِذَا سَجَدُوْا

یوه ډله | له هغوی نه | تاسره | او پکار دی چه هغوی واخلی | خپله وسله | بیا هر کله چه هغوی سجده وکړی

یو ټولے دِ تاسره ودریږی ، او خپله وسله دِ اخستے (تیاره) لری ، نو هر کله چه سجده وکړی

فَلْيَكُوْنُوْا مِنْ وَّرَآئِكُمْ ۠ وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ يُصَلُّوْا

نو هغوی دِ شی | وروستو ستاسو | او رادِ شی | ډله | دویمه | کوم چه لا مونځ نهٔ دے کړے

نو وروستو دِ لاړ شی ، او بل ټولے چه مونځ ئے لا نهٔ وی کړے هغه دِ راوړاندِ شی

فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ وَلْيَاْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ ۚ وَدَّ

بیا دِ هغوی مونځ وکړی | تاسره | او را دِ واخلی | سامان دَ ساتنے خپل | او خپله وسله | غواړی

او تاسره دِ په مونځ کښے شریک شی ، او دَ خپل حفاظت خیال دِ ولری او وسلے دِ تیارے ساتی ، کافران

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ تَغْفُلُوْنَ عَنْ اَسْلِحَتِكُمْ وَاَمْتِعَتِكُمْ

هغه خلق چه | کافران دی | کاش! چه تاسو غافله شئ | دَ خپلے وسلے | او دَ خپل سامان نه

خو هم دا غواړی چه تاسو دَ خپلو وسلو او دَ (جنګ دَ) سامان نه غافله شئ ،

فَيَمِيْلُوْنَ عَلَيْكُمْ مَّيْلَةً وَّاحِدَةً ؕ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ كَانَ

چه حمله وکړی هغوی | په تاسو باندِ | حمله | په یو ځل | او نشته دے ګناه | په تاسو باندِ | کهٔ چرے دی

او هغوی ناڅاپه تاسو باندِ حمله وکړی او په دے خبره کښے په تاسو باندِ څهٔ ګناه نشته چه تاسو

بِكُمْ اَذًى مِّنْ مَّطَرٍ اَوْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَنْ تَضَعُوْٓا اَسْلِحَتَكُمْ ج

تاسوته | څهٔ تکلیف | له باران نه | یا یئ تاسو | ناروغه | چه کیږدئ | خپلې وسلې

په داسې حالت کښې خپله وسله کیږدئ چه تاسو ته دَ باران په وجه څهٔ تکلیف وی یا تاسو بیمار یئ

وَخُذُوْا حِذْرَكُمْ ط اِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا

او را واخلئ | دَ خپلې ساتنې سامان | بیشکه | الله | تیار کړے دے | کافرانو دَ پاره | عذاب

خو (په هر حال کښې) دَ خپل حفاظت خیال ساتئ، بیشکه الله تعالیٰ کافرانو له سپکوونکے عذاب مقرر

مُّهِيْنًا ﴿١٠٢﴾ فَاِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلٰوةَ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا

رُسوا کوونکے . | بیا هر کله چه | ادا کړئ تاسو | مونځ | نو یاد کړئ | الله | په ولاړه | او په ناسته

کړے دے ، بیا چه دَ مونځ نه فارغ شئ نو په ولاړه په ناسته او په ملاسته په هر حال

وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ ج فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ج اِنَّ

او په | دَ ډډو خپلو | بیا هر کله چه | تاسو ته اطمینان وُشی | نو وُدرووئ | مونځ | بیشکه

کښې الله تعالیٰ یادوئ او کله چه تاسو (دَ دُښمن نه) بے غمه شئ نو (پوره) مونځ ادا کوئ . بیشکه

الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا ﴿١٠٣﴾ وَلَا تَهِنُوْا

مونځ | دے | په مسلمانانو | فرض | مقرر (وختونو کښې) | او سُستی مه کوئ

مونځ په مؤمنانو باندې په مقرره وختونو کښې فرض کړے شوے دے، او دَ (دښمن) قوم په لټون

فِى ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ط اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ

په لټولو دَ قوم (دَ کافرانو) کښې | کهٔ چرے دردمند کیږئ تاسو | نو هغوی هم | دردمند کیږی

کښې سستی مهٔ کوئ، کهٔ تاسو ته (په جنګ کښې) درد رسی، نو ستاسو په شان هغوی ته هم

كَمَا تَاْلَمُوْنَ ج وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ ط وَكَانَ اللّٰهُ

لکه څنګه چه | تاسو دردمند کیږئ | او تاسو امید لرئ | دَ الله نه | چه هغوی نهٔ لری | او دے | الله

درد رسی ، او تاسو دَ الله تعالیٰ نه دَ داسې اجر امید لرئ چه هغوی نهٔ لری ، او الله تعالیٰ ښهٔ

عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١٠٤﴾ ع اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

پوهه | خاوند دَ حکمت | بیشکه مونږ نازل کړو | تا ته | کتاب | په حق سره

پوهه او دَ حکمت خاوند دے . مونږ دا کتاب تا ته په حقه رالیږلے دے ، چه

لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ ط وَلَا تَكُنْ

چه ته فیصله وکړے | دَ خلقو مینځ کښې | په هغه څهٔ سره | چه ښودلی دی تا ته الله | او ته مهٔ کیږه

الله تعالیٰ تا ته څهٔ ښودلی دی، دَ هغې مطابق ته په خلقو کښې فیصله وُکړے او دَ خیانت کړو

لِّلْخَآئِنِيْنَ خَصِيْمًا ﴿١٠٥﴾ لا وَّاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ ط اِنَّ اللّٰهَ كَانَ

دَ پاره دَ خیانت کوونکو | جګړه کوونکے | او بخښنه غواړه دَ الله نه | بیشکه | الله | دے

ملګرتیا مهٔ کوه ، او دَ الله تعالیٰ نه بخښنه غواړه ، بیشکه الله تعالیٰ

ع ١٥/١٢

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۰۶﴾ وَلَا تُجَادِلْ عَنِ الَّذِيْنَ يَخْتَانُوْنَ

بخښونکے | مهربان | او ته جګړه مه کوه | دَ هغو خلقو دَ طرف نه | چه خیانت کوی

بخښونکے مهربان دے، او څوک چه دَ خپلو ځانونو سره (هم) خیانت کوی ته دَ هغوئی دَ طرف نه جګړه

اَنْفُسَهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ خَوَّانًا اَثِيْمًا ﴿۱۰۷﴾

خپلو ځانونو سره | بیشکه | الله | نهٔ خوښوی | هغه څوک چه وی | خیانت کوونکے | ګناهګار

مهٔ کوه، بیشکه خیانت ګر ګناهګار کسان دَ الله تعالیٰ خوښ نهٔ وی.

يَّسْتَخْفُوْنَ مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُوْنَ مِنَ اللّٰهِ وَهُوَ مَعَهُمْ

هغوی پټوی | له خلقو نه | او نهٔ پټوی | له الله نه | او هغه دَ هغوی سرهٔ دے

داخلق (خپل ګناهونه) دَ خلقو نه خو پټولے شی خو دَ الله تعالیٰ نه ئے پټولے نهٔ شی، الله تعالیٰ خو هغه

اِذْ يُبَيِّتُوْنَ مَا لَا يَرْضٰى مِنَ الْقَوْلِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

هرکله چه هغوی دَ شپے مشورے کوی | دَ هغهٔ | دَ کوم نه چه (الله) راضی نهٔ دے | او | دے | الله

وخت هم ورسره وی چه دوئ دَ شپے په پټه دَ هغهٔ دَ مرضئ خلاف مشورے کوی او الله تعالیٰ دَ دوئ

بِمَا يَعْمَلُوْنَ مُحِيْطًا ﴿۱۰۸﴾ هٰۤاَنْتُمْ هٰۤؤُلَآءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ

په هغهٔ | چه هغوی ئے کوی | احاطه کوونکے | واورئ تاسو | هغه خلق یئ | چه جګړه کوئ تاسو | دَ هغوی دَ طرف نه

په ټولو عملونو احاطه کړے ده۔ ښه! په دے دنیا کښے خو تاسو دَ دوئ دَ طرف نه جګړه وکړه

فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ فَمَنْ يُّجَادِلُ اللّٰهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

دَ دنیا په ژوند کښے | پس څوک به جګړه کوی | الله سره | دَ هغوی دَ طرف نه | په ورځ دَ قیامت

نو دَ قیامت په ورځ به ورله دَ الله تعالیٰ په مخکښ څوک جګړه کوی، او آخر

اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴿۱۰۹﴾ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ

یا څوک به وی | دَ هغوی | کارساز ؟ | او څوک چه | وکړی | بد کار | یا وکړی ظلم

هلته به څوک دَ دوئ وکالت کوی ؟ او څوک چه بد کار وکړی یا په خپل ځان

نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۱۰﴾ وَمَنْ

په خپل ځان باندِ | بیا | هغه بخښنه وغواړی | دَ الله نه | نو بیا به مومی الله | بخښونکے | مهربان | او څوک چه

زیاتے وکړی بیا دَ الله تعالیٰ نه بخښنه وغواړی نو الله تعالیٰ به ډیر بخښونکے زیات مهربان بیامومی او څوک

يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا

وکړی | ګناه | پس بیشکه چه | کوی ئے هغه | په خپل ځان باندِ | او دے | الله | ډیر پوهه

چه ګناه کوی نو هغه هم په خپل ځان ظلم کوی، او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه دَ

حَكِيْمًا ﴿۱۱۱﴾ وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓئَةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ

دَ حکمت خاوند | او څوک چه | کوی | خطا | یا (دَ) ګناه (کار) | بیا تهمت لګوی | دَ هغے

حکمت خاوند دے، او چا چه خطا کار وکړو یا ئے ګناه وُکړه، بیا ئے دَ هغے الزام په بل بے ګناه

بَرِيْٓـًٔا فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿١١٢﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ

په بې ګناه باندې | نو بېشکه هغه اوچت کړو په خپل ځان باندې | بهتان | او ګناه | ښکاره | او که چرته نه وې | فضل

بې ګناه ولګولو نو ډېر لوئې بهتان ئې ونتراشلو او ښکاره ګناه ئې وکړه، او (اې پېغمبره!) که په تا د الله تعالىٰ

اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ

د الله | په تا باندې | او د هغه رحمت | نو خامخا اراده کړې وه | یوې ډلې | له هغوی نه | چه ګمراه کړی تا

فضل او مهربانی نه وې نو د دوئ یوې ډلې خو دا قصد کړې وو چه (د مجرم په بچ کولو کښې) تا په غلطه لاره ولګوی

وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَيْءٍ

او هغوی نه شی بې لارې کولې | مګر خپل ځانونه | او هغوی نقصان نه شی دررسولې تاته | هیڅ هم

حال دا چه دوئ د خپل ځان نه بغیر بل څوک غلطولې نه شی او تاته هیڅ قسم له ضرر دررسولې نه شی

وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ

او نازل کړو | الله | په تا باندې | کتاب | او حکمت | او ښودلی ئې دی تاته | هغه څه چه ستا زده نه وو

او الله تعالىٰ په تا باندې کتاب او حکمت نازل کړې دې او هغه خبرې ئې درته ښودې دی چه تا ته معلومې نه وې

وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا ﴿١١٣﴾ لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ

او دې | فضل د الله | په تا باندې | ډېر لوئې | نشته دې څه خوبي | د هغوی په اکثرو مشورو کښې

او الله تعالىٰ په تا باندې ډېر لوئې فضل کړې دې، د دوئ په اکثرو پټو مشورو کښې هیڅ خیر نه وی

اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍۭ بَيْنَ النَّاسِ

سوا د هغې نه چه | حکم وکړی | د صدقې | یا د نیک کار | یا د اصلاح | د خلقو په مینځ کښې

سوا د هغه چا نه چه پټ په پټه د صدقې ورکولو یا د نیک کار کولو او د خلقو تر مینځه د جوړښت راوستلو د پاره مشوره

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا

او څوک چه وکړی | دا سې کار | د پاره د طلب د رضا د الله | نو زر ده چه | مونږ به ورکړو هغه ته | اجر

وکړی (نو دا بیله خبره ده) او څوک چه د الله تعالىٰ د رضامندئ د پاره دا سې کار وکړی لو زر ده چه مونږ به هغه له ډېر

عَظِيْمًا ﴿١١٤﴾ وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ

ډېر لوئې | او څوک چه مخالفت کوی | د رسول | پس له هغې نه چه | ښکاره شوه | هغه ته

لوئې اجر ورکړو، او څوک چه د هدایت واضحه کیدو نه پس هم د پېغمبر په مخالفت کښې ملا وتړی او د

الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى

لاره د هدایت | او پیروی وکړی | د څه بلې طریقې | د مسلمانانو د طریقې نه سوا | مونږ به واړوو هغه | کوم خوا چه هغه اوړی

مؤمنانو د لارې نه بغیر په بله لاره روان شی نو مونږ به ئې هم هغه خواته وګرځوو چه پخپله ورته ګرځیدلې

وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿١١٥﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ

او مونږ به داخل کړو هغه | دوزخ ته | او بد دے | ځائ د واپس کیدو | بېشکه | الله | نه بخښی

دے او دوزخ ته به ئې ارتاو کړو او دوزخ ډېر خراب ټیکاو نړه دے۔ یقین ساتئ چه الله تعالىٰ دا خبره

أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ

هغه چاته چه | دَ دِے نه سوا دَه | دَ دِے (ګناه) چه | کومه (ګناه) | او بخښي | دَ دهٔ سره | داچه شرک وکړے شي

داچه شرک وکړے شي دَ دهٔ سره او دَ دے نه سوا (څه چه) چا ته وغواړي ورته بخښي

نهٔ بخښي چه دَ هغهٔ سره څوک شریک ونیولے شي او دَ دے نه سوا (څه چه) چا ته وغواړي وبه

يَّشَآءُ ؕ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿١١٦﴾

وغواړي | او څوک چه | شریک ونیسي | الله سره | هغه بے لارے شو | (دَ حقے لارے نه) | ډیر لرے۔

بخښي او چا چه الله تعالیٰ له شریک جوړ کړو، نو هغه په ګمراهئ کښے ډیر لرے پریوتلو۔

اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖۤ اِلَّآ اِنٰثًا ۚ وَاِنْ يَّدْعُوْنَ اِلَّا شَيْطٰنًا

هغوی نهٔ رابلي | دَ دهٔ (الله) نه سوا | مګر | ښځے (معبودے) | او هغوی نهٔ رابلي | مګر | شیطان

هغوی الله پرېښے دے او دَ یو څو زنانه څیزونو عبادت کوي، او صرف دَ هغے نافرمان شیطان

مَّرِيْدًا ﴿١١٧﴾ ۙ لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا

سرکش | لعنت کړے دے په دهٔ باندِ الله | او هغهٔ وویل | زهٔ به ضرور اخلم | ستا له بندګانو نه | (یوه) حصه

عبادت کوي، په کوم چه الله لعنت کړے دے، او شیطان وویل چه زهٔ به ستا دَ بندګانو نه ضرور یو مقرره

مَّفْرُوْضًا ﴿١١٨﴾ ۙ وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ

مقرره - | او زهٔ به خامخا ګمراه کړم هغوی | او خامخا به ئے په باطلو ارزوګانو کښے واچوم | او زهٔ به حکم ورکړم هغوی ته

حصه اخلم، او هغوی به خامخا بے لارے کوم او هغوی به باطلو ارزوګانو کښے اچوم او زهٔ به هغوی ته تعلیم ورکوم

فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ؕ

نو هغوی به وشیږي | غوږونه | دَ څاروو | او زهٔ به حکم ورکړم هغوی ته | نو هغوی به بدل کړي | پیدا کړے (صورت) دَ الله

چه هغوی (دَ غیرالله په نوم) دَ څاروو غوږونه څیرې کړي او هغوی ته به حکم ورکوم چه دَ الله جوړ شوی صورتونو کښے هم (ناجائزه)

وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ

او څوک چه ونیسي | شیطان | دوست | دَ الله نه سوا | نو هغه نقصان کښے پریوتو

بدلون وکړي، او څوک چه دَ الله تعالیٰ په ځائے شیطان دوست جوړ کړي، نو هغه په ښکاره

خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿١١٩﴾ ؕ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيْهِمْ ؕ وَمَا يَعِدُهُمُ

نقصان | ښکاره سره | هغه وعده کوي | هغوی سره | او په ارزو کښے اچوي هغوی | او نهٔ | ورکوي وعدے هغوی ته

تاوان کښے پریوتلو۔ شیطان دَ هغوی سره وعدے کوي او دَ دروغو ارزوګانے ورکوي، خو شیطان دَ هغوی

الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿١٢٠﴾ اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۫ وَلَا يَجِدُوْنَ

شیطان | مګر | دوکه (ورکوي) | هم دا هغه خلق دي | چه ځائے دَ هغوی | دوزخ دے | او نهٔ | به هغوی بیا مومي

سره دَ فریب نه ډکے وعدے کوي، هم دا خلق دي دَ کومو ټیکاڼه چه دوزخ دے او دَ دِے نه به دَ

عَنْهَا مَحِيْصًا ﴿١٢١﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ

دَ هغے نه | خلاصے | او هغه خلق چه | ایمان ئے راوړو | او عملونه ئے وکړل | نیک | زر دے چه موږ به هغوی داخل کړو

خلاصی ځائے بیا نهٔ مومي۔ او چا چه ایمان راوړے دے او نیک کارونه ئے کړي دي، هغوی به داسے باغونو

وقف لازم

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ

په باغونو کښې | چه بهيږی | دَ هغې لاندې | نهرونه | هميشه به وی | په هغې کښې | تل | وعده ده دَ الله

کښې داخل کړی، چه دَ هغې لاندې به نهرونه بهيږی او هغوی به هغې کښې تل ترله وی ، دا دَ الله تعالیٰ رښتينې

حَقًّا ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا ﴿۱۲۲﴾ لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ

رښتينې | او څوک دے | زيات رښتيا ويونکے | دَ الله نه | په خبره کښې | دا نه | ستاسو په ارزوګانو (او هيله) دے

وعده ده ، او دَ الله تعالیٰ نه زيات رښتينې خبره لا دَ بل چا کيدے شی ۔ نه ستاسو په ارزوګانو کار کيږی

وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ ؕ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ

او نه په ارزوګانو | دَ اهل کتابو | او څوک چه وکړی | کار بد | دَ هغې جزا به ورکړے شی | او نه به بيا مومی

او نه دَ اهل کتابو په ارزوګانو (قانون دا دے) چه چا بد کار وکړو ، دَ هغې سزا به ورکولے شی ، او دَ الله تعالیٰ

لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾ وَمَنْ يَّعْمَلْ

ځان دَ پاره | دَ الله نه سوا | (څوک) دوست | او نه | (څوک) مددګار | او څوک | چه کوی

په مقابله کښې به هيڅوک دَ ځان ملګرے او مددګار بيا نه مومی ۔ او څوک چه نيک کارونه کوی

مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ

نيک کار | سړے وی | يا ښځه | او هغه مؤمن وی | نو دا سے خلق به | داخليږی

برابره خبره ده که نارينه وی او که زنانه وی خو چه ايماندار وی ، نو دغه خلق به جنت ته

الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ

په جنت کښې | او ظلم به و نه کړے شی په هغوی باندې | ذره هم | او څوک دے | ډير ښه | په دين کښې | له هغه نه

ننوځی او پوټے قدرے حق تلفی به ئے نه کيږی ۔ او دَ هغه چا نه ښائسته دين به دَ چا وی

اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ

کوم چه تيټ کړو | خپل سر | دَ الله مخکښې | او هغه نيکو کار وی | او پيروی وکړه هغه | دَ ملت | دَ ابراهيم

چه دَ الله حکم ته سر تيټ کړی ، او په اخلاص نيک کارونه کوی ، او يو مخيزے دَ ابراهيم عليه السلام

حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾ وَلِلّٰهِ مَا

چه يو مخيزے وُو | او جوړ کړو | الله | ابراهيم | (مخلص) دوست | او دَ الله دی | څهٔ چه

په ملت روان شی ، او الله تعالیٰ ابراهيم عليه السلام خپل دوست جوړ کړے وو ، او هم دَ الله تعالیٰ

فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىْءٍ

په آسمانونو کښې دی | او څهٔ چه | په زمکه کښې دی | او دے الله | په هر څيز باندې

دی څهٔ چه په آسمانونو او زمکه کښې دی ۔ او الله تعالیٰ په هر څيز باندې راچاپيره

مُّحِيْطًا ﴿۱۲۶﴾ ع وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ ع ۱۸ / ۱۱ / ۱۵

راچاپيره | او تپوس نه کوی له تا نه | دَ ښځو په حقله | ته ووايه | الله | حکم درکوی تاسو ته

دے ۔ او خلق تا نه دَ ښځو په حقله تپوس نه کوی ، ورته ووايه چه الله تعالیٰ تاسو ته دَ هغوی

فِيهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ فِىْ يَتٰمَى النِّسَآءِ

دَ هغوی په حقله | او څه چه لوستلے شی | په تاسو باندِ | په کتاب کښے | (هغه دَ هغه) یتیمانو جینکو په حقله (دی)

په حقله حکم درکوی او هغه حکمونه (درته را یاد دی) چه دَ پخوانه تاسو ته په دے کتاب کښے اوُرولے شی دَ یتیمانو جینکو په حقله چه تاسو

الّٰتِىْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ

چه نهٔ ورکوئ تاسو هغوی ته | هغه څه چه مقرر شوی دی | هغوی د پاره | او تاسو غواړئ | چه نکاح وکړئ هغوی سره

دَ هغوی حقونه نهٔ ادا کوئ ، او دَ نکاح رغبت ورسره کوئ ،

وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ

او دَ کمزورو | ماشومانو (په باره) کښے | او (په دے حقله) چه قائم اوسئ | یتیمانو دَ پاره | په انصاف باندِ

او هغه حکمونه چه دَ بے وسه ماشومانو په حقله شوی دی او دا خبره چه دَ یتیمانو کار روزګار په انصاف سره کوئ

وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿١٢٧﴾ وَاِنِ امْرَاَةٌ

او څه چه | تاسو کوئ | دَ نیکئ نه | نو بیشکه | الله | دے | په هغے باندِ | ښهٔ پوهه | او که چرے | یو ے ښځے ته

او هره نیکی چه تاسو کوئ ، نو هغه الله تعالیٰ ته خبره ښهٔ معلومه ده او که یو ے ښځے سره

خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ

ویره وی | له خپل خاوند نه | دَ سختئ | یا دَ مخ اړولو | نو نشته دے څهٔ ګناه | په هغو دواړو

دَ خاوند دَ بد سلوکئ یا دَ بے پروایئ اندیښنه وی نو په دواړو باندِ څهٔ ګناه نشته

اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ۭ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ۭ وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ

چه هغوی وُکړی | په خپل مینځ کښے | صلح | او صلح | ښهٔ ده | او حاضر کړے شوی دی | نفسونه

چه (په څهٔ خبره باندِ) په خپل مینځ کښے صلح وکړی او صلح ښهٔ څیز دے ، او شومتیا او لالچ خو هر یو نفس کښے

الشُّحَّ ۭ وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

شومتیا ته | او که چرے | تاسو ښهٔ کار وُکوئ | او پرهیزګاری کوئ | نو بیشکه | الله | دے | په هغه څه | چه تاسو کوئ

موجود دے ، او که تاسو خلقو سره ښهٔ سلوک کوئ او دَ الله نه ویرېږئ نو الله تعالیٰ ستاسو دَ کارونو نه بے خبره نهٔ

خَبِيْرًا ﴿١٢٨﴾ وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ

خبردار | او هیڅ کله | به ستاسو طاقت نهٔ شی | چه عدل وکړئ | دَ ښځو په مینځ کښے | اګر که تاسو حرص هم وکړئ

دے ۔ او دَ ښځو تر مینځه پوره پوره انصاف کول ستاسو دَ وس خبره هرګز نهٔ ده ، اګر که تاسو ډیر وغواړئ

فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ۭ وَاِنْ

پس مهٔ کږیږئ | په پوره کږیدو سره | چه تاسو پریږدئ هغه | په شان دَ زوړند ے شوے | او که چرے

نو (دومره قدر بس دے چه) یو ے ښځے ته دومره مهٔ مائله کیږئ چه بله په شان دَ اویزانِ پریږدئ ، او که

تُصْلِحُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٢٩﴾

تاسو اصلاح وُکړئ | او پرهیزګاری وکړئ | نو بیشکه | الله | دے | بخښونکے | مهربانه

تاسو ښهٔ سلوک ساتئ او دَ الله تعالیٰ نه ویرېږئ ، نو الله تعالیٰ بخښونکے مهربانه دے ۔

وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَكَانَ

اوکه چیرې هغه دواړه جدا شي | نو بې پروا به کړي الله | هر یو | له خپلې فراخۍ نه | او دې

اوکه (ښځه خاوند) دواړه د یو بل نه جدا شي نو الله تعالیٰ به خپل فضل سره دواړه بې پرواکړي

اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ﴿۱۳۰﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

الله | د فراخۍ خاوند | د حکمت خاوند | او د الله دي | څه چه په | اسمانونو کښې دي | او څه چه

او الله تعالیٰ فراخي راوستونکے د حکمتونو خاوند دے ۔ او هر څه چه په اسمانونو او په زمکه کښې دي ټول د

فِي الْاَرْضِ ؕ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ

په زمکه کښې دي | او بیشکه | مونږ حکم ورکړے وو | هغو خلقو ته | چه ورکړے شوې وو ورته | کتاب | له تا نه وړاندې

الله تعالیٰ دي ۔ او تا سو نه وړاندې چه چا ته کتاب ورکړے شوے وو، مونږ هغوئ ته هم هدایت کړے وو او

وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا

او تاسو ته | چه | ویریږئ | د الله نه | او که چرې | تاسو انکار کوئ | نو بیشکه د الله دي | څه چه

تاسو ته هم هدایت کوو چه د الله تعالیٰ نه ویره کوئ ، او که تاسو نه منئ نو (مه ئې منئ) هر څه چه په اسمانونو

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿۱۳۱﴾

په اسمانونو کښې دي | او څه چه | په زمکه کښې دي | او دے | الله | بې نیازه | ستائیلې شوے

او په زمکه کښې دي ټول د الله تعالیٰ دي ، او الله تعالیٰ غني دے د هر تعریف لائق دے ۔

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ

او د الله دي | څه چه په اسمانونو کښې | او څه چه په زمکه کښې دي | او کافي دے | الله

او د اسمانونو او د زمکې هر څه د الله تعالیٰ دي ، او الله تعالیٰ یوازې کارساز

وَكِيْلًا ﴿۱۳۲﴾ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ ؕ

کارساز | که چرې هغه وغواړي | نو لرې به کړي تاسو | اے خلقو ! | او رابه والي | نور خلق

بس دے ۔ که الله تعالیٰ وغواړي نو اے خلقو! تاسو به فنا کړي ، او نور خلق به راولي

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا

او دے | الله | په دې (خبره) باندې | قادر | څوک چه وی غوښتونکے | د ثواب | د دنیا

او الله تعالیٰ په هر کار باندې قدرت لري ۔ څوک چه صرف د دنیا اجر غواړي نو (هغه ته

ع ١٩ ٨ ١٦ فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾

نو الله سره دے | ثواب | د دنیا | او د اخرت | او دے الله | اوریدونکے | لیدونکے

دې معلومه وی چه) الله تعالیٰ سره د دنیا او اخرت دواړو ثواب شته، الله تعالیٰ هر څه اوري هر څه وینی ۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ

اے د ایمان خاوندانو! | شئ تاسو | قائم | په انصاف | گواه جوړ شئ | الله د پاره

اے مؤمنانو ! په انصاف قائم اوسیږئ او د الله تعالیٰ د پاره گواهي کوئ

وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِالْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ ج اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا

اودولتمند | هغه وي | که چرے | او دَ خپلوانو | یا دَ پلار او مور | او اګر که (هغه ګواهي) خلاف دَ خپله ستاسو ذات وي

اګر که (دا ګواهي) دَ خپلو ځانونو ، یا دَ مور پلار ، یا دَ خپلوانو برخلاف وي که هغه مالدار وي

اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا قف فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰٓى اَنْ تَعْدِلُوْا ج

یا فقیر | نو الله | ډیر مهربان دے په هغوی باندې | پس پیروي مه کوئ | دَ (خپل) خواهش | چه ځو واړوئ له عدل کولو نه

یا غریب وي په هر حال کښے الله تعالیٰ تاسو نه زیات دَ هغوئ خیرخواه دے نو دَ خپل نفس په پیروئ کښے دَ عدل نه لاس

وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿١٣٥﴾

او که چرے | تاسو غلط بیاني وکړئ | یا مخ واړوئ | نو بیشکه | الله | دے | په هغه څه | چه کوئ ئے تاسو | ښه واقف

وانه خلئ او که چرے تاسو ژبے واړوئ یا (دَ ګواهئ نه) شا ته شئ نو الله تعالیٰ ستاسو دَ کارونو نه ښه خبر دے

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ

اے دَ ایمان خاوندانو! | ایمان راوړئ | په الله | او دَ هغه په رسول | او په هغه کتاب | کوم چه

اے مؤمنانو! الله تعالیٰ او دَ هغه په رسول او دَ هغه په کتاب باندې کوم چه هغه په

نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ط وَمَنْ

هغه نازل کړو | په خپل رسول باندې | او په هغه کتاب | کوم چه نازل ئے کړو | له دے نه وړاندې | او څوک چه

خپل رسول باندې نازل کړو او په هغه کتاب باندې کوم چه هغه دَ دے نه وړاندې نازل کړے وو او څوک

يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

انکار وکړي | دَ الله | او دَ هغه دَ فرښتو | او دَ هغه دَ کتابونو | او دَ هغه دَ رسولانو | او دَ ورځ دَ اٰخرت

چه دَ الله تعالیٰ دَ هغه دَ فرښتو، دَ هغه دَ کتابونو دَ هغه دَ رسولانو او دَ ورځ دَ قیامت نه انکار وکړي

فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿١٣٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ

نو بیشکه | هغه ګمراه شو | په ګمراهئ لرے سره | بیشکه | کوم خلق چه | ایمان راوړو | بیا ئے انکار وکړو | بیا

بیشکه هغه (دَ حق لاره نه) ډیر لرے پریوتلو۔ بیشکه هغه خلق کوم چه ایمان راوړو، بیا کافران شول، بیا ئے

اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ

ئے ایمان راوړو | بیا ئے انکار وکړو | بیا | زیات شول | په کفر کښے | هیڅ کله به الله بخښنه ونه کړي هغوی ته

ایمان راوړو بیا کافران شول، بیا په کفر کښے زیات وړاندې لاړل، الله تعالیٰ به هیچرے هغوی ونه بخښي

وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ﴿١٣٧﴾ ط بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا

او نه به ورښائي هغوی ته | لاره | خبر ورکړئ | منافقانو ته | چه هغوی دَ پاره دے | عذاب

او نه به هغوی ته نیغه لاره ورښائي ، منافقانو له زیرے ورکړه چه هغوئ له دردناک عذاب مقرر

اَلِيْمَا ﴿١٣٨﴾ لا الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ط

دردناک | هغه خلق کوم چه | جوړوي | کافرانو لره | دوستان | سوا | دَ مسلمانانو نه

دے۔ هغه منافقان چه مسلمانان ئے پریښي دي او کافرانو سره ئے دوستانے جوړے کړي دي

أَيَبْتَغُونَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَإِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيعًا ﴿١٣٩﴾

آیا هغوی غواړی | دَ هغوی سره | عزت | پس بیشکه | عزت (خو) | هم الله دَپاره دے | ټول

آیا دوئ عزت دَ کافرانو نه غواړی ؟ نو بیشکه هر قسم عزت خو دَ الله تعالیٰ په لاس کښے دے .

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا

او بیشکه هغه نازل کړی دی | په تاسو باندِ | په کتاب کښے | داچه کله | واورئ تاسو | چه دَ ایتونو دَ الله | انکار کولے شی

او تاسو ته په کتاب (قرآن) کښے دا حکم راغلے دے ، چه کوم ځائے دا واورئ چه دَ الله تعالیٰ دَ ایتونو نه انکار کیږی

وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوضُوا

او ټوقے کولے شی | دَ هغے سره | پس مهٔ | کښیني تاسو | دَ هغوی سره | تر دے چه | هغوی مشغول شی

او خندا ګانے ورپورے کیږی ، نو هغوئ سره مهٔ کښینئ ترڅو چه هغوئ په بله

فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ إِنَّكُمْ إِذًا مِثْلُهُمْ إِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ

په څهٔ بله خبره کښے | کنی تاسو به (هم) | دغه وخت دَ هغوی پشان شئ | بیشکه | الله | یو ځائے کوونکے دے

خبره کښے مشغول نهٔ شی ، کهٔ تاسو داسے وکړل نو دَ هغوئ په شان به شئ ، یقین وکړئ چه الله تعالیٰ به

الْمُنٰفِقِينَ وَالْكٰفِرِينَ فِي جَهَنَّمَ جَمِيعًا ﴿١٤٠﴾ الَّذِينَ

منافقانو | او کافرانو لره | په دوزخ کښے | په جمع سره | هغه منافقان

منافقان او کافران په دوزخ کښے رایو ځائے کړی دوئ ستاسو په

يَتَرَبَّصُونَ بِكُمْ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِنَ اللّٰهِ قَالُوا

چه انتظار کوی | ستاسو | کهٔ چرے | تاسو ته حاصله وی | فتح | دَ الله دَ طرف نه | (نو) وائی

حقله دَ حالاتو انتظار کوی . نو کهٔ الله تعالیٰ تاسو ته کټه درکړی ، نو وُ به وائی چه ولے

أَلَمْ نَكُنْ مَعَكُمْ وَإِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِينَ نَصِيبٌ قَالُوا

آیا نهٔ وُو مونږ | تاسو سره | او کهٔ چرے | وی | کافرانو دَ پاره | څهٔ حصه یا فائده | نو وائی

مونږ تاسو سره ملګری نهٔ وُو او کهٔ کافرانو ته څهٔ حصه ملاؤ شی ، نو دوئ به (کافرانو ته)

أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فَاللّٰهُ

آیا نهٔ وُو غالب شوی مونږ | په تاسو باندِ | او مونږ نهٔ وئ بچ کړئ تاسو | دَ مسلمانانو نه | پس هم الله به

دوائی چه آیا مونږ په تاسو غالب کیدل ونکی نهٔ وُو ؟ خو سره دَ دے مونږ تاسو دَ مسلمانانو نه بچ کړئ . پس الله تعالیٰ

يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَنْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكٰفِرِينَ

فیصله وکړی | ستاسو په مینځ کښے | په ورځ دَ قیامت | او هیڅ کله به ورنهٔ کړی | الله | کافرانو ته

به دَ قیامت په ورځ ستاسو تر مینځه فیصله وکړی ، او هیچرے به الله تعالیٰ دَ مسلمانانو په مقابله کښے

عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا ﴿١٤١﴾ إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ يُخٰدِعُونَ اللّٰهَ وَهُوَ ع ٢٠ ١٧

په مسلمانانو باندِ | (دَ غلبے) لاره | بیشکه | منافقان | دوکه ورکوی | الله ته | او هغه (الله)

کافرانو له غلبه ورنهٔ کړی . منافقان (په خپل خیال کښے) الله تعالیٰ ته دوکه ورکوی حال دا دے چه الله

خَادِعُهُمْ ۚ وَإِذَا قَامُوٓا إِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوا كُسَالٰى

كتكه وركوونكے دَ هغوى ته | او هركله چه | هغوى ودريږي | مونځ دَ پاره | نو ودريږي | په سستئ سره

دوئ په دوكه كښے غورزولى دى اوكوم وخت چه مونځ ته ودريږي نو په زړه ماتي ودريږي او خلقو

يُرَآءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللّٰهَ إِلَّا قَلِيلًا (١٤٢) مُّذَبْذَبِينَ

هغوى ښائي (عبادت) | خلقو ته | او نه يادوى هغوى | الله | مگر لږ | هغوى مترددو دى

ته ځانونه ښائي ، او الله تعالىٰ ډير كم يادوى ، دكفر او اسلام ترمينځ

بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ

په مينځ كښے | نه دے خوا (دى) | او نه | اخوا دى | او څوک چه | بے لاره كړى الله

مذبذب دى ، نه (دَ مسلمانانو) طرف ته دى او نه (دَ كافرانو) طرف ته دى او څوک چه الله تعالىٰ بے لاره

فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا (١٤٣) يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا

نو به هرگز بيا نه موې | هغه له | څه لاره | اے دَ ايمان خاوندانو! | مه جوړوئ

كړى هغه له به هيڅ كله (سمه) لار بيا نه موے اے مؤمنانو! دَ مسلمانانو نه بغير

الْكٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَنْ تَجْعَلُوا

كافرانو لره | دوستان | سوا | دَ مؤمنانو | آيا غواړئ تاسو | چه جوړ كړئ

كافرانو سره دوستانے مه نيسئ - آيا تاسو دا غواړئ چه دَ خپل

لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِينًا (١٤٤) إِنَّ الْمُنٰفِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ

الله دَ پاره | په خپل ځان باندې | دليل | ښكاره | بېشكه | منافقان به | په ډيره ښكته طبقه كښے وى

ځان برخلاف دَ الله څرگند حجت قائم كړئ - يقين وكړئ چه منافقان به دَ دوزخ په لاندينى درجه

مِنَ النَّارِ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا (١٤٥) إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا

دَ اور | او نه به هيڅ كله بيا نه موے | هغوى له (څه) مددگار | مگر | كوم خلق چه | توبه وكړى | او اصلاح وكړى

كښے پراته وى او ته به هيڅوک دَ دوئ مددگار بيا نه موے - البته څوک چه توبه وباسى او خپل كار ونه سم كړى

وَاعْتَصَمُوا بِاللّٰهِ وَأَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلّٰهِ فَأُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ۖ

او مضبوطئ سره ونيسى | الله | او خالص كړى | خپل دين | الله دَ پاره | نو هم دا خلق دى | مسلمانانو سره

او دَ الله تعالىٰ احكام په مضبوطئ سره ونيسى او خپل دين خالص دَ الله دَ پاره كړى نو دا خلق به مؤمنانو سره ملگرى وى

وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا (١٤٦) مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ

او زر به | وركړى | الله | مؤمنانو ته | اجر | لوئے | څه به كوى | الله

او ډير زر به الله تعالىٰ مؤمنانو ته لوئے اجر وركړى - الله تعالىٰ څه كوى چه تاسو له

بِعَذَابِكُمْ إِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيمًا (١٤٧)

تاسو ته په عذاب دركولو | كه تاسو شكر وكړئ | او ايمان راوړئ | او دے | الله | قدردان | پوهه

به عذاب دركوى كه تاسو شكر وباسئ او دَ ايمان په لار قائم يئ او الله تعالىٰ ډير قدردانه په هرڅه پوهه دے.

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ ؕ
نهٔ خوښوی | الله | په زوره وینا | په بده | خبره | مګر | په چاچه | ظلم وُشو
الله تعالیٰ نهٔ خوښوی چه څوک دِ په بده وینا خُله پرانیځی ، مګر په چاچه زیاتے شوے وی
وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿١٤٨﴾ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا
او دے | الله | اَؤریدونکے | پوهه | کهٔ تاسو ښکاره کوئ | نیکی | یائے پټوئ | یا تاسو معاف کړئ
او الله تعالیٰ هر څهٔ اَؤری په هر څهٔ پوهه دے ۔ کهٔ تاسو څرګند ښهٔ کوئ او کهٔ پټ یا کهٔ (دَ خلقو) بدی
عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿١٤٩﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ
بدی | نو بیشکه | الله | دے | معاف کوونکے | دَ قدرت خاوند | بیشکه | هغه خلق کوم چه | انکار کوی
معاف کوئ ، نو الله تعالیٰ معافی کوونکے دے په هر څهٔ قدرت لری ۔ یقیناً کوم خلق چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ
بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ
دَ الله | او دَ هغهٔ دَ رسول | او دوی غواړی | چه جدائی وُکړی | په مینځ | دَ الله | او دَ هغهٔ دَ رسولانو
دَ رسولانو انکار کوی او غواړی چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسولانو ترمینځه جُدائی راولی
وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّيُرِيْدُوْنَ
او وائی | مونږ ایمان راوړو | په څنو باندِ | او انکار کوو | دَ څنو | او دوی غواړی
او وائی چه مونږ څنے منو او څنے نهٔ منو ، او دا غواړی چه دَ
اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴿١٥٠﴾ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ۚ
چه وُنیسی | دَ دِے په مینځ کښے | لاره | هم دا خلق دی | کافران | اصلی
کفر او ایمان ترمینځه (بله) لار راؤباسی ۔ هم دغه خلق پاخهٔ کافران دی
وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿١٥١﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ
او مونږ تیار کړے دے | کافرانو دَ پاره | عذاب | رُسوا کوونکے | او کوم خلق چه ایمان راوړی | په الله
او مونږ کافرانو له سپکوونکے عذاب تیار کړے دے او څوک چه په الله تعالیٰ او دَ هغهٔ په پیغمبرانو
وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ اُولٰٓئِكَ سَوْفَ
او دَ هغهٔ په رسولانو | او جدائے نهٔ کړو | بو هم | له دوی نه | هم دا دی هغه خلق | چه زر به
ایمان راوړی ، او دَ هغوئی په مینځ کښے فرق نهٔ راولی ، هغوئی ته به الله تعالیٰ خپلے
يُؤْتِيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١٥٢﴾ يَسْئَلُكَ
ورکړی دوی ته | دَ دوی اجر | او دے | الله | بخښونکے | مهربان | سوال کوی له تا نه
بدلے (پوره پوره) ورکړی ، او الله تعالیٰ بخښونکے مهربانه دے ، دا اهل کتاب (تا نه)
اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ سَاَلُوْا
اهل کتاب | چه ته نازل کړه | په دوی باندِ | کتاب | له اسمان نه | پس سوال کړے وو دوی
تا نه دا مطالبه کوی چه ته په دوی باندِ دَ اسمان نه یو کتاب راکوز کړه ، نو دوئی دَ موسیٰ نه دَ

مُوسَىٰٓ أَكْبَرَ مِن ذَٰلِكَ فَقَالُوٓا۟ أَرِنَا ٱللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ

له موسیٰ نه | د دې نه هم زیات | پس دوئیل دوی (چه) موږ ته ښکاره وښایه الله | په ښکاره | بیا ونیول دوی

د دې نه هم غټ مطالبه کړے وه، ورته ئے وئیلی وو چه موږ ته الله په ښکاره وښایه، نو د دې سرکشئ

ٱلصَّـٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ ٱتَّخَذُوا۟ ٱلْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِ مَا

تندر | د دوی د ظلم په وجه | بیا ونیولو دوی | څخے (معبود) | پس له دے نه چه

په وجه پرے تندر راپریوتلو بیا دوئ د څخي عبادت دهم، وکړو د دے نه پس هم چه دوی ته

جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَـٰتُ فَعَفَوْنَا عَن ذَٰلِكَ ۚ وَءَاتَيْنَا مُوسَىٰ

راغلی وُو دوی ته | (واضحه) دلیلونه | بیا معاف کړل موږ | دا هم | او ورکړه موږ | موسیٰ ته

څرګندے نخښے راغلے وے، نو موږ ورته دا جرم هم وبخښلو، او موږ موسیٰ ته ښکاره

سُلْطَـٰنًا مُّبِينًا ﴿١٥٣﴾ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ ٱلطُّورَ بِمِيثَـٰقِهِمْ

غلبه | ښکاره | او اوچت کړو موږ | د پاسه د دوی | طور غر | دوی نه د اقرار اخستو

غلبه ورکړه - او موږ د دوی نه د وعدے اخستو د پاره د دوی د پاسه کوه طور پورته کړو

وَقُلْنَا لَهُمُ ٱدْخُلُوا۟ ٱلْبَابَ سُجَّدًا وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا۟

او وئیل موږ | دوی ته | چه داخل شئ | په دروازه کښے | په سجده کولو | او وئیل موږ | دوی ته | د حد نه مه تیریږئ

او حکم مو ورکړو چه (د ښار) دروازے نه (په عاجزئ سره) د سجدے په حالت کښے ننوځئ او دا حکم مو ورکړو چه د سبت

فِى ٱلسَّبْتِ وَأَخَذْنَا مِنْهُم مِّيثَـٰقًا غَلِيظًا ﴿١٥٤﴾ فَبِمَا

په ورځ د خالی کښے | او واخسته موږ | د دوی نه | وعده | مضبوطه | پس په دے (چه)

په ورځ د حد نه تجاوز مه کوئ، او د دوی نه مو ښه پخه وعده واخستله، آخر د دوئ د

نَقْضِهِم مِّيثَـٰقَهُمْ وَكُفْرِهِم بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ وَقَتْلِهِمُ ٱلْأَنۢبِيَآءَ

ماته کړه دوی | وعده خپله | او په وجه د انکار د دوی | د الله د ایتونو | او په وجه د وژلو د دوی | پیغمبران

بے لوظئ په وجه، او د الله تعالیٰ د ایتونو نه د انکار کولو په وجه، او برنا حقه د پیغمبرانو وژلو په

بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌۢ ۚ بَلْ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَيْهَا

په ناحقه | او په وجه د وینا د دوی | چه زمونږ زړونه | په پرده کښے دی | بلکه | مهر لګولے دے | الله | په دوی باندے

وجه او د دے وینا په وجه چه زمونږ زړونه په غلافونو کښے نغښتی دی، (نا) بلکه د دوئ د کفر په وجه پرے الله مهر

بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٥٥﴾ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ

د دوی د کفر په وجه | پس دوی ایمان نه راوړی | مګر | لږ | او په وجه د کفر د دوی | او د وینا د دوی

ولګولو، نو د یو څو کسانو نه سوا باقی خلقو ایمان رانه وړو - او بیا دوئ په کفر کښے وړاندے لاړل او په

عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَـٰنًا عَظِيمًا ﴿١٥٦﴾ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا

په مریم باندے | د بهتان | لوئے | او په وجه د وئیلو د دوی | چه بیشکه موږ قتل کړو

(بی بی) مریم ئے لوئے بهتان ولګولو، او بخپله ئے وئیل چه موږ مسیح د مریم ځوئ

الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ

مسیح | عیسیٰ | ځوئے | دَ مریم | رسول | دَ الله | او نهٔ دے وژلے دوی هغه

عیسیٰ چه دَ الله تعالیٰ رسول دے وژلے دے ، حال دا چه نهٔ ئے وژلے وو او

وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ

او نهٔ په دار کړے دے دوی هغه | لیکن | مشتبه شوله | په دوی بانډې | او یقیناً | کوم خلقو چه | اختلاف وکړو | دَ دهٔ په حقله

نهٔ ئے په سولئ کړے وو بلکه په شک کښے پریوتی وو او کوم خلقو چه په دے حقله اختلاف وکړو

لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ

خامخا په شک کښے دی | دَ دهٔ په نسبت | نشته دے دوی ته | دَ هغے | څهٔ علم | سوا | دَ پیروئ | دَ ګمان

هغوی یقیناً په شک کښے وو دَ دوی په اصل معامله هیڅ علم نشته ، تش په ګمان پسے روان دی

وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا (١٥٧) بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ

او دوی نهٔ دے قتل کړے هغه | یقیناً | بلکه اوچت کړے دے هغه | الله | خپل طرف ته | او دے | الله

او دوی عیسیٰ یقیناً وژلے نهٔ دے ، بلکه الله تعالیٰ ځان ته راخیژولے دے او الله تعالیٰ په هر څه

عَزِيزًا حَكِيمًا (١٥٨) وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ

زبردست | دَ حکمت خاوند | او نشته (څوک) | دَ اهل کتابو نه | مګر | خامخا به ایمان راؤړی

غالب دانا دے۔ او په اهل کتابو کښے به هیڅوک پاتے نهٔ شی ، مګر دَ هغهٔ دَ مرګ نه وړاندِ

بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا (١٥٩)

په دهٔ بانډې | دَ هغهٔ دَ مرګ نه وړاندِ | او په ورځ دَ قیامت | هغه به وی | په دوی بانډې | ګواه

به پرے ایمان راؤړی ، او دَ قیامت په ورځ به پرے هغه ګواهي ورکوی ۔

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ

پس په وجه دَ ظلم | له هغو خلقو نه | چه یهودیان دی | مونږ حرام کړی دی | په دوی بانډې | (څهٔ) پاکیزه څیزونه

بیا دَ یهودیانو دَ ظلم په وجه مونږ په دوی بانډې ډیر پاک څیزونه هم حرام کړل چه (وړاندِ)

أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا (١٦٠)

چه حلال وو | دَ دوی دَ پاره | او په وجه دَ منع کولو دَ دوی | دَ الله دَ لارے نه | ډیر خلق

دَ دوی دَ پاره حلال وو ، او په دے وجه هم چه دوی به ډیر خلق دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه منع کول

وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ

او په وجه دَ اخستلو دَ دوی | سود | او حال دا وو چه دوی منع کړے شوی وو | له هغے نه | او خوړل بدئے | مالونه | دَ خلقو

او په دے وجه چه دوی سود اخلی ، سره دَ دے چه دوی دَ سود اخستلو نه منع کړی شوی دی او په دے وجه چه دَ خلقو

بِالْبَاطِلِ ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا (١٦١)

په ناحقه | او تیار کړے دے مونږ | کافرانو دَ پاره | له دوی نه | عذاب | دردناک

مالونه پر ناحقه خوری او مونږ په دوی کښے دَ کافرانو دَ پاره دردناک عذاب تیار کړے دے

لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِى الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ يُؤْمِنُوْنَ

لیکن | (چه) پاخهٔ (دی) | په علم کښے | دَدوی نه | او مسلمانان | (ددوی خو) ایمان راوړی

مگر په دوی کښے چه څوک په علم کښے پاخهٔ شوی دی او ایماندار دی هغوی داکتاب هم منی چه تا ته

بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَالْمُقِيْمِيْنَ

په هغه څه چه نازل شو | په تا | او په هغه څه چه نازل شول | له تا نه وړاندې | او قائم ساتی

راغلے دے او هغه (کتابونه) هم منی چه تا نه وړاندې راغلی دی ، او مونځ ګونه

الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

مونځ | او ورکوی | زکوٰة | او ایمان لری | په الله | او په ورځ د آخرت

کوی ، او زکوٰة ورکوی ، او په الله تعالیٰ او په آخرت باندې یقین لری

اُولٰٓئِكَ سَنُؤْتِيْهِمْ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۶۲﴾ اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ

هم دا خلق دی | ذر به ورکړو مونږ دوی ته | اجر | ډیر لوے | بیشکه مونږ | وحی وکړه | تا ته

دا هغه خلق دی کوم ته به چه مونږ ډیر زر ډیر لوئے اجر ورکړو۔ (اے پیغمبره!) مونږ تا ته هغسے وحی

كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۚ وَ

لکه څنګه چه | مونږ وحی کړے وه | نوح ته | او نورو پیغمبرانو ته | پس له دے نه | او

رالیږلے ده لکه چه نوح علیه السلام ته او د هغهٔ نه پس نورو پیغمبرانو ته مو رالیږلے ده ، او

اَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

مونږ وحی کړے وه | ابراهیم علیه السلام | او اسماعیل علیه السلام | او اسحٰق علیه السلام | او یعقوب علیه السلام

مونږ وحی رالیږلے وه ابراهیم اسماعیل اسحٰق یعقوب (علیهم السلام)

وَالْاَسْبَاطِ وَعِيْسٰى وَاَيُّوْبَ وَيُوْنُسَ وَهٰرُوْنَ وَسُلَيْمٰنَ ۚ

او د هغهٔ اولاد | او عیسیٰ | او ایوب | او یونس | او هارون | او سلیمان (علیهم السلام)

او د هغهٔ اولاد ته او عیسیٰ ایوب یونس هارون او سلیمان علیهم السلام ته

وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ﴿۱۶۳﴾ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ

او مونږ ورکړے ؤ | داؤد ته | زبور | او پیغمبران | چه قصے بیان کړی دی مونږ د دوی | تا ته

او داؤد ته مو زبور (نومے کتاب) ورکړے وو ۔ او څومره رسولان (مونږ لیږلی دی) د کومو ذکر چه مونږ تا ته

مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۗ وَكَلَّمَ اللّٰهُ

وړاندې له دے نه | او پیغمبران | چه نهٔ دی بیان کړی مونږ قصے د دوی | تا ته | او خبرے کړے وے | الله

وړاندې کړے دے او څومره رسولان داسے دی د کومو ذکر چه (لا تر اوسه) مونږ تا ته نهٔ دے کړے او الله تعالیٰ د

مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ﴿۱۶۴﴾ رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ

موسیٰ سره | په خبرو کولو سره | (رالیږلی مونږ) پیغمبران | زیرے ورکوونکی | او ویروونکی | د پاره د دے چه نهٔ وی

موسیٰ سره کلام وکړو ، دا ټول پیغمبران (نیکانو ته) زیرے ورکوونکی او (د بدانو) ویروونکی رالیږلی شوی وو ، چه

لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا
خلقو دَپاره | په الله باندې | څه حجت | پس | دَرسولانو | او دے | الله | ډیر زبردست
پیغمبرانو دَراتلو نه پس خلقو سره دَالله تعالیٰ په مقابله کښے هیڅ عذر پاتے نهٔ شی او الله تعالیٰ غالب او دانا
حَكِيْمًا ⑯⑤ لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ اَنْزَلَهٗ
خاوند دَحکمت | لیکن | الله | ګواهی ورکوی | دَ هغهٔ څهٔ | چه نازل ئے کړو | ستا طرف ته | چه هغهٔ ئے نازل کړے دے
دے ۔ لیکن (که دوئی نهٔ منی نو څهٔ وُشو) الله تعالیٰ په دے خبره ګواه دے چه تا ته ئے څهٔ (حکمونه) رالیږلی دی
بِعِلْمِهٖ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ⑯⑥
په خپل علم سره | او فرښتے (هم) | ګواهی ورکوی | او کافی دے | الله | ګواه
هغه ئے په خپل کامل علم سره رالیږلی دی او فرښتے هم په دے ګواه دی، او یوازے دَالله تعالیٰ ګواه کیدل بس دی۔
اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَدْ ضَلُّوْا
بیشکه | کوم خلق چه | انکار ئے کړو | او منع ئے کړل خلق | دَالله دَلارے نه | بیشکه | ګمراه شول
بیشکه چاچه انکار کړے دے او دَالله تعالیٰ دَلارے نه خلق منع کوی ، هغوئی دَ سمے لارے نه ډیر
ضَلٰلًا بَعِيْدًا ⑯⑦ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَظَلَمُوْا لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ
په ګمراهئ لرے سره (له حق نه) | بیشکه | کوم چه | انکار ئے کړو | او ظلم ئے وکړو | نهٔ دے دا چه | الله
لرے پریوتی دی ۔ (دَ هغه شان) چاچه انکار کړے دے او ظلم ئے وکړو الله تعالیٰ به هیڅ رے
لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا ⑯⑧ اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ
به وبخښی | دوی | او نهٔ به وبنائی دوی ته | (د بنغه) لار | مګر | لار | (دَ) دوزخ
هغوئی وُنهٔ بخښی ، او هغوی ته به هیڅ لار وُنهٔ ښائی بغیر دَ دوزخ دَلارے نه
خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ۚ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ⑯⑨
همیشه به وی | په هغے کښے | همیشه | او دے | دا کار | په الله باندې | آسان
چه په کښے به هغوی همیشه وُسیږی ، او دا (سزا ورکول) دَ الله تعالیٰ دَپاره آسان دی۔
يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ
اے | خلقو ! | راغلے دے تاسو ته | (دا) رسول | په حق سره | ستا دَ رب له طرف نه
اے خلقو ! تاسو ته پیغمبر دَالله تعالیٰ دَطرف نه (د) حق (تعلیم) راوړے دے نو یقین پرے
فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ۚ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا
نو ایمان راوړی | چه غوره دی | تاسو دَپاره | او که چرے | تاسو انکار وکړو | نو بیشکه دَالله دی | هغه څهٔ چه
وکړئ ځکه چه په دے کښے موښیګړه ده۔ او که انکار کوئ ، نو هر څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښے دی
فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ⑰⓪
په آسمانونو کښے | او په زمکه کښے دی۔ | او دے | الله | پوهه | دَ حکمت خاوند
هغه ټول دَ الله تعالیٰ دی ۔ او الله تعالیٰ په هر څهٔ پوهه او دَ حکمت خاوند دے

يٰٓاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لَا تَغۡلُوۡا فِىۡ دِيۡنِكُمۡ وَلَا تَقُوۡلُوۡا عَلَى اللّٰهِ

اے اهل کتابو ! | له حد نه مهٔ تیریږئ | په خپل دین کښے | او مهٔ وایئ | په الله باند

اے اهل کتابو ! په خپل دین کښے دَ حد نه بهر مهٔ وځئ ، او الله تعالیٰ ته بغیر دَ حقے خبرے نه بل

اِلَّا الۡحَقَّ ؕ اِنَّمَا الۡمَسِيۡحُ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ

مګر | حق | بیشکه | مسیح | عیسیٰ | ځوئے | دَ مریم | رسول دے | دَ الله

نسبت مهٔ کوئ ، حقیقت دا دے چه عیسیٰ دَ مریم ځوئے سوا دَ دے نه هیڅ نهٔ وو چه دَ الله پیغمبر وو

وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلۡقٰهَاۤ اِلٰى مَرۡيَمَ وَرُوۡحٌ مِّنۡهُ ۟ فَاٰمِنُوۡا

او دَ هغهٔ کلام دے | چه ورا چولے وُو هغه | مریم طرف ته | او یو روح دے | دَ هغهٔ له طرف نه | پس ایمان راوړئ

او دَ هغهٔ هغه کلمه ده کوم چه هغهٔ مریم طرف ته ولیږله او دَ الله دَ طرف نه یو روح وو ، نو په الله تعالیٰ او

بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَلَا تَقُوۡلُوۡا ثَلٰثَةٌ ؕ اِنۡتَهُوۡا خَيۡرًا

په الله | او دَ هغهٔ په رسولانو | او مهٔ وایئ | (چه خدایان) درے دی | منع شئ (له دے نه) | (دا) غوره دی

دَ هغهٔ په رسولانو ایمان راوړئ او دا مهٔ وایئ چه (خدایان) درے دی ، منع شئ هم په دے کښے ستاسو

لَّكُمۡ ؕ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ؕ سُبۡحٰنَهٗۤ اَنۡ يَّكُوۡنَ لَهٗ

تاسو له | بیشکه | الله | معبود دے | یو ازے | پاک دے هغه | (له دے نه) چه | دی | دَ هغهٔ

بهتری ده ، الله تعالیٰ خو بس یو ازے یو خدائے دے ۔ هغه دَ دے خبرے نه پاک دے چه څوک دِ دَ هغهٔ

وَلَدٌ ۘ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَكَفٰى

(څوک) اولاد | هم دَ هغهٔ دی | څه چه | په آسمانونو کښے دی | او څهٔ چه په زمکه کښے دی | او کافی دے

ځوئے وی ، په آسمانونو او زمکه کښے چه څهٔ دی هم دَ هغهٔ دی ، او دَ دے ټولو دَ ساتلو

بِاللّٰهِ وَكِيۡلًا ﴿١٧١﴾ لَنۡ يَّسۡتَنۡكِفَ الۡمَسِيۡحُ اَنۡ يَّكُوۡنَ

الله | کارساز | هیڅ کله به شرم نهٔ کوی | مسیح | (له دے نه) چه وی هغه

په حقله الله تعالیٰ یو ازے بس دے ، مسیح (عیسیٰ) هیچرے دا شرم نهٔ ګڼړی چه دَ الله تعالیٰ بنده دِ

عَبۡدًا لِّلّٰهِ وَلَا الۡمَلٰٓئِكَةُ الۡمُقَرَّبُوۡنَ ؕ وَمَنۡ يَّسۡتَنۡكِفۡ عَنۡ عِبَادَتِهٖ

بنده | دَ الله | او نهٔ فرښتے | چه مقربے دی | او څوک چه شرم کوی | دَ هغهٔ له بندګئ نه

درته وو ښیلے شی او نهٔ مقربے فرښتے (په دے کښے څه عار ګڼړی) او څوک چه دَ الله تعالیٰ عبادت شرم ګڼړی

وَيَسۡتَكۡبِرۡ فَسَيَحۡشُرُهُمۡ اِلَيۡهِ جَمِيۡعًا ﴿١٧٢﴾ فَاَمَّا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا

او تکبر کوی | پس هغه به راجمع کړی دوی | خپل ځان ته | ټول | پس هغه | کوم چه | ایمان راوړو

او غرور وکړی نو الله به ټول خلق خپل ځان ته (دَ قیامت په ورځ) جمع کوی ۔ نو چا چه ایمان راوړے وی او

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيۡهِمۡ اُجُوۡرَهُمۡ وَيَزِيۡدُهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ ۚ

او عملونه وکړو | نیک | پس پوره به ورکړی دوی ته | دَ دوی اجر ته | او زیات به ورکړی دوی ته | له خپل فضل نه

نیک کارونه ئے کړی وی ، نو الله تعالیٰ به هغوی ته پوره پوره اجر ورکړی او دَ خپل فضل نه به زیات هم ورکړی

وقف لازم

ع ۲۴

وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ

لیکن | کومو خلقو چه | شرم وکړو | او غرور ئې وکړو | پس هغه به عذاب ورکړی دوی ته | عذاب دردناک

او چا چه (دَ الله بندګی) عار ګنړلے وی ، او ځان ئې لوئے شمیرلے وی ، نو هغوی له به دردناک عذاب ورکړی

وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿١٧٣﴾

او بیا به نهٔ مومی دوی | ځان دَپاره | سوا دَ الله نه | (څوک) دوست | او نهٔ | (څوک) مددګار

او دَ الله تعالیٰ نه سوا بل هیڅوک به خپل ملګرے یا مددګار بیا نه مومی

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَاَنْزَلْنَآ

اے خلقو! | راغلے دے تاسو ته | دلیل | له طرفه دَ رب ستاسو | او مونږ نازل کړو

اے خلقو! تاسو ته دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه روښانه دلیل راغلے دے او سمه صفا لار ښودونکے

اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿١٧٤﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا

تاسو ته | نور | ښکاره | لیکن | کومو خلقو چه | ایمان راوړو | په الله | او مضبوطے ونیولو

رنړا مو درلیږلے ده ۔ نو هغه خلق چه په الله تعالیٰ باندې ایمان راوړی او (اسلام ئې) په

بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ

هغه | پس زر به هغه داخل کړی دوی | په خپل رحمت کښے | او (په) فضل (کښے) | او وبه ښائی دوی ته | خپل طرف ته

مضبوطے سره ونیولو ، نو الله تعالیٰ به هغوی ډیر زر په خپل فضل او رحمت کښے داخل کړی او هغوی ته به خپل طرف

صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿١٧٥﴾ يَسْتَفْتُوْنَكَ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ

لاره | نیغه | دوی له تانه دَ حکم تپوس کوی | ووایه | الله | تاسو ته حکم درکوی

ته رسیدلو دَ پاره سمه لاره وښائی (اے نبی!) تا نه خلق (دَ کلاله په حقله) تپوس کوی ، ورته ووایه چه الله تعالیٰ درته دَ کلاله

فِى الْكَلٰلَةِ ؕ اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗٓ اُخْتٌ

دَ کلاله په حقله | که چرے یو کس | مړشی | چه نهٔ وی دَ هغهٔ | اولاد | او وی دَ هغهٔ | یو خور

حکم ښائی ، که چرے څوک مړشی چه دَ هغهٔ څهٔ اولاد نهٔ وی (او نهٔ ئې پلار نیکه وی) او دَ هغهٔ خور وی

فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ۚ وَهُوَ يَرِثُهَآ اِنْ لَّمْ يَكُنْ

پس دَ هغه ده | نیمه | له هغه څهٔ نه چه پریښے دی دهٔ | او هغه (خپله) | دَ هغے (خور) به وارث وی | که چرے نهٔ وی

نو مړی چه څهٔ پریښی دی دَ هغے نیمه به دَ دے (خور) دَ پاره وی او (که خور مړه شی) او دَ هغے اولاد نهٔ وی نو ورور به دَ

لَّهَا وَلَدٌ ۚ فَاِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا

دَ هغے | اولاد | بیا که چرے | هغه خویندے | دوه وی | نو هغو دواړو له دی | دوه برخے په دریو کښے | له هغه څهٔ نه

هغے دَ ټول مال وارث وی ۔ بیا که چرے خویندے دوه وی (یا زیاتے وی) نو هغوی به دَ ټولے ترکے نه په دریو کښے

تَرَكَ ؕ وَاِنْ كَانُوْٓا اِخْوَةً رِّجَالًا وَّنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ

چه پریښے دهٔ هغهٔ | او که چرے | وی | (ډیر) خویندے ورونړه | سړی | او ښځے | نو سړی له دی | برابرے | برخے

دوه برخے اخلی ۔ او که څو تنه ورونړه خویندے وارثان شی ، نو دَ یو سړی برخه دَ دوو ښځو برابر

ع ٢٤

الْأُنْثَيَيْنِ ۗ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ أَنْ تَضِلُّوا ۗ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٧٦﴾

دَ دوو ښځو | بيانوي | الله | تاسو ته پاره | چه تاسو بې لارې نه شئ | او الله | په هر څيز باندې | پوهه دے

دے ، الله تعالى تاسو ته خپل حکمونه (حکم) واضحه کوي چه دَ لارې نه بې لارې نه شئ او الله تعالى په هر څه ښه پوهه دے

سُورَةُ الْمَآئِدَةِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَعِشْرُونَ آيَةً وَسِتَّةَ عَشَرَ رُكُوعًا

سورهٔ مائده مدنی دے او په دے کښے ۱۲۰ آيتونه او ۱۶ رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع) کوم په نامه دَ الله چه لوئے مهربان زيات رحم کوونکے دے

شروع کوم دَ الله په نوم چه ډير مهربان دَ ډير زيات رحم خاوند دے۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ ۚ أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ

اے دَ ايمان خاوندانو! | پوره کوئ | وعدے | حلال کړے شوي دي | تاسو دَ پاره | چارپايان

اے مؤمنانو ! خپلے وعدے پوره کوئ ، تاسو دَ پاره ښاروي څناور حلال کړے

الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ

ښاروي | سوا دَ هغو نه چه | اوروله به شي | تاسو ته | مګر حلال مه ګڼړئ | ښکار

شوي دي ، مګر دَ کوموبيان چه مخکښے راتلونکے دے خو ښکار څان له حلال مه ګڼړئ ، هر کله چه دَ احرام په

وَأَنْتُمْ حُرُمٌ ۗ إِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ﴿١﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

چه يئ تاسو دَ احرام په حالت کښے | بيشکه | الله | حکم کوي | څه چه وغواړي | اے دَ ايمان خاوندانو!

حالت کښے يئ ۔ بيشکه الله تعالى چه څه غواړي هغسے کوي ۔ اے مؤمنانو !

لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا

سپکاوے مه کوئ | دَ نخښو دَ الله | او نه | دَ مياشتے | دَ عزت | او نه | دَ قربانئ دَ ښاروي | او نه

دَ الله تعالى دَ نخښو بے حرمتي مه کوئ ، او نه دَ عزتمندو مياشتو ، او نه په حرم کښے دَ قربانيدونکي څناورو او

الْقَلَائِدَ وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُونَ فَضْلًا

دَ پټے دار څناورو | او نه | هغه چه تلونکي وي | بيت الحرام (کعبے) ته | هغوي غواړي | فضل

نه دَ منځے دَ هغے څناورو دَ کوم دَ ښناخت دَ پاره چه په غاړو کښے ورته پټے اچولے شي او نه دَ بيت الحرام دَ قصد کوونکو کوم چه دَ خپل رب

مِنْ رَبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ۚ وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا ۚ وَ

دَ خپل رب | او رضا مندي | او هر کله چه | تاسو احرام پرانيزئ | نو ښکار وکړئ | او

فضل او رضامندي غواړي ، او هر کله چه دَ احرام دَ حالت نه بهر وځئ نو بيا ښکار کولے شئ ،

لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

تيار دِ نه کړي تاسو | دُښمني | (دَ يو) قوم | په دے وجه چه دوي منع کړي وئ تاسو | دَ مسجد حرام نه

او (خيال ساتئ) چه يو ډلے چه تاسو دَ مسجد حرام نه منع کړي وئ دَ هغوي سره دُښمني چرته تاسو دے ته تيار نه کړي چه

أَنْ تَعْتَدُوا ۘ وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ

په دے خبره چه تاسو زياتے وکړئ | او مدد کوئ يو بل سره | په نيکئ کښے | او پرهيز ګارئ کښے

زياتے پرے وکړئ ، او دَ نيکئ او پرهيز ګارئ په کارونو کښے يو بل سره امداد کوئ ، او

وقف لازم

المنزل الثاني ٢